عبدالرحیم خان طورو ص ۵۱۸

# زما ژوند

# او

# جد وجهد

عبدالغفار

# انتساب

قاعده داده چه څل کتاب ولیکی نو د چاپه نامه يې منسوب کوي، د مخفي صاحب دا نظم زما د ژوند فکر، عمل او جد و جهد د پښتونی ملګری دی نو ځکه زه غواړم چه زه دا خپل کتاب، «زما ژوند او جد و جهد» تاسو ته ددې نظم د یادګیرنې سره وړاندې کړم.

(۱)

خاوندہ ته و دانه کړې — زموږ د يو والی حجره
يو ځای پکښی ځانه کړې — د پښتو د له خوږه
يو زړه يو سايو ماڼۍ کړې — دې بېل او بېل پښتون لره

(۲)

کشمیر نه تر هرات هوري — بلوچستان نه تر دوړې
دا قول پښتون د هم چيري — څه رنګي پروت زړې زدې
د يو وجود په ماڼۍ کړې — يا خدايه دا زده زده

(۳)

لویو تپو دپښتنو — په غوره په سم پوتو ږږنو
نمسو دلویو پلرګنو — راځئ چه یو شو لیونو
یالویه خدایه ودانه کړې — سپیره بېلتون لره دېووه

(۴)

پښتو زمونږه چرته یې — ولې له مونږه بېرته یې
زمونږه زړه ځیګر ته یې — زمونږ دقام وزر ته یې
په مونږه لاره آسانه کړې — چه مونږه یو شو ګل سره

(۵)

دپښتنو اول نیکه — خواره نمسی دې یو کړه
داشانې تیت دې دوي په څه — خبر له یو له بل نه
یالویه خدایه ودانه کړې — سپیره ببلون لره دوېړه

(۶)

زمونږ له ملک نه دښمنان — یا خدایه لرکړې دا تر ماان
په مونږه کړې زمونږه خان — زمونږ دقام زمونږ دځان
رنا زمونږ له ځانه کړې — دپښتنو توره تیاره

# فهرست

| عنوان | مخونه |
|---|---|

و

ک

| عنوان | مخونه |
| --- | --- |
|  |



## شروع کوم په نامه دخدای چه ښښونکی
## او مهربان دی

زه دهشنغر په اتمانزو نومی کلی کښی په کال ۱۸۹۰ع کښی پیدا
شوی یم . هغه وخت دپیدایش دنیټې دلیکلو رواج نه و او نه څوک په لیک
او لوست پوهیدل . نو زما دپیدا کیدو نیټه چا لیکلې نه وه خو دا چه زه
وایم چه په کال ۱۸۹۰ع کښی پیدا شوی یم ددې نه وایم چه خدای دې زما
مور وبخښینی ماته ویل چه « ستاد ورور ډاکټر خانصاحب واده چه وُ نه
دیو ولسو کالو وې » او د ډاکټر صاحب واده په دسمبر ۱۹۰۱ع کښی شوی
و نو ځکه زه وایم چه زه په ۱۸۹۰ع کښی پیدا شوی یم . زه دمور او پلار
کشر زوی وم دتولو نه مشره زمونږ خور وه ، ورپسې ډاکټر خانصاحب وُ
بیا می بله خور وه بیا زه وم . دکشر اولاد سره قدرتی دمور او پلار مینه
زیاته وې او ورته ډیر خوږ او نیازبین وې . زه مور او پلار ته ډیر گران وم
دخدای قدرت داسی وچه دتولو نه مخکی زما مشره خور مړه شوه بیا ډاکټر
خانصاحب شهید شو ، بیا می بله خور مړه شوه . زه دتولو نه وروستو
یم او روستو پاتې شوم .

د اتمانزو کلي دپېښورنه شل میله لیرې شمال ختیزته دهشنغر
مینځ کښې دسوات اوباجوړ دسیند په غاړه نورخانه ته پروت دی .
زما تعلق محمدزي قبیلي سره دی او هشنغرچه دا بازونه را اوخلو
نو مناره پوره دی، په دې کښې محمدزي آباد دي . دا د پېښکلي سرحد
او آباد ملک دی او دا دپښتنو د دوو ولسه په تقسیم کښې نورو رونو
له بخپله خوښه راکوي ؤ . زما نیا یوسف زی وه ، دصوابي دمرغز کلي
او نیکه مې محمدزي وچه دهشنغر د اتمانزو کلي و . نیکه مې لوی خان و
قلارتی خبره ده چه د محمد زو او یوسف زو شریک اولاد ډیر لائق
قابل وي . جنگي ري د هلکانو نه زیاتي ذهیني وي . زما ډیرې نمس
ډاکټرانې دي ، نورې نمسی مې څوک ایم . اې ، څوک بی . اې دي ا
لور مې ده هغه بی . اې . بی . ټی . ده . یو کشر زوی مې عبدالع
( زه ورته لالی وایم ) د اکسفورډ ایم . اې ، دی . دوه مې نور زامن
مشر عبدالغني دی چه هغه مې د ترو، کمستری د تعلیم د پاره امریکې
لیږلی و خوچه زه فیرنګیانو په ۱۹۳۱ع کال کښې جیل ته ولیږلم اوزما جا
هم کډ وکړو نو هغه د پیسو نشت په وجه تعلیم سرته ونه رسولو او
راغی . بل عبدالولی دی چه سینیر کیمبرج لی پاس کړو . دی ډیر
لایق او قابل دی ، دی یوروپ ته تعلیم له لاړنه شو ولې چه زه جیل
لازم نو دی هم د تعلیم نه پاتې شو . عجیبه خبره دا ده چه زه هم شا
(STATE PRISONER) وم ، ډاکټرخانصاحب او قاضي صاحب

دهغوی بچولو لپاره د تعلیم دپاره وظیفه او دکور دپاره خرچ ورکولو او دا د شاهي قیدی (STATE PRISONER) سره رعایت نه دی دهغه قانوني حق دی خو زما ما ترا منوتیلي نه ورکولو. زما یوزوی یوسف زی کړې ده، بل مومند کړې ده او دریم پارسي (پارسنه) کړې ده. زما لور په کشمیری واده ده. زما خلور نمسی په یوسفزوکښي واده دي. دوه په خټکو کښي او یوه په پنجاب کښي په پنجابي واده ده. مونږ خپل اولاد په دولت پسې نه ورکوو، په شرافت، قابلیت، او لیاقت پسې لي ورکوو. مونږ خپل اولاد بغیر دهغوی دخوښې چاله نه ورکوو

اتول هشنغر شکلې او شیرازه سیمه ده دغرو او اتمانزو نه د سیند په بله غاړه چه د زور ښار نښې نښاني راڅرګندې شوي دي دغه د زړو سړو دسیند نه پوری غاړه دشیخانو ډېرۍ سره دکندهارا تهذیب.

او دوړنه محکښي آثار دي دغه ښار ته لي پشکلاوتی وی - دانوم دبرسنډ وکمر او کلو نوبوری ترلي دی. لوی تجارتي او ثقافتي مرکزو. داموجوده سیند چه اوس دنهرو او اوشیخانو ډیری ترمینځه بهیږی دا په هغه زمانه کښي د ډیری نه قبلي غاړې ته بهید لو او دا تول زور ښار تر دی رزدو پورې غزیدلي اُو.

د دې ځای اوسیدونکي پښتانه وو خو بودیست وو. بودایي مذهب له دې ځایه دسوات او کلکت په لاره تبت او چین ته تللي او خور شوي دی او د بدهمت خورمه مذهبی غونډه هم په دې ځای کښي شوې وه.

د ښکاره شوو آثارو دفن او صنعت نه معلومیږی چه په دې علاقه کښي

صنعت، تجارت، زراعت او علم ډېره ترقي کړې وه. دا ښار يوازې د ګند
سياسي مرکز نه بلکې د ايشيا د زياتو برخو تجارتي، صنعتي او علمي مرکز و
د اټک او مارګلې په لاره يې د هندوستان سره، د سوات او کلکت
په لاره يې د کشمير او تبت او چين سره، د دير او چترال او بدخشان
په لاره د مرکزي ايشيا او له هغه ځايه يورپ سره، د کابل، کندهار او سيس
په لاره يې د ايران، عراق، ترکيې او شام سره تعلق لرلو. د تجارتي مالونو
منډهي وه، د علوم زانګو وه.

زما مور ډېره زړه سواندې، پوهه، نيک سيرته او خوش خلقه ښځه
زمونږ د زميندارې لوی کور و، زمونږ ډېرې غوا، مېښې وې، هره
به د خوا او شا غريبانانو خلک به شوملو مستو لسي مونږ کره راتلل او
به مې په روڼ تندي د هغوی سره ستړې مه شې کول شوملې او ماسته به
ورکول او هر ماښام به يې د دوی د پاره بيله کټوې پخوله.

## کورنۍ:

زما د پلار بهرام خان نوم و، د کلي خان و او په مستر خان مشهور
د نورو خانانو په شان نه و په کلي کښې د ده هومره جايداد چې د خانانو خود
نه ښکاريده لکه خان، پوه او زيړ ليښتون و، په چا يې زياتي نه کولو
مظلومان د بل چا زور زياتي ته پرېښودل. که د ده سره به چا زياتي وک
به يې په صبر برداشت کولو او د بدل جذبه يې په زړه کښې نه ساتله.
تربورانو ورسره ډېر زياتي کړي و، د ده وس کيده چې بدل ورننه واخلي

به خاى به يې وبخښل بلکه احسان او ښېګړه به يې ورسره کوله. مونځ ګذار، پرهېزګار او سوله دوست سړی و، د صبر او زغم خاوند و. کله چې به حجرې له نابلده مسافر راغلل چې هيڅوک به يې نه پېژندل پلار به مې ورله پخپله ډوډۍ ور وړله، نوکران به وو خو ده به پخپله د ډوډۍ شکور راخستی و او د انګولي لوښي به يې په لاس کښې راخستي و او ويل به يې دا د خداى ميلمانه دي په کار دی چې زه يې پخپله خدمت وکړم. اکثر به داسې وشو چې ميلمانه به ژمي کښې شپې له راغلل نو چې سحر به ورله نوکر چاى وړه نو خبر به يې راوړو چې ميلمانه نشته. تللي دي او بړستن يې هم د خان سره وړې ده د نورو خانانو په شان حاکم پرست نه و، د حاکمانو سره يې تعلق نه ساته او نه يې د دوى خدمتونه کول. زما د نيکه هم دغه حال و. زما د نيکه سيف الله خان نوم و، کله چې فرنګيانو د بونير د نيولو په غرض په بونير حمله وکړه او د سورکاوۍ غزا وه نو رخانانو د فرنګي ملګري وو او سيف الله خان بابا د قام مړستې له ورغى. د ارنګي زما غور نيکه عبيد الله خان بابا آزاد خيال پياوړى او منلى مشر و چې د هغه وخت د درانو حاکم سلطان محمد خان طلائى د لاسه پهانسي شو. د درانو حکومت د عياشۍ په خپل قام د زور زياتي، د کورنۍ اختلافونو او جنګونو په وجه ختم شو او د دې نه وروسته د سکهانو حکومت راغى. درانو چه وار هيل مسکان وروادې شپه په پنبه کابل ته وتښتېدل او پښتانه يې سکهانو ته پرېښودل.

## تاريخي پس منظر:

يا هغه وخت چې کله بابر د پښتنو د بې وقوفۍ او خود غرضۍ او د ايرانيانو

دامداد اولمسون په وجه د ابراهیم لودی نه دهند بادشاهی تخت او
تاج واخستو، شیرشاه سوری راپاخېدو او د بابر د ځوی همایون نه
دپښتنو حکومت بېرته واخستو. دیلي یې ونیو همایون وتښتید و او
د ایران دربار ته یې پناه یوړه او هلته ایرانیانو دپښتنو دکمزورۍ کېد
موقع له لاسه ورکړه.
موقع له لاسه ورکړه.

شیرشاه دپښتنو جنډه په کلکته ودروله او شیرشاه چه دملک
دابادی له پاره دصنعت، تجارت او زراعت کومې منصوبې جوړې کړې
په هغې دمغلو داکبر پاچا نوم وشو. دا داکبر دماغ نه و دشیرشاه دماغ
یا هغه وخت وچه کله په پښتنو دایرانیانو حکومت وپښتانه سپک
او سپک بدیې گڼل. په کندهار کښې میرویس خان نیکه راپورته شو پښتا
د ایران دغلامی نه آزاد کړل او دپښتنو بیرغ یې په اصفهان ودرولو.
هغه وخت وچه پښتانه نادر افشار ریزمېز کړی و. چه نادر افشار مړ
شو نو دپښتنو لویه جرگه په کندهار کښې راغونډه شوه او د ډېر غور وروسته
یې احمد شاه بابا په مشرۍ دعاء خیر وکړه.

احمد شاه بابا راپورته شو ایرانیانو ته یې شکست ورکړو او دپښتنو د
بنیاد یې کښېښود. یوازې پښتونخوا نه بلکه ټول هندوستان یې دهغه و
دمغلي حکومت د ظلمونو نه خلاص کړو. دې وخت کښې انگلریزان هند
ته نوي راغلي وو چه احمد شاه بابا دیلي واخست نو دانگریزانو دتگ و د
خبر مشوا او اراده یې وکړه چه انگریزان هم دهندوستان نه وباسم. انگ

چه به دې پوه شول د ایران دربار ته یې سفیر ولیږلو او ایرانیان یې راپورته
کړل چه په افغانستان حمله وکړی. احمد شاه بابا چه ددی سازش نه خبر
شو د انګلیزانو د مخنیوي کار یې پرېښود او په مخه افغانستان ته راروان شو
چه جیلم ته راورسید د جیلم د سیند په غاړه و دریدو او د پښتنو ټول خېلونه
او قبیلې چه وسېدې هغو ته یې وویل چه له دې ځایه تر اموده یا به پورې ستاسو
ملک پښتنخواه دی او یا د غه وخت وچه د دړانو د عیاشۍ، بې تدبیرۍ په
خلکو د زور زیاتي، کورنی اختلافونو او جنګونو په سبب پښتانه دومره په یو تل
چه خیل کلی ورکښې د سکهانو د مقابلې نه وو. هغه د بلار نیکه کتهې خوبېږده خېله
خاوره ترې سکهانو لاندې کړه او په دوی کښې دومره ځوک نه وچه خپله خاوره
او ناموس یې ننګ او غیرت کړی وی. د سکهانو د زور او ظلم په مقابله کښې
یې سر او وچت کړی وی او د پښتنو عزت او عظمت یې د دی ظلم نه بچ کړی
وی د سکهانو د پر ظالمانه حکومت و زما د مور دار خه نیکه محمد دین خان
به مونږ ته داخبره کوله چه یوه ورځ زه د شولګرې نه راتلم او په سیند راپورې
وتم چه په دې کښې یو سکه راغی ماته یې اشارت وکړو چه راوګرځه او ما په شا
پورې باسه. محمد دین نیکه ورته ووې چه زه ناباری یم خو سکه مجبور کړی
دی او چه سکه په شا را سور کړی دی او د او بو مېنځ ته رسید لی نو تو به
کړي دي او سکه یې د او بو په مېنځ کښې غورځولی دی او دی ترې تللی دی.
د هندوستان د هغه سره سید احمد بریلوی او اسمعیل شهید
به دوی یعنې په پښتنو باندې ننګ او غیرت کوی او د سکهانو د مقابلې د پاره

دپښتنو خاورې ته راغې . دهغه وخت دحکومت افغانستان له طر
د ده سره مرسته ونه شوه بلکه یار محمد خان له خوا ورسره ځیکلره وش
لکه څنګه چه دپښتنو ددې زرې چاربیتي نه څرګندېږي :

روان شو یار محمد سید او باسي پنجتاره
سید له بري ورکړی آلهي پروردګاره

ددې علاقو دپښتنو همله، دی دسید صاحب سره وه . ده غوښ
چه ملک کښې شریعت نافذ کړي او دشرعي قانون سره سم دخور اولو رولو
کوی او په میراث کښې ښځو له هم شرعي برخه ورکړی او ځینی غلط رسم
رواج اصلاح کړی . په خانانو او ملا یانو ددې خبرو بد اثر وشو شو
بې جوړ کړو چه پوسکه لاړو او بل سکه راغی . دپښتنو او مسلمانا
هم ر ډانو بې دوهابي فتوا ولګوله . په پښتنو کښې قومي او سیاسي ش
نه وُ نو دبریلوی صاحب او دده دېلي په ضد راپورته شول ، څرېلي و
او څرېلي په اباسیند هزاره ې ته پورې ویستل . دهزاری ځینې مسلما
په ځای ددې چه دبریلوی صاحب مرسته وکړي سکهانو ته بې م
وکړه سکهان راغلل او باقیانده هلته دسکهانو له لاسه تالا ترغ
سید صاحب او اسمعیل صاحب بالاکوټ کښې شهیدان ش
خو مره د افسوس خبره ده چه سید صاحب دپښتنو دپه ښځو
وکړو او بې ننګه پښتنو دوی سره ننګ ونه کړو . چه سسید
سکهان دپښتنو دخاورې نه وایستل نو د افغانسستان ح

سید صاحب ته وویل چه اوس دا ملک مونږ ته پرېږده.

قصه داسې وه چه د تهکال ارباب بهرام خان چه د سید صاحب مرید وه هغه به کال په کال د روژې په میاشت کښې بو ملې ته تللو د قرآن پاک ختم او تراویح به یې هلته د سید صاحب سره کولې. پخوا د حمل ونقل ذریعې هم نه وې، په اسونو روان وو چه کوجرانوالی له راغلی دی نو تږی ستړی دی. په لاره کښې کوهی ؤ ښځې وړله او بوله راغلې وې دی چه کوهې ته ورنږدې شو نو د لاس په اشاره یې د ښځو نه اوبه وغوښتې چه دې ښځو سکې د ک کړل نورې تولې لاړې او دوه ښځې پاتې شوې نو ده له یې اوبه ورکړې، چه ده له یې اوبه ورکړې نو په ژړا شوې او ورته یې وویل چه مونږ پښتنې یو او سکهانو په زوره راوستی یو او دوه دوه بچې موهم پیدا شوې دې. ارباب چه بړلې ته ورسید و نو هغه ډېر زهیر وو. سید صاحب تر نه پښتنه وکړه - چه دا ته ولې زهیر یې - هغه ورته د کوجرانوالی دا تول واقعه بیان کړه. نو سید صاحب د جمعې په ورځ په منبر وخوت دا قصه یې بیان کړه او د جهاد اعلان یې وکړو. زه د لته تاریخ نه بیانوم صرف دا خبره ښکاره کوم چه ددې څه وجه ده چه پښتنو لوی لوی حکومتونه جوړ ولی شول خو ټینګولی یې نه شول ددې وجه دا وه چه په پښتنو کښې اجتماعی ژوند، قومیت او اتفاق نه و، که څه هم پښتنو کښې به داسې وخت په وخت لوی لوی او قابل سیاستدانان پیدا شول لوی لوی سلطنتونو به یې قایم کول. خو کله به چه ده سر په کفن کښې ونغښتو په پاتې کسانو کښې به یې د قامولی مینه او اتفاق او د اهلیت جذبه نه وه

د دولت او اقتدار کتلو د پاره به یو بل ته اړم شول . په عوامو کښې به هم د قامولی
احساس نه وو چه مشران یې غلطی لاری ته نه پرېښودلی یا یې خود غرضه او ناپوهه
مشرانو له موقع نه ورکولی . په پوهو ، لایقو ، بې غرضو او خدمتګارو مشرانو به راغونډېدلی
او خپل حکومت یې ټینګ ساتلی . په عوامو کښې د قامولی او ملیت د جذبې د
د نشتوالي له کبله به په دوی د خود غرضو مشرانو اثر وشو او بې اتفاقی او خانه جنګی
به عامه شوه خپل طاقت به یې په خپلو کښې یو په بل ختم کړو . دښمنان خو به د منتظ
په طمع ناست وو موقع به یې وموندله بادشاهی او حکومت به یې ورنه واخسته
دوی به یې غرونو ته وشړل . دښمنانو به د دوی په آبادو مزکو چرچې شروع
کړې او دوی به غرونو غرونو کښې سر وهلی در په در ګرځېدل خو چه به یې به
توبه قبوله شوه او د خدای رحم به پرې وشو لایق او پوه سړي به په کښې پیدا شو
بیا به یې دښمنان له وطنه وشړل او له نوي سره به یې په آبادی کوټې پورې کړې
د سکهانو نه پس د پېرنګیانو دور راغی - پېرنګی چه خپله خو د دښمنانو د
راغلی وو . ولی دا ورته معلومه وه چه د هندوستان د تاریخ ټولې حملې د قط
شوی دی ، او د خپل برطانوی هندوستان سلطنت د ساتلو د پاره هغه د
خاورې ته راپورې وتلو چه په هغه د درو لارو او سیندونو قبضه وکړی
کومو د پېره نه حملې شوی دی .
د فوجی حکمت عملی نه علاوه هغه د دې سیمې سیاسی حالاتو ته هم توج
هغه ولیدل چه دلته هم هغه پالیسی روانه وه کومه چه د هغه نه مخکښې مخت
حاکمانو آزمایلې وه . حقیقت دا دی چه کله مغلو د پښتنو سره جنګونه وکړل

کله شهنشاه اکبر د پښتنو د لاسه اول په خیبر بیا په په کړې او په آخره چه یې کله د بنېر په کړاکړ کښې د خپل پوځ سره سره خپل لوی وزیر بیربل هم مړ شو نو بیا اکبر را اغی پښتنو ته د اباسین نه پورې یې د اټک قلاع جوړه کړه. سره د خپلو وزیرانو کښېنا است چه په دې خبره سوچ وکړي چه پښتون خو یې په جنګ ونه وهلی شو او س یې یې په کومه وسله وهي. چنانچه د ډېر غور او فکر نه پس په دې نتیجه ورسېدو چه پښتون دوه خاصیته لري. یو پښتون من حیث القوم مسلمان دی او د اسلام سره لویې عقیدت لري. دوهم انساني کمزوري یعنې د دولت سره مینه لري. نو د دې په رڼا کښې هغه یوه داسې پالیسي وضع کړه چه داسې عالمان، ملایان او پیران پیدا کړي چه د هغوی په ذریعه د اسلام د خادر دلاندې خپل سیاسي غرضونه سر کړي او دویمه دا چه د پښتنو دنیاوي مشران. ملکان او خانان د دولت او نوکرو په زور په بیعه واخلي.. هم په دې سلسله کښې مونږ ویکتل چه د اخون درویزه او هغه په شان نورو د دې دیني مشرانو د مغلو په وینا او بنوونه د پښتنو د قامي او ولسي تحریک د مخ نیوي د پاره د پیر روښان غوندې باعمله عالم او سوچه مسلمان باندې د مغلو د پاره د کفر فتوې ولګولې

پیرنګي داولیدل چه همدغه پالیسي د مغلو نه پس درانیانو خپله کړه او د هغوی نه په وراثت کښې سکهانو ته پاتې شوه. پیرنګي چونکه د شلمې صدۍ د تعلیم یافته او ساینسي دور پیداوار وو نو ده هم د شهنشاه اکبر هغه مجربه نسخه خپله کړه او کوښښ یې داوو چه یو خوا د پښتنو دیني مشران د خپل سیاسي غرض د پاره استعمال کړي او بل خوا د هغوی دنیاوي مشران په دولت او منصبونو واخلي. ولې دېره

دتعجب خبره داده چه هغه اسلام چه کوم مغل مسلمان دخپل مسلمان وروړو دغلامولو
دپاره استعمالولو هم هغه اسلام نن دی ایمان خرخوملایانو، عالمانو او پیرانو دکافر
پیرنګی دسیاسی اغراضو او مقاصدو دپاره استعمالوو.

## دپښتنو خویونه او دودونه:

سره ددې کله چه فرنګی راغی زما یادشی چه په پښتنو کښې ډیر ښه ښه
خویونه او خصلتونه لا موجود وو په زړوغو به ځان ورته بد ښکاریده. وروړولی
عزیزولی به یې ښه پالله. یو په بل اعتماد و په یوه بل به یې ټینګ کولو، راشه درشه
وه مینه محبت وکه دیو بل سره یې څه اختلاف هم ؤ په سپکه به یې نه یادولو
داسی نه وکه دا اوس په خوله یوه او په زړه بله ژوند بالکل ساده او بې تکلفه
په ناسته ولاړه کښې ډیر تیته پیته نه وه، جامې ساده او دوطن جوړې
دخپل وطن شړله خامتایی دبل په اتلس نه ورکوله دخامتالویي الویي خلکو
کمیسونه او پرتوګونه به یې اغوستل، دوطن جوړې پنې او څپلې به یې
پښو کولی، توپۍ او دخامتا پګړی به یې په سرولې. ښځو به درتکینه خامتا
او مشروبۍ [*] پرتوګونه یې اغوستل. خوراک هم ساده و دساده خوراک په وجه دخ
صحتونه ښه وو دومره کمزوری نه وو. مسالې نه وې، چایې نه وې، سود کول
شراب څښل او زنایي ډیر بد ګڼل که به یوه شول چه څوک داکار وونه کوی نو
سره به چاچپلولي نه کوله، خور، لور به چا نه ورکوله. اخلاقاً دومره پریوتی نه و
اوس چه دی. دچاچه به زور ورمیلمه راغی نوچرګ به یې ورله حلال کړو د

---

(*) مشروبی، دخپل کلی کورجولا به یو رخت جوړولو چه هغې ته به یې مشروبۍ ویل.

د کلېښودوا به يې جوړه کړه ، د غواوو، مېښو زېړ غوړي به وو . سرې سرې پېتي
پرسېدلې خمبيره د وډۍ به وې . مازيګر به په بټ د جوارو نينې کېدلې کوړه
به ورسره خلکو خوړله ، په ډوډۍ کښې به د امير او غريب فرق نه و . ټولو به په
يو تالي او يو ځاى کښې ډوډۍ خوړله . څرنګه چه پوښاک او خوراک ساده وو
د غسې د ناستې ځايونه او کورونه هم ساده وو . يوه لويه کوټه به وه ټول کور بانه
به يو ځاى ويده کېدل او چه ميلمه به راغى نو د کلي په شريکه حجره کښې به
شملاستو دا کثرو خلکو کورونه په دغه شان وو او چه کوم سړي په دوى کښې لوى
سړى و يا به خان و نو د هغه په کور کښې به د کوټې سره يو ځاى يو منډو او ډيوډۍ
وه او د مېلمنو د پاره به بېله حجره هم وه . دا اوچتې اوچتې ماڼۍ او سپينې
سپيتې بنګلې نه وې خو هغه خوشحالي او آسودګي چه په هغه ساده ژوند کښې
وه نن، په دې بنګلو بنګلو کښې او په دې خوندورو خوراکونو کښې او د ولې جامو
کښې نشته مرضونه ډېر نه وو، نر او ښځې په بدن سالم او تکړه وو . جنيکو او هلکانو
به يو ځاى لوبې کولې لوى لوى به وو د شپې تر ناوخته به يې لوبې کولې ، يو بل ته
به يې د خور او ورور په نظر کتل ، اخلاق ډېر اوچت وو . د لوبو ډېر رواج ؤ ، قسم
قسم لوبې به وې . د پښتنو په لوبو کښې د هر قسم پرکټس (سپورټ) ، خيال ساتلى
شوى و . د منډو خيال پکښې ؤ . د بار اوچتولو او ورلو خيال پکښې و ، د ساختلو
خيال پکښې و ، د شپې ګرځېدلو په شپه کښې د ځان پټولو د مخالف فريق
د لټولو خيال پکښې و . او همدا وجه وه چه د دوى صحتونه ښه او ډېر ښايسته
وو . اګر چه لوبو کښې به د ريام ګړى نه وو ، مګر بيا هم لوبغاړو به يو بل سره تګى نه کوله .

## دپیرنګی اثرات :

دپیرنګی دراتلونه وراندې دپښتنو دتعلیم څه خاص انتظام نه وه ج
به تعلیم نه کاوه صرف دملایانو زامنو به دلمانځه، اوداسه، روژې سرپسانې
حج اوقربانۍ، زکات اوصدقاتو او ددغه شان مسئلو تعلیم کولو داهم داماما
له پاره لوستل به یې زده و. لیکل به یې نه وزده او ددغه تعلیم طریقه هم دغسې
وه چه ملا صاحب به په جماعت کښې ناست و داماماتې سره به یې هلکانوت
دېس هم ورکاوه. مور او پلار به چه وغوښتل چه پخپل اولاد تعلیم وکړي ن
جماعت له به یې بوتلو او دملا صاحب سره به یې په سبق کښیناوه. ملا صاح
به ورته سیپاره شروع کړه مور او پلار به یې دخپل وس سره سمه شیرینۍ
وویشله اوچه یوه سیپاره به خلاصه شوه نوملا صاحب له به یې شکرانه و
اودبلې په شروع کښې نه بیا شیریني وویشلې شوه. دملا صاحب دتعلیم ورک
په بدل کښې څه خاصه تنخوانه وه، داستاذانو به دخپلو شاګردانو سره دېر
وه دخپلو بچو په شان به یې ګڼل. شاګردانو به هم استاذ دپلار ځای ګم نه ګڼل
استاذ به دسبق معنا شاګردانو ته نه ښودله هغوی غریبان څه سلامت و
هغوی یې پخپله هم په معنی نه پوهیدل نوشاګردانو ته به یې څه ښودلې
زمونږ دجماعت اخون هلکانو ته سبق ښودلو. یو هلک ته یې چه سبق
نو ورته په غصه شو ورته ووېل «ان الذین کفروا خربیشویه» نوشاګرد هم
«ان الذین کفروا خربیشویه» داچه مونږ واوریدل نو ډېر مو وخندل
هغه شاګرد ته په غصه شو، مونږ ورته ووې چه ددې هلک څه قصور دی

څه اوالي هغه يې هم وايي .

پيرنګيانو د هندوستان د خلکو د تعليم دپاره په نوي طريقه سکولونه جوړ کړي وو خو د پښتنو دپاره يې تش په نامه د کمې درجې سکولونه جوړ کړي وو . چونکه به په يو نيم لوی کلي کښې پرايمری ( ابتدائی ) سکول و ، په هغې کښې هم څه ډېر هلکان نه داخليدل . نور هندوستان له يې ابتدائی تعليم په مورنۍ ژبه کښې يې ورکولو خو بد قسمته پښتون قام له يې تعليم په پردۍ ژبه کښې ورکولو . ددې دپاسه يې ملايان ورپسې لمسولي وو چه که دا قام تعليم وکړي ستاسو قدر به کم شي او بازار به مو سوړ شي بيدار شي چه د پښتنو بچي د ژبه علم زده کړي . ملايانو به پراپيګنډه کوله چه پښتو دوزخي ژبه ده او دوزخ کښې به پښتو ويلې شي . د ملا صاحب نه هيچا داپوښتنه نه کوله چه هلکه ته د دوزخ نه کله راغلي يې او کوم دوزخي دا خبرې تا ته رسولي دي . ملايانو به دا هم ويل چه خوک د مدرسې سبق ووايي نو اوده پېرې يې په دوزخ کښې ږدي او دا سند ؟ به يې ويله :

سبق د مدرسې وی ... د پاره د پيسې وی
جنت کښې به يې ځای نه وی ... په دوزخ کښې به يې وهی

ملايانو خو خلک د انګريز په سکولونو کښې د تعليم نه منع کول خو پخپله يې هم هيڅ انتظام نه کولو او عجيبه خبره خو دا ده چه ملايانو د دين په نامه خلک له علمه پاتې کول ، حالانکه اسلام داسې دين دی چه علم يې په نرو او ښځو فرض کړی دی خو مونږ داسې بد قسمته قوم يو چه د اسلام په نامه د علم نه

پاتي شو همدا وجوهات وو چه پښتنانه د تولې دنيا د قومونو نه په علم کښې وروسته پاتي شول او نتيجه يې دا شوه چه يوازې علم څه چه هر خير کښې د دنيا نه وروسته پاتي شو او څومره د افسوس خبره ده چه يو وخت د پښتنو خا ورو د دنيا د خلکو د پاره د علم مرکز و. دلته په هغه وخت کښې چه يوروپ د انسانيت د تور دور نه تيريده د پښتنو په دې خاوره لوى لوى درسګاهې او يونيورسټي وې چه چاپېره ملکونه يې د علم په رڼا روښانه کول.

د ليرې ليرې وطنونو نه به خلک د علم د زده کړې د پاره زمونږ وطن ته راتلل او د اسلام په نوم نن د دنيا د تولو قومونو نه په علم کښې وروسته پاتي کړي شول.

زما د مور او پلار اولاد نه پائېده نو دوي په ډېر زيارتونو، باباګانو ملايانو باندې ګرځېدلي وو. هغوى ورته ويلي وو چه خداى پاک به زوى درکړي او چه زوى موو شي نو غوږ به يې سورى کوئ او د سرو زرو والى به پکښې اچوئ او بل به تر اوو کالو پورې کال په کال د سپينو زرو او بڼې ورته په غاړه کښې اچوئ او چه د اوو کالو پوره شي نو بيا به تر يې دا او بڼې دا والى وباسئ او د خداى په رضا به يې ورکوئ.

## زما نيازبين توب:

زه د مور پلار کشرى زوى وم او کشرى اولاد په مور پلار ډېر ګر وي او ورسره يې ډېره مينه او محبت وي او نازبين وي. زه هم مور پلار ته ډېر نازبين وم او زما دې نازبين توب ماته هم ډېر نقصان ر

و او د مامور له لي ډېر تکليف ورکړی و. ما چه به ويل که ددی به منل خو ښه
او که به يې نه منل او د منلو به نه و نو زه به بيا په خفګه دغږېدم او په چغو چغو به
مې ژړل او تر دغې پورې به مې ژړل او دغږېدم چه تر څو به زما مور زما خبره
منلې نه وه. دغه شان ټوله ورځې به مې پښې په ځمکې وهلې دا راته چا نه ويل
چه په ترمه مه کوه او که به يې راته وويل نو ما منله کله. اکثر به په دې غرمو
ګرځېدلو زما سترګې خوږې شوې، د شپې او ورځې به نا ارامه وم، مور
به مې هم د ځانه سره نا ارامه کړې وه. شپه او ورځې به مې پرې خپله ځانګو
زنګوله او چه مور به مې ډېره ستړې او تنګه شوه او خدمتګاره به يې راته
ځانګو ته کښېنوله نو ما به چغې کړې نو هغه به راغله. شپه او ورځ مې هغه
نا ارامه کړې وه او زما ځانګو به يې زنګوله. هغې به راته ووې چه بچيه
دا زه دې په څه مصيبت کښې اچولې يم چه ټوله شپه دې نه اخوا شم
نو ته بيا چغې کړې ارام ته مې نه پرېږدې. نو ما به ورته وويل چه زه څه وکړم
زه خو لېوند يم.

زمونږ به ډېره غله کېدله کندوان به ډک وو چه نوې غله به راولګېدله
نو بيا به مو هغه زړه غله خرڅوله. زمونږ د کور سره يو درام او کيوسنک هم
وه دا دواړه ورونه وو ما به ټوله ورځ د دې کندوانو نه غله دې هم ته
زغلوله. په هغه وخت کښې به په هغو کښې د دې قسم څيزونه وو لکه نن يې
چه مونږ وينو. زيات نه زيات به پکښې املوک، غوزان، چهې او منچې
وې او ماسپښين نه پس به لي باتينګن او پلورې تلولې مور به راله دوه

دړې خله په ورځ کښې په جولۍ کښې غله راکوله لیکن په هغې به زما تسلي
چېرته وه اکثر به مې دهغې نه په پټه دانې دکندوانو نه هم وړلې او کالتل به مې
چه مور به مې اخوا دې خواشوه نو ما به په یوه منډه هغې ته ځان رساوه
کله نا کله چه به دمور راته فکر شو نو آواز به یې را باندې وکړه چه "ته به ځې"
او ما پښتوله ښه زور ورکه لیکن ددې نه زیاتې به یې راته څه ویل نه. زه خو
مورته ډېر ګران او نازبین وم. زه خو ښه پېل سود او زیان ښو او بد ونه
پوهېدم او دا خو ما سره مور ښه نه کول ځکه دې کار په ما کښې دغلا عادت
پیدا کاوه. زما مور له په کار وچه زه یې ددې عمل نه منع کولې او زه یې
پوهولې چه بچیه دا کار خو بد دی او ته باید دا بد کار ونه کړې. ته چه څه
غواړې هغه خو زه درکوم. زه لې باید یوه کړې وای او ددې بد عمل نه
تو به کار کړې وای ځکه دمور غېږ خو دانسان اوله او ډېره مهمه ملته
ولې راته کیسه کوله چه زه په لندن کښې سهار دخپله مکانه راووت
چه ګورم نو یوه ډېره ښکلې منه دونې نه راپرېوتې ده یو ما شوم هلته ولا
دی ما ورته اشاره وکړه چه واخله (Take it) نو هغه راته ګوته. وخوځوله
نه دا زما نه ده (No, it is not mine) هغه خو ما شوم و. دا ورته چا ښودل
و؟ دا ورته مور.
په ماشوم والي کښې چه څه عادتونه په بچو کښې پیدا شي نو چه بیا غټ
نو هم پکښې وي او به ډېره مشکله دهغو بد وعادتونو نه خلاصیدل وي شي
زه چه به دشپې دمور سره او ده وم نو په شپه کښې به چه را ویښ ش

لوبه مې وژړل او چه نه به چپ کېدم نو مور به راته ویل چه هغه دی (بو) راغی هغه دی (پیری) راغی نو دا زما په ذهن کښې تر اوسه پورې د (بو) او (پیری) داوېره پرته ده حالانکه چه زه په دې خبره پوه یم چه نه (بو) شته او نه بلا شته. زمونږ یوه لوبه کوته وه، مونږ ټول به په هغې کښې څملاستو زه ښیا یسته لوی وم خو یوازې څملاستې نه شوم د مور سره به څملاستم خکه چه زه به یوازې وم نو په ماخپسه راتله زه چه بیا ښارته د سبق له پاره لاړم نو چه بابا به مې ښارته راغی په ما به اختر و خکه بیا د هغه سره څملاستم.

د قصو ډېر شوقمن وم او داسې ذهن مې وچه هر قسم اوږده اولنډه قصه به مې د چا نه اورېده بیا به هغه زما زده وه. ما ته اوس هم د ماشوم توب قصې یادې دي.

زمونږ په کوته کښې یوه دوکانچه (څوتره) وه د دې دوکانچې په مینځ کښې به نغري وو په هغه به هم خلې کېده او هم به یې کوته تودوله د دې نغري یوې خواته به پوزکي غوړېدلي وو لیمخي به پرې د پاخه پراته وو. یوې خواته به زنانه ناستې وې او بلې خواته به نارینه کښیناستل. چه د ډوډۍ وخت به شو نو زنانو به مونږ ته ډوډۍ واچوله او چه مونږ به خوړله نو بیا به هغوی خوړه. په هغه وخت کښې نارینه ؤ د زنانه وو سره ډوډۍ نه خوړه او دا ورته معیوب کار ښکارېده او ښځو هم د نارینه وو سره ډوډۍ نه خوړه په ژمي کښې به مونږ اکثر غنمی وریجې خوړلې. هغه زمانه کښې چایې نه وې سحر وختی به چه پاڅېد و نو وریجې به تیارې وې هغه به مو خوړې. دې

ودیجو سره به مو سو چه غوړي، اچار، شربت او کله قورت خوړل ... په اوړي
کښې به چه سهار پاڅېدو نو اکثر به مو په مستو شکره واچوله. د جوارو
سره ډوډۍ به مو په مستو کښې ماته کړه و به مو خوړه. او چه کله به سبق ته
تلم نو مور به راله د غنمو په ډوډۍ کوچ او شکره پوړې کړل او هغه به مو بیا
خوړل، لیکن دا خوراک د عامو پښتنو نه و دا د هغو خلکو چه خانان وو.
غریبانانو به سره ډوډۍ او شلومبې خوړلې.

زما د مور سره د مېښو ساتلو ډېر شوق و اکثر به یې پخپله د هغې خسمانه کوله او اکثر به یې
ورته پخپله لاس وابنه اچول او بوتاوه به یې ورله جوړوله. د ماسپښین به یې ماته پیروړۍ او شودې
راکول. ښځې به پیروي باندې ډېرې مینې وې چاله یې نه ورکوي او پرې خپه کېږي، ولې چه به
په کوچوکښې نقصان راځي خوره ورته نازبین وم او ماله به یې راکول او زما د مور چه به هر شی په خوله خو
ولګېد نو ماله به یې راکاوه او که زه به نه وم راله به یې ساته. چه کله به می د پلار سره ډوډۍ خوړله او چرګ به
پوخ کړې و نو هر حاله به یو هډوکې ورکاوه خو بابا به می ماله خپله برخه هم راکړه.

زمونږ د دې کوټې سره زمونږ یو بنګله منډوهم و او د هغه سره یوه ډیوډې چه په هغې کښې د بستو بستک هم
زمونږ په دې کوټه کښې لوې لوې کندوان هم وو چه په یو کښې به جوار او په بل کښې به غنم وو په هډې کوټه کښې به خوماڼ
چه په یو کښې دریابې په بل کښې مې او په بل کښې شکره او ګوړه، او ده، مرچکي به پراته وو او هډې خوماڼو ته به د غوړو تیار
چه د دوړي میاشت به راغله نو زمونږ ډېره مالداري وه او ډېرې په به وو مور به می اکثر په پښتمی کښې کالیراشین برنج
هغه به ډېر خوندناک وو او د پښتمی به یې یو غټه پیروي نیولې وه هغه پیروي زما ډېر خوښ وو او ډېر مزه داره به وو نو زه خ
وم روژې به مانه اوریدلې خو د دې پیروې د خاطره به می هره شپه ولې چه ما به پښتمی ته پاڅوي زه به پښتمی
نه پاڅېدلم مور به می ویل چه مونږ تا کښېنوو او ته نه راولېښېږې بیرته خملې او ویده شې. زه به یې به
پاڅولم او چه کله به یې پانه څولم نو چه سحر به راولېښ شوم نو ډېره لویه ژړا او انګولا به می جوړه کړه.

# سکول ته تګ او
# هغه وخت

ابتدائي تعليم ، د پېښور سکول - دکلي ماحول ، مشن های سکول
زما استاد وکرم صیب ، اختر ونه او میلې ، د اما مانو میاشت
کلي کلوېغي ، سخات خیرات ، یوه
لطیفه ، واده ښادي
دیوې پیغلې
قصه

## ابتدائي تعلیم:

د خوش قسمتۍ نه زما پلار سړه ددې چه متقي مسلمان و خو ډېر روښنفکره سړی و هغه د ملایانو د پراپیګنډې هیڅ پروا ونه کړه او مونږ دواړه ورونه یې په سکول کښې داخل کړو. پلار مې زه او محبت خان چه زما د کشر تره زوی و او زما هم ولي و او پلار دې مړ شوی و د کلي په جماعت کښې د اسماعیل استاذ سره سبق ته کېښېنولو. زما د سبق په ناسته زما مور او پلار ډېر خوشحاله شول او ډېرې شیریني یې ووېشلې. د اسماعیل استاذ نه مې قرآن ختم کړو، مور او پلار مې ډېره خوشحالي وکړه شیریني یې ووېشله او استاذ له یې ډېره شکرانه ورکړه خوزه په قرآن پوه نه شوم زمونږ کلي کښې یو پرائمري سکول و خو زما مشر ورور خان صاحب د غه وخت کښې د پېښور په سکول کښې سبق ویلو. ز هغه د سبق د پاره پېښور ته بوتلم او په هغه سکول کښې یې زه هم داخل کړم ده یکښې سبق ویلو ولې چه په دغه وخت کښې د کلو حالت ډېر خراب و. پر جنبې، دښمنې او ترېګنې وې، جنګونه او قتلونه وو د دې وغو دعوې او مقدمې وې.

## د پېښور سکول:

دغو ورځو کښې پرنګیانو د (جرګه سیستم) په نامه دلېښتنو په کور

چارو کښې لاس وهلو د پاره یو مخصوص نظام جاري کړي وچه د پښتنو
د رواجي قامي جرګو سره سمون نه خوري . اکثر به بې ګناه خلق قید شو او ګنهګار
به خلاص شو او نارینه خو پرېږده چه زمونږ ښځې لې هم تېروته راوښکلې
په ملک کښې ډېر ګډېږې و او دا ټول دې جرګې سیستم د نظام پیدا
کړې و . انصاف نه و . یو شریف سړي د پاره دلته ژوند ډېر ګران و
که زه په داسې ماحول کښې کلي کښې پاتې شوې وای نو د مالګې په کان
کښې به زه هم مالګه شوې وای . ما ته به دې تلو کښې که یو طرف ته فایده
ورسېده نو بل خوا مې تعلیمي تاوان وکړلو . د پرایمرې پورې تعلیم مې
په دې سکول کښې وکړو ما ته د پېښور د سکول نه د خپل کلي سکول ښه
ولګه چه د تعلیم ذریعه خو به دواړو کښې اردو وه خو په اتمانزو کښې به
د سکول استاذ پښتون و مونږ ته به یې په پښتو باندې پوهولې شو او
په پېښور کښې د سکول استاذ د پنجاب و . هغه له پښتو نه ورتله او یو
شپږ کلن او وه کلن ماشوم ته دا ډېره ګرانه شي چه په یو وخت هم پردې ژبه
زده کړي او هم په هغه ژبه کښې علم زده کړي . بله دا وه چه په پېښور کښې زه د
ډاکټر صاحب سره وم او د ډاکټر صاحب پخپله هم د لوبو سره شوق و او زه به
یې هم د لوبو نه منع کولم او د ماشومانو خو تعلیم او سبق ته د دې نه لګېږي د لوبو سره
شوق لري . زما هم سبق ته ډېره ډېره نه لګېده او د لوبو سره مې شوق و په سکول
کښې به د فټبال او کرکټ لوبې کېدې ډاکټر صاحب د کرکټ د ټیم کپتان و .
زه به لوبو کښې د نورو نه وړاندې وم ، زما په ورزش کښې د لامبو سره هم ډېر

شوق و . په کلي کښې چه به وم موربه مې په غوکې ساتلم چه سین له لاړنه شم
هسې نه چه سیند مې یوسي مابه مې دمور سترګې غالولې چه موقع به مې بیا
مونده نو په منډه به سیند ته لاړم . دمور اندېښنه مې بې ځایه نه وه زه
دوه کرته سیند وړی وم او دواړه کرته به دسیند په غاړه خوک ولاړ و زه به
یې وکښلم . زه چه په میونیسپل بورډ سکول کښې وم زما په مدرسه کښې دهغو
خلقو بچو سره تعلق پیدا شو اولوبې به مې ورسره کولې چاچه به دمدرسې صفا
کوله او خلکو به ورته بنګیان او چوړیان وئیل او خلکو به زه د دوی سره د لوبو نه منع
کولم خوزه نه منع کېدم نو په دې وجه به لې ماته هم بنه نه کتل خو ما د دې پروا
نه کوله . د ډاکټر صاحب دخلکو سره راشه درشه هم ډېره وه ماته به یې توجه نه وه
چه امتحان ته به میاشت دوه پاتې شوې نو هله به ډاکټر صاحب په خپله هم
کوشش شروع کړو او په ما به یې هم زور ولګولو . دغې میاشتې دوو
کوشش خو به زه په امتحان کښې پاس شوم خو کمزوری به وم .

د ډاکټر صاحب ناسته ولاړه به دې وخت کښې د دوه سره دغلام
سرور خان، د تهکال ارباب جمعه خان، د چارسدې پردل خان او دقاضي
خېلو میا محمد نه مان سره وه . دوی به ما باندې مهربانی او شفقت لرلو او ما
د دوی ډېر قدر او عزت کولو . دغه شان دښار شیخ صاحب او حافظ ج
زرګر او بشیر زرګر سره یې هم ښه تعلقات وو . ثمین جان خان، زما دسکو
ملګری و خو دی زمانه یو جماعت مخکښې و او د دغه وخت نه زما او د ده پ
ملګري شوې ده . دی دغلام سرور خان په سرپرستۍ کښې و . زما او د

تعلق مینته او محبت دومره کوالي نه ترموکه پوره وي . زما ورور خانصاحب چه کله لسم جماعت پاس کرو کلي ته راغی او زه یې د خان سره کلي ته راوستم او د چوټي د رخصتۍ ، په ورځو کښې یې د کلي په مدرسه کښې داخل کرم سحر به مدرسې له تلم او ماښکیو به کور ته راتلم .

## د کلي ماحول :

یوه ورځ د مدرسې نه راوتلم کورم چه یو لوی جلوس راروان دی یوسړی مخکښې دی او خانان او ملکان ورپسې دي . د خواو شا عوام هم ورپسې دي . د جلوس له مینځه زما یو ترور چه هغه زمونږ ملک وو ما ته اشاره کوي او لاس په تندي زدي خو زه یې په مطلب پوه نه شوم او د جلوس په تماشایم چه جلوس تیرشو او کورته راغللم څه شیبه وروسته زما هغه ترور مونږ کره راغی نو ما ته یې ډیرې خبرې وکړې چه سره د تعلیمه ته دومره نالایق یې چه ما درته اشاره کوله چه صاحب ته سلام وکړه تا زما په اشاره هم سلام ونه کړ . ما ورته وویل چه داخوک وو دوه راته وویل چه دا تانه دار صاحب و ما ورته وویل چه ما څه پیژندو ده راته وویل چه وس خو دې وپیژاندو آینده پام کوه . په دغه وخت کښې د پیرنګیانو د حکومت په برزیات رعب او دبدبه وه او خلکو به تانه دار هم د ملک لوی حاکم گانه . یوه ورځ املک صاحب راغی زه په کلي کښې وم ما ته یې وویل چه اسسټنټ کمشنر سره زه یې موقع له ځم ته هم راسره لاړ شه . زه هم ورسره لاړم . مونږ د واړه په اسونو سواره وچه د چپا رسدې تحصیل ته ورغلو اسسټنټ کمشنر هم راغی په اس سور و . دوهغه موقع مولیده چه بیرته راغلو او دیوبل نه رخصت شو نو ما په اس سور

اسسټنټ کمشنر ته ديوه بل نه درخصتيد وپه وخت لاس ورکړ او چه مونږ
راروان شو دی ماته ډېر په غصه شو او ماته يي وويل چه تا ولې په کالرو چه
اس نه کوز شوی وای او هغه له دې لاس ورکړی وای .

زمونږ د ټرنا ورسره خواکښي د زراعتي تجرباتي فارم مشر يو انګريز د مسته
براون يي نوم و . دغه وخت کښي زه د تعليم نه خلاص شوی وم او ماسره د زراع
ډېر شوق و زه به هم کله ناکله فارم ته تللم او دی زما ډېر دوست شو . يوه شه
زما ميلمه شو چه ډوډی مو وخوړه د ګپ شپ نه پس دی د رخصتيدو نه
و ما ورسره سړی کول چه ولی رسوي، ځایي د اټمانزو د نهر بنګله تقريباً زمو
د ځایه يو ميل ليری وه نو ده ماته وويل چه د سړي حاجت نشته بس
سړی دې ما سره لا تهين واخلي چه خلک زما تولېه ووينې نو ماته بيا خوک
ويلې نه شي .

زمونږ په کلي کښي يوه کونډه ښځه وه يو زوی يې و هغه پوليس نيولی و د
لوی کپتان کلی ته راغلی وو خلک ورته ورتلل داکونډه هم خبره شوه د خلکو
هم ورغله هغه وخت چه به پيرنګی کوم ځای ته تللو د ليری ليری ځايو نو خلک
چه خبريدل ليدو ته به يي راغونډيدل . دې کونډې ورته د خپل زوی
کښي عرض کړی دی هغه تا نه دار راغوښتې دی پوښتنه يي ترې کړې د
ته يي ويلي دي چه زوی به دې خلاص شي بوډۍ ورته په دعا لاس پورې
دی چه خدای دې تا نه دار کړه . نو هغه وخت تا نه دار خلکو ته ډېر لوی ا
ښکاريده . کپتان سوټ اچولی و بوډۍ چه کتلی ځادري يي په اوږه نښ

مشهوره داده چه عجب خان سته په چوړ ... تښتولی سیوره



ي ویلي دي زه یه ته خوشحاله هم نه لري ماکړه ډېره ښه خامتا پرته ده که دې خوښه وي
یوښادر ببه درله راوړم . دپولیس اختیارات هم زیات وو که به یي وهل او که به یي تړل
او که به یي پراسسل چاتوي پوښتنه نه کوله گناهکار به یي پرېښود او بې گناه به یي دا ایسار
کړ چاورته دومره نه شو ویلي چه په مخ دي خوسترگي دي د تانه دار په دوستي او اشنائي
به لویو لویو خانانو او ملکانو فخر کاوه او د تانه دار په دوستي به یي غریب خلک
ډورول او خوړل . د سودم یولوی مخوریز خان وعجب خان نومېده د تانه دار سره
ي په خه شي خبره اړولي وه تانه دار په ناروا مقدمه کښي ښکېل کړاو په پهانسي شو .
دېر تکیانو د ظلم او زیاتي په مقابله کښي به کله نا کله د ځینو غیرتیانو غیرت په
جوش راغي او پرې ورو به یي دا نکل . زمونږ د کلي یو خان وعبد الحمید خان
نومېده د هغه مشر ورور عمر خان د پولیس سره راز باز لرو او د خپل کشر ورور
ښکولو پسې یي تانه دار راوستي و . خدای دي پښتون ته د بدي وس نه ورکړي
چه وس ورمومي لکه د لړم د بچو خپله مور خوري . د عبد الحمید خان هسې هم
تانه دار سره چه رام داس نومېده او د پنجاب هندو او ډېر ظالم او بد ی
ورسره ي ورنه لگېده او نه یي پخپله د پولیس سره ناسته ولاړه خوښېده د عبد الحمید
خان او د ورور یي حجره شریکه وه . عبد الحمید خان دوی او ده دي چه ورور
یي دار پرې ورو خبر اوه ، تانه دار دروازه ورټکولي ده عبد الحمید خان د خوبه
پښن شوی دی غږ یي کړی دی چه څوک یي تانه دار ورته ویلي دي چه رام داس
ښه ورته وویل ابستي دی تانه دار د ورنتو سره پرې چغه وښکلي ده چه ورته خبري
ورته مرسته پوره کړی دی چه تانه دار صاحب مونږ معاف کړه . دومره خبره

تانه دار خپله بې عزتي گڼلې ده او ړې غرمېدلی دی د خان خو هسې هم ور
زره ډک وتوپک يې ورته راوړولی دی او ويشتی يې دی دده او د پوليس
دزې شوې، دی هم ولګېده، رام داس مړ نه و زخمي و خو خپله ساه يې بنده کړ
وه. هسې نه چه خلک ووايي چه ژوندی دی مړ يې کړی. رښتيا خبره دا ده
ظالمان بهادران نه وي ډېر بزدله او بېمانه وي. بهادر سړی هيڅ چېرې په چ
نه کوي. د شپې ديوټ و شو مجسټريټ راغی، سهار مونږ خبر شو د پېښې
ته ور غلو ډېر خلک هلته راجمع شوي وو ځکه چه د تانه دار سره مقابله لويه خبر
هر خوک راتلل چه پخپلو سترګو حالات ووينې خان قيد شو خو د تانه دار لو
هم عقل راغی. دغسې نور واقعات هم کېدل د تنګۍ اجون خان چه تحصيل
ورته سپکې سپورې کړې وې تحصيلدار يې تښتولی و. دغه مقابلې انفرادي
که څه هم دغه مقابلو قوم ژوندی ساتلی دی خو په دې طريقه کاميابي حاصلېد
د کاميابۍ د پاره اجتماعي تحريک او قرباني په کار وي نو د چا په زړه کښې چه د اقس
او احساس پيدا کېږي هغوی له په کار دی چه په قام کوښې او ځان سره دد
د احساس خاوندان ملګري پيدا کړي او په ګډه د ظلم، زياتي او بې عزتي مخ
چه په قام کښې داسې ډله پيدا شي او قوم تنظيم کړي نو کاميابي حاصلېد
هغه قام بيا څوک غلام ساتلی نه شي. د انفرادي او اجتماعي حرکت يو فرق دا
حکومتونه انفرادي حرکتونه خاموش کولی او ختمولی شي. همدا وجه ده چه
کښې ويره او ترس هم ډېر وي او حکومت اجتماعي حرکتونه وړلی نه شي
پکښې نه وي. ډېر انفرادي حرکتونه چه ډېر وغښتلو پښتنو يي رهبري کول

رأی ظالم بزدل وی

رأی انفرادی او اجتماعی

انګریزانو او پاکستان خاموش او ختم کړل مګر خدایي خدمتګار تحریک چه اجتماعي
تحریک و نه د پرنګیانو ظلمونو، وژلو، وهلو، ټکولو، قید ولو، بې آبه کولو، فریبونو، دسیسو
ختم کړاو نه د پاکستان د دوه دېرش کالو ظلمونو، شړ هولو، وژلو، جایداد ضبطولو،
قید ولو، پر متهوو اولا لجونو ختم کړ. په پښتنو کښې د هر لوی لوی پاچاهان او مشران
پیدا شوي دي او تېر شوي خو هیڅ یو په پښتنو کښې اجتماعي ژوند او د اجتماعي
ژوند فکر نه دی پیدا کړی اولنی تحریک د خدایي خدمتګار تحریک دی چه اجتماعي
ژوند او فکر ئې پکښې پیدا کړو.

## مشن سکول:

ماچه د پنځم جماعت امتحان ورکړو او شپږم ته پاس شوم خانصاحب
لسم نه یوولسم ته پاس شو. زمونږ په ټوله صوبه کښې کالج نه و په دغه کال په مشن
سکول کښې یوولسم پرانستل شوی و نو زما ورور خانصاحب په مشن سکول
کښې په یوولسم کښې داخل شو او زه ئې هم د مشن سکول په شپږم کښې داخل
کړم تر کومې پورې چه مونږ په بورډ سکول کښې وو په ښار کښې اوسېدو او چه په
مشن سکول کښې داخل شو نو د مشن سکول په بورډنګ کښې چه په چونې کښې وو اوسېدو
ئې ځای هوا صافه او پاکه وه د صحت دپاره ښه وه، د فټبال، کرکټ او ټینس
میدانونه ئې لرل ده بورډنګونه ئې لرل یو د مسلمانانو او بل د هندوانو وخو مونږ ته
د بورډنګونو نه بل ځان ته ځای راکړو. زما ډېره خوښ او زما هم خولې محبت خان
ښم به کلي کښې پنځم جماعت پاس کړی و او د سبق دپاره دلته راغلی و او مونږ سره
ځای و. په بورډنګ کښې د هلکانو دوه پښتانه وو او د صوابۍ د تحصیل وو

ځوک لوی ځوک واړه خو ډېر شریف هلکان وو زموږ او د دوی د ورونو په شان ګوز
وه . زموږ بورډنګ په چوڼۍ کښې او سکول موږ په ښار کښې ؤ . د دې سکول سبق نس
د بورډنګ سکول نه ښه ؤ . د ښوونې طریقې یې هم ښې وې استاذان یې هم ښه و
د هلکانو سره یې ډېر کوښښ کاوه .

## زما استاذ :

زموږ بورډنګ ته مخامخ د پرنسیپل چې مسټر هور نومېده بنګله وه
هغې کښې زموږ هیډ ماسټر وګرم صاحب او د هغه ورور ډاکټر وګرم صاح
په مشن هسپتال کښې وو او سېدل . دا دواړه ورونه د انګلستان د یو لوی س
زامن وو . دواړه یې مشن ته بخښلي وو په کومه مینه او اخلاص چې دې دوا
ورونو د خلکو خدمت کاوه زه یې بیان نه شم کولی . زه هغه وخت ډېر وړوکی وم
نه خو په دې خبر و پوهېدم . مسټر وګرم به چې کومه تنخواه اخیستله د هغې
یې زموږ بې وزلو پښتنو هلکانو ته وظیفې ورکولې . یوه ورځ زما پښه ګوزک شو
ډاکټر وګرم خبر شو ، راغی زه یې خپلې بنګلې ته بوتللم او به یې ګرمې کړې زما
وې نښلې او بیا یې زما په پښه پټۍ وتړله . ربښتیا خبره خو دا ده چې زموږ
په قول « خیر النّاس من ینفع الناس » باندې دوی عمل کړی دی . وا
چې ناس یعنې د خدای مخلوق خو پرېږده د خپل قام ، ورور او عزیز خدم
تیار نه یو . خدمت خو لا پرېږده په اور کښې وانه ولاړ دي او خلک خو خ
خوار او ذلیل کړي یو . ما کښې چې د انسانیت ، قوم پرستی ، ورورو
ولۍ او وطن دوستی او د خدای د مخلوق د خدمت کوم جذبه پ

ده په هغې کښې زما ددې استاذو کړم د ډېر لاس دی. ما به دا فکر کولو چه دوی
د کوم ځای نه راغلي دي زمونږ د قام نه دی زمونږ په مذهب نه دی دلته
راغلی دی او زمونږ د بچو خدمت کوي او غریبانو ته د خپلې ګېډې په خوړو کوی
او زمونږ خپل وطن دی، زمونږ د خپل بچي دی، زمونږ د خپل قوم دی او
مونږ د هغوی د پاره هیڅ نه کوو بیا به می دی خپل قوم او ملک طرفته خیال لاړ
نو ما به لاړې ته ډېر فکر کوه چه زمونږ خانان، نوابان، ملایان او تعلیم یافته خلک
سره ددې چه مونږ یو قوم، یو وینه او یو مذهب یو خو دا جذبه راکښې نشته چه
ددې خپل غریب قوم د بچو سره امداد وکړو په مشن سکول کښې نیمه ګنټه
د انجیل د درس د پاره وه «وال دی کړیو» نو می یو ډېر ننګي و هغه به راته د انجیل
درس وایه او وعظ به يې هم راته کاوه. زه وړوکی وم په دې خبرو دومره
نه پوهیدم خو ثمین جان خان زمانه یو جماعت مخکښې و هغه پرې پوهیده ما ته
به يې ویل چه زه د «وال دې کړیو» وعظ ته غوږ نه نیسم په غوږو کښې ګوتې ږدم
خلکه چه بیا ما تأثیر کوی هسې نه چه بل څه چل را باندې وشي.

## کلیوالی لوبې :

زه د وړوکوالی نه کفایت شعاره وم او د خپل خرڅ د پیسو نه به می بچت
کاوه همدا بهه ده چه ما په خپل ټول عمر کښې د چا نه قرض نه دی غوښتی
او نه چا ته محتاج شوی یم. خلکو زما نه قرضونه اخیستي دي چه ډېر ورانه
خوړلي دي او زما د ورور خان صاحب منت بزارت و. د ګرمۍ په چوټیانو
کښې به استاذانو ډېر کار راکاوه خو چه زمونږ به کلی ته پښې ورسیدې

بیا به مونږ وو اولوبې به وې . زمونږ به هم درس ته د ده نه لګېدلو او

او نه هم راته چانه ویل . دلوبو سره دخلکو شوق هم ډېر و قسما قسم لوبې او ساع

تېرې وې حجرې به دخلکو نه ډکې وې په حجرو کښې به تنې کېښلو پټ

کو نجکه به د شپې په حجرو کښې کېده . لونډان به دشپې په حجرو کښ

خلاستل او دواده خاوندان به کورو کښې ویده کېدل ، په حجرو کښې به ترناو

ځوانان په لوبو او ګپ شپ لګیا وو دومره کارونه او مصروفیت نه و . ژوند

پیچیده نه و ، خودغرضي نه وه ، صفا ، سوتره ژوندو . په اخترونو کښې به لو

خوشحالي وه ، خلکو به دیوبل کوره دخوراک خیزونه لېږل . دزانګلو د بار

دبرګولوي لوی تالونه او بارې چغونه وو . ښځو به په کورونو کښې تالونه اچولي و

یا به یې باغې چغونه ایښې وو چه دکورو کالې به خلاصې شوې ایښې او

به شروع شوې ځای په ځای به کېدې کېده ځوانانو به یکښې زور ونه ازمې

زمونږ به کلي کښې کال په کال زور وره کېدې کېده او دلیرې لیرې علاقو ځوا

به یکښې برخه اخیسته او خپل زور او پهلوانی به یې ښودله . په زړو نوماتو

به ورته راتلل ، زمونږ دکلي خانان به دوه دلې شویو داسې سهې به یې

کرچه دچاپېره به یې نه کوله ګېر چاپېر به خلک ناست وو او به منتخ کښې

دکېدې میدان و دیوې پرې نه به یو ځوان راپورته شو به میدان کښې

دبلې پرې نه به چه چا ځان کښې دهغه دمقابلې طاقت لیده ورته به راپو

کشتي به دمنصف په اجازه شروع شوه دکومې پرې پهلوان چه به

شو دهغې پرې زلمیان به راغلل خپل پهلوان به یې په اوږو وکړ بیا به میدان

يي وګلو ځاږه او خپل ځای ته به يي ورساوه او خانانو به ورله انعام ورکړاو ددې پرې خلکو به په هغه بله پړه باندې « الا الا » چغې ووهلې به دې سلسله کښې يوه واقعه زما ياده شي، چه داسې يوی کېږی له يو ظلمی د اتمانزو را پاڅېدو هغه ليسی د مقابلی د پاره د دواوی يو ظلمی راپورته شو. لکه چه د هغه وخت قاعده وه هر يو کېږ مار به خپل خپل پير يا زيارت را يادوه، دوی چه خپل خپل بابا ګانو ته مخ واړه وو او سلامونه يي اوکړل. نومنځه ګړی دواوه وال کېږ مار ته وئيل چه ستا بابا چه به دې سيند و راپوری ووځی. نو اتمانزو وال به د هله کار خلاص کړی وی ولی چه د هغه بابا ګان د کېږی د اټک ته نژدې وو. او وشوه همداغسی دوواوو وال را اوپرېږید. کله به يو هم ونه پرزېده او دواړه به ستړی شو منصف به ورغی او خلاص به يي کړل. کله ناکله به په لوبو کښې جنګ هم وشو.

نورې لوبې هم وې لکه انګۍ، شړنګۍ، لنډی ماری، پټ پټانی، ښکر پواتی ګيتکه، چيته کونجکه، چيند رو او نور. په حجرو کښې تاشونه هم کېدل د غوزانو لوبې هم کېدې. ما سره د دې ټولو لوبو شوق واوکولې مې او نورو نه به مې ګټلې. دکوم شي سره چه به مې شوق و په هغې کښې به ما هر وم نو ځکه په لوبو کښې ما هر وم او چه د سبق سره مې شوق نه و په هغې کښې مې خوند نه و او په سبق کښې مې چه د حساب جومټری اوتاريخ سره شوق و په هغې کښې تکړه وم او د نورو مضمونو سره مې شوق نه و په هغو کښې کمزوری وم او د نه شوق وجه هم دا وه چه د دې مضمونو نو ابتدائی زده کړه ما په ښار کښې د پنجابی استاذ نه په پردی ژبه کښې کړې وه. ښه مې نه وه زده کړې ځکه به مې ورته د ده هم نه لګېده په حجرو کښې به پوچ لوبه هم کېده او د لوبې په

یا میوه ، دودی ، به چای، شوه هغې په پره چه دله کومه ده کېږي لګه هم شرط په ګټلو
کېده تول چایو په شرط په اکثر . ول داوړ و شوی اېښودل شرط په خه شی په چه کنې
ته دا قصه عجیبه یوه چایو د می بابا . ه ده خوښېږ به خلکو د و تیز نوی چای چه ځکه
چای (و خان لوی کلي د زمونږ ( خان باز شاه و راغلی افسر یو ته مدرسی چه کوله
کښې پیالیو په بلغمی ، وې رواج چای شنې وخت هغه راکړه هم ماته پیالې یوه راوړه
پیاله په ماخپله و ناست ) ووه تره میرنی یو زمونږ ( خان افضل میر ماسره . کېدې شکل په
پ يې حل یو په شو نه پوه خبره په زما هغه ده تو چه وویل می ورته وکړه له هغه
رواج او ده انده ږ په نه چای چا وخت هغه چه ولې ده سوزېږ و يې خوله تولهٔ واروه سر
. و لږ ده

## اختروڼه او میلې :

ل کېد جمع کښې په خلک نو زړ کو په لي کېد میلي لويي لويي کښې نو اختروڼ په
دیس د جوارې ، ل ېد ک به ان دم ، ه کېد اچول به انونه ات ، ه کېد کښې په بازی نیزه
ه پار د لمی دسور ووه به ان یاز سا ، ل کېد نګ څ کښې نو کا انګو ز په به ک خل او ه ېد ک به
ر زو به خانان ، نو اسو په به څوک وو سواره نو سپا او په به څوک ، وو نه اسو دلګو
خا ونډ کا چم یل څ د رځ و رغ د په به نو ا خان و ثرک ا . وو سي ور په به ک خل ږ د شو کېلي
خ د نو ، انا خ په دا ، ل رو م يې به نو یا ت می او مو قل او نو پو کبا په ، ل و بی ره س ه ان ځ د
د فرا ان د ب ت وخ ني ی ځ او شو و ک ن ج کښې له می په ب کله نا کله ، و ي ند غو ک لن ق یو
ل ح یو . ه کېد نه ق فر ه ګنا بې او ار هک ن ګ د ب یا ب نو ړ یارک ت اخ ل ک ش ي اع م ت اج نګ ج ن
نا خا د ی لک د ږ ن مو ز ي ن ښ ک له ی م په وم ي ل ت ه ت ي ل ي م رو ص ن د او م و ي ک و ړ و ه ز چه و ش و

د پړانګو دخانانو جنګ وشو دجنګ نه پس هغوی خو دمېلې نه پښې سپکې کړې او وتل، مونږ یې خبر نه کړو، په داسې موقع خلک تل خپل کلیوال خبروي او دمېلې نه یې وباسي. پړانګ کلي دمېلې ځای ته ډېر نږدې و او په یوه چغه مېلې ته راورسېدل درا رسېدو سره یې په مونږ برید وکړ زمونږ نوکرانو خوځه مقابله ورسره وکړه خو مونږ لږ وو او هغوی ټول کلي وزه ورو کې وم په اسپه سور وم چه داخلک مونږ ته رانږدې شو درحُرو عبادت کاکا زر زر زه په غېږ کښې راواخیستم او دا سپې نه یې راواچت کړم خو چه ځنګه یې زه راواچت کړم دپړانګو یو سړي لوي ډانګ اسپې له راخلاص کړو او په زمین ولګېد که دعبادت کاکا همت نه وی او زه یې نه وی راپورته کړې خدای زده که زه دهغې ګوزاره ژوندی پاتې شوی وی. په دې جنګ کښې ډېر کسان زخمیان شول او زمونږ په نوکرانو کښې خو روغ نه و پاتې. دا مېله به دچارسدې تحصیل سره داختر په دریمه ورځ لګېده او دنصرو مېله به یې ورته ویله په دې مېله کښې به ډېره زوروره نیزه بازي کېدله. دلیرې لیرې ځایونو نه به شوقیان منه ساتلې اسونو او نیزه بازان راتلل. لوبه به په ډېر جوش وخروش روانه شوه نیزه بازانو کښې یو تربله دسیالۍ او رقابت مقابله وه او په تماشګیرو کښې هم جوش وخروش و. دداسې لوبو نه په خلکو کښې دمېړانې، شجاعت او ټینګار جذبات قوی کېدل.

دشوقدر (شعبان المعظم) میاشت چه به وخته خلکو به ډېرې خوشالۍ کولې خصوصاً هلکان چینکې به په کوڅو کښې اخوادې خوا ګرځېدل خوشالۍ به یې کولې ددې میاشتې په ۱۵ به شوقدر و. دشوقدر په شپه به هم لوبې مېلې جوړې وې منځو او جونو به په کورونو کښې توتکې، چوړچوړې، ماتابۍ او پټاخې خلاصولې او

هلکانو او نارینه وبه بهر دوه دلی جوړی کړی ښځسونه او ښکروونه به یې ډک کړي
وو یو په بل پسې خلاصول. کله به یې یوه ډله په مخه کړه او کله بله، کله به یې شستي او
او اور ډلهی اسمان ته ویشتي. کومو خلکو چه به ښکروونه خلاصول هغوی به د
ځرمنو جامې اغوستې وې چه او ورپرې تأثیر ډېر نه کاوه. خندا به وه خوشالي به وه
مستي به وه او ځینو مذهبي خلکو به په دې شپه دا کاروونه نه کړل په عبادت به
یې شپه روڼوله او نورو ته به یې هم داویل چه په دې شپه عبادت ډېر ثواب لري
خو چا به ورته ډېر غوږ نه ایښوده. دا د پښتنو د قوت نښې نښانی وې چه خو مره
پرنګي د غلامۍ پړی مضبوطېده هماغومره د پښتنو جذبې مراوي کېدلې.

## د امامانو میاشت:

لکه څنګه چه مونږ د خوشالۍ اختروته لول د غسي مونږ د غم او خپګان
ورځې شپې هم لرلې د امامانو میاشت یعنې محرم د مسلمانانو یوشر یک یادګا
دی زمونږ مسلمانانو ته په دې کښې یو لوی درس او سبق پروت دی. د اسلا
پیغمبر صلی الله علیه وسلم په مدینه کښې د جمهوریت یوه روښانه د یوه بله کړې
زه دا منم چه د غه جمهوریت یوازې د مدینې د ښارو او د مسلمانانو و یعنی
مسلمانانو مشر او د رسول الله صلی الله علیه وسلم خلفا او جانشینان به د صح
په رایه ګیری منتخب کېدل.

په ټوله دنیا کښې تیاره وه مګر په مدینهٔ منوره کښې د دموکراسۍ ډیوه بله
او دا ډیوه هم د حضرت عمر رضی الله عنه پورې بله وه او کله چه د هغه د مرګ
په مسلمانانو کښې د پیسې او اقتدار شوق پیدا شو د غه ډیوه مړه شوه او تر اوسه

مړه ده. یورپ چه په تیاره کښې پروت و هلته هغوی بله کړه. هغوی پرې روښنانه شو او مسلمانان چه هغه مړه کړې ده تراوسه پورې بله نه کړې شوه او نن چه څومره د مسلمانانو ملکونه دي په هغې کښې د موکراسي (جمهوریت) نشته څه وخت چه اقتدار د بني امیه خاندان ته په لاس ورغی معاویه راپاڅېد و د مسلمانانو هغه حالت یې هم ختم که. معاویه په خپل ژوند د اقتدار او پیسو په زور د خپل مرګ نه وروسته خپل زوی یزید ته د مسلمانانو نه بیعت واخیست چه د مسلمانانو امیر به وي. د اسلامي خلافت د موکراسي او قومي حکومت د تاسیس دپاره پیغمبر صلی الله علیه وسلم او د هغه اصحابو ډېرې هلې ځلې جد و جهد کړې وو ډېرې قربانۍ یې ورکړې وې، ډېر زحمتونه یې ګاللي وو او هغه بني امیه په دغسې چل ول له مینځه یوړل نو ځکه که نور هر څوک چپ پاتې کېدی شو، حضرت حسین چپ نه شو پاتې کېدی دا مونږ مسلمانانو ته د ظالم او مستبد حکمران د مقابلې درس ورکوي.

محرم ته پښتانه د امامانو میاشت وائي، دا میاشت د غم او خپګان میاشت ده خصوصاً په اولسو ورځو کښې به چا ښادي، خوشالي، خندا، توکه ټکاله نه کوله. د حسینو په اروا او د خدای په نامه به خلکو شربتونه ویشل، لوی لوی خیراتونه به یې کول، ښځو به په کورونو کښې او نارینه وو به په حجرو کښې جنګنامې لوستې او خلکو به ورته ژړل او ښکې تو یولې به یې د ډېر ثواب ګڼل، د شپې به ښځو په کورونو کښې ویر کاوه هلکانو او جینکو به په دې لسو ورځو کښې خیراتي داني غونډولې او په لسمه ورځ به یې د جمع شوې غلې نه خیرات کاوه. په لسمه ورځ به نر او ښځې هدیرو ته تللې په قبرونو به یې د امام حسین د تندې دیاد دلو په نسبت اوبه اچولې، ماښام به هر چا

دخپل حیثیت سره سم خیرات کاوه او دې ته به یې دحسنینو خیرات والیه او دشپې
به وېرونو کښې به یې داستانې کولې دحسنه څوک به دې ژاړي وای ، ولای حسن
درزالی !» او بیا به یې سینې وهلې او ژړا انګولا به یې کوله .

مونږ پښتانه دحسین ډېر قدر او عزت کوو او په مونږ ډېر ګران دی ځکه
چه دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم لمسی وو او په هغه ډېر ګران وو نو ځکه به
مونږ هم ډېر ګران دی بله داچه امام حسین هم دحق او جمهوریت دپاره راپاڅېد
او مونږ هم دخپل حق او جمهوریت دپاره راپاڅېدلی یو هغه هم مظلوم و مونږ هم
مظلومان یو ، هغه هم دظلم سره دمقابلې دپاره راوچت شوی و او مونږ هم دظلم
سره دمقابلې دپاره راپورته شوي یو . هغه هم مسلمانانو ته دجمهوریت حق غوښته او
مونږ هم مسلمانانو ته جمهوریت غوښتو هغه هم دامن دپاره کار کاوه او مونږ هم
امن دپاره کارکوو .

## کلي کلوبغي :

زمونږ روغ رنځور ، زمونږ غم ښادي او زمونږ مړې ژوندی ډېر له خاص
دک او مینې محبت مظهر وخو په رسمونو او جونو کښې ډوب . چه څوک
رنځور شو خپلو خپلوانو او دوستانو به یې پوښتنه کوله یوازې خپلوانو او دو
نه بلکه دکلي او ولس عامو خلکو به یې تپوس کاوه او که به مریض سخت شو
خو به ورته نژدې کسان شپه او ورځ ناست وو . دصحت دپاره به یې ورته
دعاګانې کولې ، خیراتونه به یې کول . دعلاج دپاره څه خاص انتظام نه و د
مرض دپاره ببل ببل باباو او دهر بابا دزیارت ببله ببله طریقه وه . الغ چه د بابا

دقبرو ونو خاورې به خوړ ده کنهلی شوه او دمرضونو د پاره علاج کېدل کېده. دباباگانو او زیاړتونو نه علاوه دملا صاحب، پاچا صاحب او میا صاحب دم دعا او تعویذ دعلاج طریقه وه. دیونانی طب حکیمان هم وو تجربه کارو، سپین سرو ښځو به نظر ساتو. سپین ږیرو به دمقامی بوټو او دارو گانو په ذریعه علاج کوو. نایانو به ددانو او ذخمونو علاج او مرهم پټی کوله خو ډېره مخه زیارتونو او باباگانو ته وه. او چه څوک به مړ شونو په هغه ورځ به دکندی خلک خپل کار ته نه تلل او که مړی به مخور یز سړی وو نو ټول کلی به خپل کاروبار پرېښود او دمړی دگور او کفن، دخدمت او غم د پاره به دمړی ځای ته راغونډ شول نارینه به په حجره یا جومات کښې ناست وو او ښځې به په کور کښې غونډی شوې. مړی ته به چه څومره ښځې راتلې تولې به ویر او ژړا کښې شریکېدلې او نارینه وکښې به یوازی دمړی نژدې کسان او دوستانو ژړل مړی به کټ کښې پروت وچه څه وخت به یې لمباوه نارینه به ورغلل او کټ به یې واخست په دې وخت کښې به د ښځو د ژړا انگولا شور زوږ پورته شو په زوره زوره به یې ویر کاوه سخونه به یې وهل او په ویر کښې به یې مړی ستایه چه مړی به یې په تخته واچاوه نو خپلوانو او دوستانو به یې په تخته روپۍ اچولې، دغه روپۍ به دملاوې. دلمبولو نه وروسته به یې کفن ورکړو په کټ کښې به یې ایښې و خپلوانو او دوستانو ته به یې مخ ښودو. بیا به جنازه اوچته شوه خلک به جنازی پسی روان وو او خلکو به دجنازې کټ په څلورو کسو په اوږه کړی وا او وار په وار به خلکو یو دبل نه جنازه اخیسته او دمه به یې ورکوله هدیری ته به یې ورساوه په اوار میدان کښې به جنازه کېښېښودل شوه او اذان به وشو چه جنازه تیاره ده دچا چه به او دس وا او جنازه به یې کوله

صفونه به یې جوړ کړل د جنازې مونځ به وشو دعا به وشوه خلک به راتلل او د مړي مخ به یې کتلو. ملایانو به د سخات د پاره دوره جوړه کړه کښیناستل به

## سخات خیرات:

سخات به د مړي د حیثیت په اندازه و که به موړ شتمن خان او مخور یز سړی و سخات به یې ډیر و او صیله به یې ډیره جوړه وه ملایان به ډیر و که غریب سړی و سخات به یې کم و ملایان به هم کم وو او که به سخات نه و ملایان به هم نه وو. کوره، صابون، پټکی، قرآن شریفونه او روپۍ به په منځ کښې کښېښودل شوې مشر ملا صاحب به اول د مړي د وارث نه د مړي د ګناهونو د کفارې د پاره د اخیزونه د صدقې او سخات په توګه ځان ته قبول کړل بیا به یې یو بل ته په همدې طریقه بخښل او یو به د بل نه قبلول. ملایانو به د غه ټول مال یو ځل ځانته قبول کړ او بیا به یې خواکي ملا صاحب ته و بخښه چه دوره به وشوه نو بیا به یې د سخات په وېشلو شروع وکړه ماته به د سخات کړ څو لو مراسم ښادوله ښکاریده پردی مال یو بل ته بخښې خدای او قام ته دوکه ورکوي. زه د عربو په ټولو ملکونو کښې ګرځېدلی یم ما هلته حتی په مکه معظمه مدینه منوره، نجف او کربلا کښې هم چېرې د اد سخات او خیرات طریقه نه ده لیدلې حال دا چه هلته دا طریقه ده، چه مړی اوشي، خلک خبر شي، بیا جنازه جومات ته راوړي هلته لې جنازه اوشي د دعا نه پس وارثان خپل مړی د ښخولو د پاره مقبرې ته یوسي او نور مسلمانان خواره شي. دا اسلام خو مونږ ته د عربستان نه راغلی دی خبره دا ده چه دا قسم عادتونه په مونږ کښې خود غرضو خلکو پیدا کړل

په اسلام کښې داخیزونه نشته بلکه داچه دا دومره مال پل ته ورکړي چې ښځې ورته
سړی نا دار وه او محتاجه هم وي. بلکه داچه سړی مړشي دهغه عملنامه خوبند ښي
داخیرات او سخات به څنګه دهغه په حسنا تو کښې لیکل کېږي. یو سړي حضرت
رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی عرض کوي چه یا رسول الله زما پلار مړ
دی او له هغه نه دوه کوټې له ګجورو نه دکې پاتې دي هغه ورپسې خیرات وم رسول
الله صلی الله علیه وسلم ورته وایې که ستا پلار ځپل ژوندانه ددې ګجوروه نه دوه
دانې دخدای په رضا ورکړې وی ددې دوه کوټې نه بې ثواب زیات و. دګناه او
ثواب په حقیقت دبې عمله علماو به وجه څوک پوه نه شول. دخلکو په مغزو کښې
ملایانو داکینولې ده چه ګوندې خدای هم ددنیا د پادشاهانو په شان دی چه
هغه ته دټکس او دالې ضرورت دی. دوی په دې فکر نه کوي چه خدای بې نیاز
دی هیڅ شی او هیچا ته محتاج نه دی. که خیراتونه دي که ذکات دی که
صدقات دی، که لمونځ دی، که روژه ده، که حج دی دا تول زمونږ دښیګڼې
پاره دي که ښه کوو هم دخان دپاره دي او که بد کوو هم دخان دپاره دي.
ښه کوې دنیا به دې هم اباده وي او په اخرت کښې به دې هم په کار شي او که
کوې په دنیا کښې به ذلیل، حقیر او خوارې او په اخرت کښې به درته عذاب
ی.

زمونږ ملایانو سره دهر تعلق و ماهرې دهر قلم، او عزت کاوه او همیشه
ی ور سره په دغسې خبرو بحث او تبادل خیال کاوه او دا به مې ورته ویل چه
خیراتونو او سخاتونو دا طریقه په اسلام کښې ښه نه ده. اسلام چه خیراتونه او

ذ کا تونه واجب کړي او لاانهام کړي دي په هغې کښې لوی راز دی داچه زمونږ خوږ
رسول ؐ وايي چه « صدقه بلاء دکوی » دا بلا تا سو پېژنئ دا خو دغریب او امیر
ترمینځ نفرت نه بلا ولاړېږي نوچه شتمن خلک د بېوزلو په بنسته وکړي د هغوی
سره د مصیبت په وخت کښې مرسته وکړي نو دغریبانو د خپلو امیرانو سره
مینه محبت پیداشي او دبلا مخه ونیول شي او چه امیر د غریب هیڅ پوښتنه
نه کوی غریب په مصیبت کښې وي او امیر په عشرت کښې وي نو دغریب په
زړه کښې تېرېږي چه وطن خو خدای زمونږ تولو ته شریک راکوی دی
خنگه زه په مصیبت کښې ژوند تېروم او دا بل چه زما ورور عزیز دی زما
شان سړی دی، دی ولی په عیش عشرت کښې دی دده په زړه کښې عو
پیدا شي او ورو وروي زړه امیرانو ته پرسېږی تر څو چه بلا ورنه جوړه شي
کوري د رسول الله (ص) په وخت کښې به د هر څه نه مخکښې د قرض د ا
کولو غم خوړل کېده. رسول (ص)، تر هغه وخته پوری د مړی جنازه نه کو
تر څو پوری به د مړی په ذمه قرض خلاص شوی نه و او که د مړی وارثان به نا
او غریبان او د مړی قرض به یې نشواداکولی نو بیا به رسول الله (ص)، نورو مسلما
وویل چه څنده توله کړئ او دده دا قرض خلاص کړئ نو چه قرض به خلاص شو
هله به یې جنازه کوله، بیا به نور تکفین تجهیز کېده او نن بالکل اې ولی خبر
د کوم مړی د وارثانو د مخه نه کېږي نو هغوی لا جایداد کا نه کوی لا په سود رقم
خو مړی پسی سخات ضرور کوی او یوازی خو د مړی خیرات او سخات نه
د پیرانو پیر صاحب یو لسمه ده، د کا کا صاحب شکرانه ده، د سیدانو، میا

او صاحبزاده ګانو ننګرهاني اوشکراني دي که دا ټول خیراتونه په قومي بنسیګرو لګیږي
نن به مونږ هم د دنیا د ترقي یافته قومونو په قطار کښې ولاړ یو . د سخات او خیرات
د پاره مونږ په سود او ګانه ( ګروې ) ، قرض اخلو چه زمونږ دا رسم پوره شي . زه
یو کال د اوږې د ګرمو تېرولو د پاره کوه مري ته تللی وم هلته را باندې یو څو کسه
ملایان چه زما دوستان وو راپېښ شول ما ځیګرمي د سیل صفا د پاره له ځانه
سره راوا یستل ګرځېدو ګرځېدو یوې بنګلې ته ورسېدو ما ملایانو ته مخ راواړوه
چه دا بنګله ښکلې ده ؟ دوی وې ډېره ښکلې ده ما وې دا شنه چمنونه او د
ګلونو باغچه لې ښکلې ده ؟ دوی وویل چه ډېر ښایسته چمن او ښایسته ګلونه دي او ډېر
مزه داره باغچه ده ماوې هغه ماشومان چه پکښې لوبې کوي دا ښکلي دي دوی وویل
ډېر پیمخي او ګلالي ماشومان دي ما ورته وویل هغه موټر چه د دیوړې صفا کوي دا
وینئ وویل یې هو ډېر ښه موټر دی ماوې هغه چه په کرسۍ ورته ناست دي جامو ته
یې وګورئ ښکلې دي دوی وې ډېرې د ولي جامې یې اغوستي دي ماوې دا سړي
پېژنئ چه څوک دي ؟ دوی وویل چه څوک دي ؟ ما ورته وویل چه دا د پرنګیانو ملا
دي ، چه قوم یې په بنګله کښې اوسي ملایې هم په بنګله کښې اوسي ، چه قوم یې په ګېډه
موړ وي ملایې هم په ګېډه موړ وي چه قوم یې په جامه پټ دي ملایې هم په جامه
پټ دي ، چه قوم یې په موټر کښې ګرځي ملایې هم په موټر کښې ګرځي او زمونږ چه
قوم د هستوګنې کوډله نشته تا سو هم جوماتو کښې اوسېږئ او چه په ګېډه ماړه
یو تا سو هم دروازه په دروازه ګرځئ چه « وظیفه داورئ خدای موبخښه » .
چه سخات به ووېشل شو بیا به نو ملایانو پرې مسئلې کولې زمونږ په کلي کښې

مړی شوی ؤ یو ملا صاحب مسئلوته وودرېد اودا مسئله يې وکړه چه یو سړی دېر
بدعمله اوبد چلند وو، سود خور و، جوارګر و، خوني و، زاني و، غل و، ډاکه مار و،
او هیڅ ښه کاريې په عمر کښې نه وکړی صرف دهرې جمعې په شپه به يې
اووه دودي دخدای په نامه جومات ته لېږلي داسې مړشو زامنو، ښځو
او پس ماندګانو يې ورپسې ډېر ویر وکړ او دا به يې وویل چه دده به په قبر کښې څه
حال وي اخر یوه شپه خپل یو زوی ته په خوب کښې راغلی دی او ورته يې ویلي دي
چه تاسو زما غم مه کوئ زه ډېر په ارام او مزو چرچو کښې يم زوی تری پوښتنه
کړی ده چه پلاره تهٔ خو ډېر بد عمله وې پلاريې ورته وویل چه تهیک ده خو مونږ ته
• مومعلومه ده چه ما به د هرې جمعې په شپه اووه دودی خیرات ورکولې هغه
دودی می دلته په کار شوې څه وخت مو چه زه ښخ کړم او تاسو دانه لاړئ نکیر
منکر راغلل او زما نه يې پوښتنې شروع کړې چه: « من ربک وما دینک »
جواب نه شو ورکولی نو کوز زونه يې راپسې را اوچت کړل چه راخلاصول يې را باندې
چه په دې کښې دوه دودی راپیدا شوې او ورته مخې ته شوې او زه يې بچ کړم
چه نکیر منکر لاړل زما د قبر په خلورو کونجو نو کښې سوري وشول او دهر سوري نه
د دوزخ لمبه راننوته نو څلور دودی راغلې اوهره یوه يو یو سوري ته دال شوا و دا
مخ يې ونیوه او دا یوه زما خدمت کوی. بیايي ووې چه په خیرات کښې ډېر
ثوابونه دي او ما ددې مسئلې ثواب ددې مړي په اروا بخښلی دی. ما ته دا
عجیبه ښکاره شوه ماوې ددې خو دا مطلب شو چه هره بدعملي کوه، زور ظلم
کوه خو اووه دودی خیرات ورکوه نو مزې کوه.

د سخات نه پس به بیا نور خیراتونه شروع شو هر ما بنام به د مري په اروا
خیرات کیده ترجمي پورې به بیا هره جمعه خیرات کیده تر څلوېښت ورځو پورې .
په څلوېښتمه ورځ به بیا لوی خیرات وشو او بیا ورپسې دکال خیرات دی . په دغه
طریقه به زمونږ د قام په کال کښې په لکونو روپۍ خرڅیدې که دا په یو بیت المال
کښې جمع کیدی او په قامي کارونو او غریبو لګیدی نو قام ته به یې څومره فایده رسیدې ؟

## یوه لطیفه :

یوه ورځ زه په حجره کښې ناست وم چه زمونږ د امام صاحب زوی راغی
مانه یې ووې چه زه وادهٔ کوم ما سره څه امداد وکړه . ما ورته ووې زه همیشه وېنم
چه د مړي په سخات کښې ته د ډېر مال مالک شې که تا ته ضرورت وی نو بل ته یې ولې
بخښې . هغه را ته په جواب کښې ووې چه دومره مال هیڅوک د زړه نه نه بخښی مونږ
یې له وېرې یو بل ته بخښو او بله دا چه زمونږ یقین وی چه مونږ ته یې څوک نه راکوي .
راکول خو بېرته وه مووهي . ما ورته ووې چه هلته پکښې نه وي او مال هم ستا
کیدی شی نو بیا ؟ ده را ته ووېل نو بیا خو به یې زه هیچا ته ورنه کړم . ما وې رښتیا
وایې نو تیار یې هغه ووې چه بالکل رښتیا وایم او بالکل تیار یم نو ما ورته ووېل چه نن
زما د تره لور مړه ده ډېر سخات یې دی ستا وادهٔ پرې شنه کیږي . په دایره کښې
کښېنه چه ستا وارثي او سخات دې خان ته قبول کړ بل ته یې مه بخښه وواېه چه
زما ضرورت دی بل ته یې نه شم بخښلی . ده ووې دا خو به زه و نه کړم ما نه به یې څوک
راکړي ؟ د شموزو خان دی هسې نه چه بې عزته مې کړي ما ورته ووې چه زه به
دې شانته والا یم څوک دې بې عزته کولی نه شي وې چه ستا امداد را سره وي

نو بیا خوزه دچاپروا نه کوم . زما او دده په همدی فیصله وشوه چه روانیده ماورته
ووې چه پام کوه داخبره دی چاته له خولې نه ونه وځي چه جنازه وشوه او سخات ته
ملایان په دایره کښې کښیناتل ده دې خوا آخوا وکتل چه زه یې ولیدم الاړ په دایره
کښې کښیناست کله چه دسخات بخښنه اخیسته شروع شوه زه وړ وغوند
راغلم دده په شا ودریدم چه څه وخت ده ته سخات وبخښل شو او ده واخیست
دده رنګ تک زیړ شو او ماته یې وروسته وکتل او وې ویل چه ماته ددې مال
ضرورت دی زه یې بل چاته نه بخښم . دملایانو دهلې کولې څه اراده وه خوزه
مخکښې شوم او دهغوی نه می تپوس وکړو چه ملایانو صاحبانو شریعت په د
باره کښې څه وایي ؟ دوی وویل چه شریعت ده ته حق ورکوی چه بل ته یې بخښ
او که بخپله یې اخلی نو ما هغه ته اشاره وکړه چه «دمولانا اوچتوه یې» دکوړ ودبوج
دپاسه نغدې روپۍ پرتې وې هغه می راواخیستی او ورمې کړې او ماوې داکو
هم اوچته کړه . کوړه یې هم اوچته کړه ، قرآن شریفونه او پټکي پاتې شو ، هغ
ملایانو تالا کړل . ملایان هک پک پاتې شو وروسته یې بیا دمړی خاوند
ویل چه دمړي سره احسان ونه شو . هغه ملا چه بله ورځ کوړه منله یې ته ورې
چه څرنګه یې کړي دشموزوخان صاحب ورپسې ورغلی دی او کوړه یې په زوره
ترې اخیستی ده .

دشریعت په وړاندی خودا پردي مال د دوی ته یې اخیستنه جا
نه وه خو ددوی په شریعت څه کار وو . زمونږ کلي کښې یو سړی و هغه به و
اسلام اسلام نشته هسې کوټکوسی دی چه دملایانو داعمل وی دمقتدیانو به څ

خو موده خو ملایان د سخات د دایرې نه لاس واخیست بیایې پخپلو کښې جرګه کښې ده که مونږ دا کار پرېږدو دا دومره موده مو دا کار کړی دی نو د عوامو توجه به وانه وګرځي وایي به چه د ملایان نه پوهېدل او عبدالغفار پوهېږي نو بیا یې د سخات طریقه د پخوا په شان شروع او په کوم ملا چه به یې لږ غوندې شک راغی په دایره کښې به یې نه پرېښوده .

په دې کښې د ملایانو ، غریبانو څه قصور نشته مونږ تمام پخپله کوم یو . چا چه د دین او مذهب ټول واک او اختیار ورسپارلو او د تعلیم او تربیې غم یې نه کولو دروازه په دروازه « وظیفه راوړئ خدای مو بخښنه » وایی . د دومره لوی ذمه وارۍ د پاره په دې طریقه خیل دیني استاذ تربیه کوو . دا زمونږ خپله ګناه ده حقیقت دا دی چه کله مونږ مسلمانان شو ، نو بعضې هغه د هندوانو د وخت رسمونه ، رواجونه مونږ پرې نښودل او ګلکه څنګه چه هغوی د ژوند د مختلفو شعبو د پاره بیلې بیلې ډلې ټاکلې وې هغه هم په هغه شکل کښې مونږ جاري او ساتلې ، څکه چه د لته چه اسلام راغی نو هغه د مذهب (تبلیغ) په لاره راغی د سیاست (تورې) په لار راغی ، نو مونږ د مذهب د حقیقت نه چا خبر نه کړو او لا ترا او سه پورې خبر نه یو . دا د کاسټ سیستم روایتي (عنعنوي) اثرات دي چه یوه ډله به د مذهب د خدمت د پاره وې یوه ډله به حکومت کوي ، یوه ډله به تجارت کوي او یوه ډله به عام خدمتونه کوي . دا په اسلام کښې نشته بلکه په اسلام کښې علم په هر مسلمان او مسلمانۍ باندې فرض دی . زمونږ د ملایانو د « دنیایي علوموا و سیاست خوانه توجه نشته او زمونږ د دولتمنو خلکو د دیني علوموخوانه توجه نشته نو ځکه مونږ به دنیا هم خوار یو او اخرت به مو هم خوار وي .

يوازې خودانه د داسې ملايانو دلاسه مونږ ته نورهم ډېر نقصانونه رسېدلي

دي . په مونږ کښې چه دکار او خدمت سړي پيدا شوي دي دوی پری يا د وهلو

فتوه لګولې ده يا دهند ويا دکافر اوپه دې نوموړولې له خدمته پاتي کړي دي نه يې

پخپله دخلکو خدمت کړی دي او نه يې بل ورته پرېښې دی . بې کاره او بې کسب

لموږخ اداکوه او ډوډی خوره .

## واده ښادي :

زموږ ښادی ډېری خوندوري دخوشالۍ نه ډکې وې چه هلک به ځلمی

شو نو مور اوپلار به يې ورته دخپلې خوښې چنغله لټوله دهلک اوجنۍ نه به چې

پوښتنه نه کوله اونه دهغوی خوښې ته چاکتل . خوينډې ميندې به ګوګر خپلې

کومه کوروني او جينۍ چه به يې خوښ شول ، دجيني ډ مور سره به خبرې وشوې

دمور په ذريعه به پلار هم خبرشو چه دواړه به راضي شو نو دهلک له کوره به خ

ښځې لاړې اوګوټ به يې وکړ بيا به دکوژدې ترتيب ومنول شو . په دې وخت کې

زموږ خلکو که خانان که غريبانان ووتولو خور اولور به سرهرچا دخپل حيثيت

اندازه ولوراخسته . دنابالغوجنکو کول اوورکول هم رواج وو تردې چه تې پورې

ماشومانو کوژدنې به کېدې . کله ناکله به داسې هم وشو چه نه به هلک پيدا شوی

نه به جينۍ زېږېدلې وه چه ميندو اوپلرونو به يې سره وعده وکړه چه ديو مور

زوی وشو او دد پی بلې خوالوروشوه هغه به يې يوله بله سره ورکولې . داقسم جينۍ به

هيچاکولې نه شوه هلک جيني که به په وروکوالي نامزد شوې وو چه کله به لوی شو

هغوی به يو بل خوښ نه ونو هم ديوه بل نه خلاصېدلی نه شو خو چه دواده بند وبس

شروع شو نو د خپلو خپلوانو او کلي مالت جینکې به لا د واده نه خوشحالي ورځې مخکښې
هلک کاالله ته راغونډ ېدلې تنګ ټکور به یې کاوه . د شپې چه به د کاره وزګارې
وې نو را جمع به شوې د منګې او مجمې سره به یې ښکلي ښکلي مسرې ویلې زما د
ښکو دا تنګ ټکور ډیر خوښېده و دونه به دهر چا ډیر توان او طاقت سره پسم
د خانانو په دونو کښې به ډنګ ډونګ او دوم دام زیات وو . ډیرې ورځې به
دونه پخپل چلو خپلوانو او دوستانو به ډیرې اچولې وې کور به د ښځونه ډک و
ډیرې به دسره ونه ډکې وې . جنجونه به وو دهر چا جنج به بېل وتوپک او غړېنونه
ملا صېدل د مې به هم پکښې کله ېدې او خلکو به ورله روپۍ ورکولې اکثر به نیزه
هم کېدله . د نیزه بازۍ د پاره به خلکو ښه ښه اسونه ساتل او د نیزو پرکټس
کاوه د نیزه بازۍ په موکې به ورته روپۍ اېښودل کېدې چه چا به موکې یو-
هغه روپۍ به دهغه شوې د واده ورځ به مقرره وه چه هغه ورځ به شوه
د سحر ډوډۍ به وخوړل شوه که د ناوې کور به لیرې و خلک به د ډوډۍ
سره سم روان شو او که د ناوې کور به نزدې و نو خلک به ماز پښین وررواندل
به ځان ته بېل تنګ ټکور جوړ کړی ؤ سازیانو به ورته په کوټه کښې ساز غږ او
ل سورلۍ به یې ورته وهل او ښځې به د ښه کورکې ورته کله ېدې چه سبا به یې
راوړله په دې شپه به ښځې په جمع روانې شوې نګریزې به یې په سروې
ونه به ور سره وو شمع به پکښې بلېدې لوی لوی مشالونه به یې جوړ کړي وو
ین پړک به و په لاره به یې سندرې ویلې د دوی د حفاظت د پاره به څو کسه
مخکښې او څو کسه وروستو روان وو چه د ناوې کورته به ورسېدې . اول

به یې نکریزې وکړولي او بیا به یې هغه نکریزې هغه جینۍ ته په لاسو او پښو
کړي ، ناوې به د ځوور ځونه په کوټ کښې ناسته وه همزولي به تري چاپېره
ښځې به تري واپس کلي ته راغلې سباله به نو او ښځې په ورا او جنج لاړل ښځې
ورغلې او ناوینه به بهر په حجره کښې کښېناستل ملا به راغی نکاح به یې وتړله
به وشوه دم به ډول وواهه دم به ښادی والا وته آئینه ښودله او پیسي به یې
چا به کلان ور کول او پیسې به یې تولولې بل خواته به بات په غوبړ ونو کښې کوتي
ملح به یې وېله چا به سپیلني لوګي کول روپۍ به یې اخیستي که د چا به خوښه وه
د شهه به یې غوبړ غوبړ نه کاوه او روپۍ به یې ورکولې لنډه دا چه یولوټ به و ملا
هم بې روپو نکاح نه تړله چه نکاح به وتړل شوه هلک به د خسر کور ته ننووت
به وخوت جامې به یې بدلې کړې نوې ډولي جامې به یې واغوستې ځپل ځپلوا
دوستانو به پرې پیاسې ، غوزان او پیسې نوستلې او ماشومانو به تولولې
به دواده د پاره د توان په اندازه ډېرې قیمتي جامې جوړ یدې دا جامې به
دواده په شپه اغوستې بیا به یې په ټول عمر کښې نه اغوستې ځکه
وې چه مړه به شوه اکثر به یې جامې ملا صاحب ته ورکول کېدې ، ناوې
کښې کښېنوله ډولۍ به بهیارانو په اوږه کړه ډولۍ به مخکښې وه دواده
ډولۍ سره و او نور خلک به ورپسې وو . بهر به هم دواده په ذلمې ځپلو
دوستانو پیسې او شیریني نوستلې ډزې به کېدې ، لویو، ورو به د خو
نه الا الاچغی وهلی لوبه مېله به وه چه څه وخت به ډولۍ په کور د ننه
به رخصت شوه د کلي خلک به هم لاړل ناوې به چه کور ته ننوتله د ننه

دستور به پرې وشوه ناوې به په پالنګ کښېنولی شوه تر ځو ورځو پورې به خلک
راتلل د ناوې د مخ ته به يې پلو پورته کاوه ناوې به يې کتله، ناوې به سترګې نه
غړولې د هلک خپلوانو به چه ناوې کتله روپۍ به يې ورکولې. په سبا له به هلک د خپلو
ملګرو لوسره د سخر کره ورغی، دې ته به يې سلامي ويله ښه ډوډۍ به ورکړه
شوه د ډوډۍ نه پس به هلک د سخر کور ته ننوت او د خواښې په پښو به پريووت
ځنې به ورله روپۍ ورکړې د ښځې خپلو خپلوانو سره به پېژندګلوي وشوه بيا به
خپل کالله ته ستون شو څو ورځې وروسته به د ښځې خپلواني راغلي دې ته به
او ومه ويله د هلک خپلواني به هم راټولې شوې د جينۍ د پلار له کوره به
ځامې راوړل شوې وې هغه به يې د هلک په خپلوانو وويشلې چه پاتې به شوې
هغه به د ناوې وې. ناوې به د پلار کره لاړه او څو ورځې به يې تېرې کړې. نن
خلکو ته د هغې زمانې ودونه څه عجيبه غوندې ښکاري چه جينۍ او هلک
بدلې نه وې د موږ او پلار په خوښه به ودونه کېدل. په کار خو دا وه چه هلک او
جينۍ سره خوښولی بيا و د دې خو د نن زمانې په نسبت د هغې زمانې ودونه ډېر
کامياب وو ځکه چه د هغوی اخلاق ډېر اوچت او سپېڅلي وو په هغوی کښې
ښځتينې مينه او محبت و په يورپ او امريکا کښې چه هلک او جينۍ يو د بل په
د تونو او خويونو ښه خبر شي نو د خپلې خوښې واده کوي مګر د هغوی په مينځ
کښې دومره مينه او محبت نه وي لکه زمونږ د ملک د ښځو او مېړونو
مينځ چه وي. مونږ له د خپل ځينې دود او دستورا صلاح په کار ده.
د خلک ځيلي لونه د پيسو د پاره ورکوي په کار دي چه د سهيتوب په لحاظ

خپلوی وشي دانه چه ددولت دپاره څوانه جيني بوداته کښېنول شي .

## ديوې پېغلې قصه :

زه دسکول نه په چوتهي کلي ته تلم په تانګه کښې ناست وم ناګهان سـ
راورسېدم ، ګومي وه سـېند موجونه وهل هغه وخت کښې به په سـ
باندې پلونه دبېړوو . دتانګې نه کوز شوم په پله پورې وځم چه ناڅاپه
پېغلې جينۍ دپل نه دسيند مېنځ ته ورو دنګل چغې شوې چه جينۍ لا
شوه ماښکان ورپسې کشتۍ خوشي کړې دپله نه لي ښايسته ليرې د
سره ونيوه غاړه ته يي راوښکله جينۍ مړه نه وه خو بې هوښه وه او به يي
شوې وې هلته يي واچوله مونږ راغونډ شو چه اوبه ترې لاړې جينۍ ب
شوه چه په مونږ يي سترګې ولګېدې په ژړا شوه ويل يي چه وای خد
زه ژوندۍ يم ؟ مونږ چه تحقيق وکړ چه داکم بخته ولې پخپل ژوند پکو د
معلومه شوه چه پلار يي يو بوډا ته ورکوله او ددې خوښه نه وه پلار ته يي وو
چه پلاره زه مېړه نه کوم او تول عمر ستا خدمت کوم خودې بوډاته مې
ورکوه . پلار يي سترګې روپوټي کړې وې دلو ريي نه منله . چه جينۍ د
مايوسه شوه دخپل مرګ اراده يي وکړه . نو ددې داسې ښېښوخنيوی په کا
بايد چه له جينۍ او هلک نه پوښتنه کېږي څکه چه دا خو ددوی دژوند
ملکرتيا سوال دی .

## فوج کښې کميشن :

څه وخت چه زما ورور خانصاحب ډاکټرۍ تعليم دپاره بمبئ

لاړ زه او مصاحب په بوره ډنګ کښې یوازې پاتې شو خو دځې پس له بوره ډنګ
نه منارتنه داغلو او په لوی بازار کښې مو یوه بالاخانه ونیوه دلته به او سپید و او
سبق له به سکول ته تللو خو سبق ته مو ډېره ډډه نه لګېده. زمونږ یو زور نوکر و
ډ باراني «نومېده» مونږ به ورته باراني کاکا ویې، هغه خه موده د مومن خان
ډېره د خانانو سره نوکري کړې وه ډډېره زیات خانان په فوج کښې نوکران
و. دې ورسره هم په فوج کښې پاتې شوي و نو ده به ماته د فوج قصې کولې
چه د فوج ډېره ښه او دعزت نوکري ده سړی چه داسې غاړې ته کوچ اچولی
ي او د فوج مخکښې روان وي ډېر خوند کوي. زما خو هسې هم سبق ته ډډه
نه لګېده د باراني کاکا خبرې به را باندې ښې لګېدلې او ورو ورو یې را باندې
زور شو او د فوج نوکري ته تیار شوم. دغه وخت زه په اتم جماعت کښې وم زه
وهلک وم نه پوهېدم چه باراني کاکا به څه ویل هغې به مې کول هغه راته
ل چه څوک تعلیمیافته وي او د لوی خاندانه وي هغه ته فوج کښې د ایرکټ
یشن ورکول کېدې شي او نیغ په سرداري اخیستل کېږي. دده او د
نلي په درجه کښې فرق نه وي ددې دپاره د هندوستان وایسرای ته درخواست
ږي دهغه په منظوري دایرکټ کمیشن ورکول کېدې شي. نو ته یو درخواست
ایسرای په نوم ولیکه چه په ډاک کښې ولېږو. دخانصاحب یو اشنا ځینې فضل محمود
مېده مونږ دواړه ورغلو په هغې مو درخواست ولیکه او د کمانډران چیف
وم مو په ډاک کښې واستاوه. دا راز ما او باراني کاکا ځان سره پټ وساته
ی پرې پیلار خبر که او نه مو دهغه سره مصلحت وکړ. ډېره موده تېره شوه

زه په لسم جماعت کښې وم زمانه دا خبره هېره وه چه د مرکز نه زموږ د پټ
کمشنر ته یو حکم راغی چه زما متعلق تحقیق وکړي چه زما څه حیثیت دی؟ ا
زما د خاندان څه حیثیت دی؟ د پټي کمشنر تحصیلدار ته حکم وکړی وا و تحصیل
پټواریان مقرر کړی وو چه زموږ جاید اد معلوم کړی پټواریان چه زموږ کا
ته تللي دي یوه عجیبه توقع وشوه . په دې ورځو کښې زموږ په کلي کښې یو سر
چاوړلې وُ جرګې په هغې کښې زما د تره زوی د شا صاحب خان مشر وو
شمروز خان زموږ د شپږ ونورو نوکرانو سره بې ګناه او خطا خوار لس کاله قب
کړی و . پرنګیانو جرګې د انصاف او امنیت برقرار ولو د پاره نه وې جوړې کړ
بلکه پرنګیانو جرګې په پوره تدبیر د دې غرض د پاره جوړې کړې وې چه په جر
کښې انصاف نه کېږی ، پړی وی ، جمبې وی ، او اکثر چه به ګنهکار سړی په سف
یا په بله او رشوت خلاص شو ، نو مخالفې ډلې به د بدل اخیستلو کوښښ
کوو ، او په دا شان به دا دښمنۍ پیړو په پیړو چلیدلې او دا سلسله به روا
پښتانه به پخپله کښې اړم وی او موږ پرنګیانو ته به بې توجه نه وی . صاد یو استن
کمشنر سره د جرګو په باره کښې پخپله خبری کړی وې چه په دې جرګو کښې انص
نه کېږي ، په جرګه کښې که د مجرم د ډلې سړی مقرر شی هغه که هر څو
ګناهکار وی هغه بری شي او که د هغه د پړې سړی پکښې نه وی ، بلهٔ ی و
خوک د رسوخ خاوندلی سفارش و نه کړی که هر څو بې ګناه وی هغه پکښې لا
نو د دې قسم جرګو نه د حق او عدالت څه امید کېدی شی؟ یوازې استثنٰی ک
نه هر پرنګی په دې خبره پوهېده او د همدې مطلب د پاره دوی د جرګو سب

جوړ کړی. او ینګ کړی و. زموږ په قوله کټه وته د دوی خوراک وه څه چه به موږ کټل
هغه به پولیس، وکیلانو، جرګه والا او بیا جیل والا وو رانه واخیسته او زموږ بچي به
په خالی سیدان پاتی شو. تاسو فرانټیر کرایم ریګولیشن ایکټ (د سرحد جرایمو قانون)
وګورئ هیڅ به داسی ظالمانه شرمناک قانون جوړ کړی نه وی لکه دا قانون چه
انګریزانو په موږ چلاوه. په دغو ورځو کښی دا اوازه خوره شوې وه چه په دغه مرک
کښی زموږ جایداد هم ضبطیږی او داخو په سرحدی قانون کښی یوه معمولی خبره
وه نو چه څه وخت پښتواریان زموږ د جایداد معلومولو د پاره راغلل نو زموږ یقین
وشو چه دا اوازه رښتیا ده زموږ په خاندان یو ویر جوړ شو چه هم موسمی
بی ګناه قید شول او هم مو جایداد ضبطوی. موږ ډیر کوښښ وکړو چه خپل قول
جایداد پښتواریانو ته و نه ښیو څه ناڅه جایداد مو وو نه پټ کړو خو هغوی پخپل رپوټ
کښی لیکلی وو چه دوی ډیر جایداد لری قول یی موږ ته و نه ښوده زموږ په دې
راز پښتواریانو ځکه پرده وانه چوله چه زموږ د کورنۍ د مشرانو، د حاکمانو سره لکه
نورو خانانو په شان ناسته ولاړه نه وه کوموکسانو چه به د پولیس او حاکمانو سره
راتګ ساته د دوی ګانی به یې ورته کولې د دې د پاره چه قوم پرې وخوری او
خپله یې هم وخوری اکثر به د دوی د بلو دلالان وو. زموږ پخپل جایداد قناعت
موږ دا نه کول. دوی به هم ښه د جایداد خاوندان وو خو خرص په مخه
نیستی وو او د حاکمانو سره به یې راز باز ساته. بابا می پېښور ښار ته راغی موږ
ښار کښی تعلیم ته ډیره وو، ډیر غمجن و دا قوله قصه یی راته وکړه موږ هم
په شو چه سبا له می بابا د پښتنی کمشنر ته ورغی ورته یې ویلی چه زه یو عرض ته

راغلی یم چه ته تحقیق وکړه که په دې قتل کښې مونږ ګناهګار یو نو چه څه سزا راکوی
مونږ ته منظوره ده او که مونږ کښې ګناه نه وي نو دا خو انصاف نه دی چه هم مونږ
بې ګناه قید شو او هم مو جایداد ضبط شی نو هغه ورته ویلی دی چه غوک والي
ستاسو جایداد ضبطیږي ؟ بابامی ورته ویلی چه پټواریان راغلي وو او زمونږ
ټول جایداد لي ولیکه . نو هغه ورته ډیر خندلي دي او ورته یې ویلي دي چه دا
زوی لاټ صاحب ته د ډایرکټ کمیشن د پاره درخواست ورکړی دی او لاټ
صاحب مونږ ته حکم کړی دی چه دده د جایداد او حیثیت تحقیق وکړئ او
ته یې معلومات راکړئ . مونږ چه د سکول نه راغلو بابامی بالاخانه کښې ناست
خوشاله وچه مونږ یې ولیدو په خندا شو ما ته یې وویل چه شاه تو دیه (هغه به ما
مینې نه شاه تودی وایه ) دا خو تولې ستا غوښې دی بیایې را ته ټوله خبره وسپړله
بیا زما ډاکټری معاینه وشوه زما صحت ډیر ښه او ښه ځوانی می وه.
څه موده پس د برټش د پوځ حکم پسی راغی چه په فلانی تاریخ حاضر شه په دې
کښې خانصاحب پس دری کالونه د بمبئی نه راغلی او د باقي تعلیم د پاره لندن
وهغه هم راسره د برټش پوځ له لاړ دا پوځ ښه سړی و مونږ سره یې ښه سلوک
زما ورور خانصاحب ته یې د لندن د تللو په باره کښې ډیر معلومات ورکړل نو
یې ورته وکړ د خپلو تجربو نه یې خبر کړ، د غه وخت د خانصاحب هم دا اراده
زه دې په فوج کښې داخل شم . خانصاحب څو ورځې وروسته لندن ته لاړ،
د میتروک امتحان شروع وو د وه مضمونه پاتي وو ما د خوشالي نه امتحان پرېښود
برټش د پوځ حکم راغی چه ته راشه چه زه ورغلم هغه را ته وویل چه ستا د ډایرکټ کمی

منظور مشوزه دېر خوشاله شوم په دې فکر کښې وم چه پلټن به سنبه وی که رساله؟ زما د همزولو دا رایه وه چه تا د پاره پلټن ښه ده یو خو دې صحت ښه دی بلان دې منزلت دی او قد دې هم ښېږ فوتۀ او دری انچه دی. په دې وخت کښې زمونږ د ډېرو زرداد خانان چه په کومه رساله کښې وو هغه د جیکب اباد نه پېښور ته رابدل شوه هغه خانان زمونږ د دوستان وو زه او بارانی کاکا لیدو ته لاړو ما فوجیان چېری لیدلي نه وو کله چه به لوی افسر راغی او فوجونه به ېې سلامی له ورتلل دامی لیدلی وو چه ښې ښې وردی به ېې اغوستی وې د کمپنۍ دورانه به یوازې یو پرنګی او یو دیسی سردار دوان و، کړیچونه به ېې اچولی وو.

بارانی کاکا خو ماته ویلی وو چه د پرنګی او دیسی افسرانو فرق نه وو خو چه ما د دیسی سردارانو کور ونه ولیدل او د پرنګیانو بنګلی می ولیدې نو په هغو کښې د ځمکې او اسمان فرق و مونږ ولاړ وو چه یو لفتین راغی، زه د خان سره چه د رسالدار و ولاړ وم. دې خان خیل سره انګریزی جوړ کړی و نو انګریز دا برداشت نه کړی شو نو په سپکه لهجه ېې ورته وویل چه خانصاحب تم بهی انګریز بنتا چاهتا ہے؟ یعنی ته هم انګریز جوړېدل غواړی دی غریب ورله جواب قدرې ورکولی نه شو ما چه دا حال ولیده نو د دې نوکرۍ نه می زړه تور شو او په زړه کښې می ووې چه زه خو به د پرنګی د دی قسم خبرې برداشت نه کړی شم. څه موده پس حکم راغی چه ته په فلانی تاریخ مردان ته حاضر شه ماته ېې د کایډ په پلټن کښې کمیشن راکاوه. د کایډ یوه پلټن او بله رساله وه کمانډو ر به ېې یو و.
را به همیشه په مردان کښې وه د نورو فوجونو په شان به بدلېده نه او د

هندوستان په فوجونو کښې ډېره یاده ده په دې کښې به د پنجاب او د
سرحد دلویو لویو خانانو او جاګیر دارانو زامن په نایکۍ، لایسی او دفعدارۍ
بر تي کېدل او زه وي پکښې په سر داری واخیستم خو زما زړه د فوج نه تو رشوی
و د بابا مې خواهش و چه زه دانوکری قبوله کړم ځکه چه په دغه وخت کښې
داډېره دعزت نوکری ګڼل کېده خو ماونه منله. بابامې خپه هم شو خود مور ماسره
اتفاق و د هغې ډېرنکیا نو نوکری نه خوښېده

بیا تعلیم پسې:

ماد نوکری په خرشالی کښې سبق میتوک کښې دامتحان د دوران کښې
پرېښې و داکال خو زما په دی کش مکش کښې ضایع شو بل کال مې بیا د تعلیم
اراده وکړه. زمونږ د کلي د مولوی عبدالعزیز صاحب د کشر ورور عبدالعلیم
سره مې چه زما هم جماعتی ؤ سلا مشوره وکړه چه بیا تعلیم شروع کوو مونږ
او بدلي وو چه کیمل پور کښې چه کوم سکول دی په هغه کښې د تعلیم ښه انتظام
دی د استاذانو هلکانو ته ډېره توجه وی او ښه کوشش وو مره کوی
او عربي پکښې ډېره ښه ویل کېږی. زما عربي لاتر مې مضمون و مونږ دوا
په همدې خیال لاړو او په کیمل پور کښې په سکول کښې داخل شو. دلته
زمونږ د پېښور نور هلکان هم وو خو رځې مو درسونه دویل خوندیلی
نه کړو چار اته د قادیان ډېر صفت وکړ نو د قادیان د تللو اراده مو وکړه
قادیان ته روان شو په دې وخت کښې چه مونږ قادیان ته ورغلو حکیم
نورالدین صاحب خلیفه و مونږ د هغه کتلو له ورغلو د هغه ساده بې تکل

ژوند او د مینې محبت خبرو را باندې ډېر اثر وکړو، هغه ډېر لوی عالم او با اخلاقه سړی و مونږ د هغه سره ناست وو چه د مرزا غلام احمد صاحب ذکر وی چه دا اوس د دې جماعت امیر دی او هغه وخت یې په کالج کښې سبق وایه راغی او مونږ رخصت را واخیست. د سکول بورډنګ ته راغلو دلته چه څو مره هلکان وو داکثرو په خولو کښې دا خبره وه «ابن مریم کی بات کو چهوړو ـ اس سی بهتر غلام احمد هے» یعنی ابن مریم (عیسیٰ) مه یا دوئ د هغه نه غلام احمد غوره دی. دا آواز مونږ ته ډېر نا اشنا و بیا مونږ هغو هلکانو هغه جنتي مقبرې ته بوتلو څو مره چه د دې ځای د حالاتو نه خبر یږو هما غومره د مونږ تعجب زیاتیده فکر واخیستو چه پاتې شو که لاړ شو بله شپه خوب وینم چه یو لوی ژور کوهی دی زه و ډېر یوزم یو سپین بږیری سړی لاس را اچوی او د کوهی د غور ځیدو نه می بچ کړی او راته ووایې چه پام کوه! چه سحر شو زه او عبدالحلیم لمانځه ته پاڅیدو ما هغه ته خپل خوب ووایه هغه هم څه خوب لیدلی و لمونځ مو وکړو او واپس خپل کلی ته روان شو عبد الحلیم خولاړ او بیا په پېښور کښې په هغه خپل سکول کښې داخل شو او زه علیګړ ته لاړم.

په علیګړ کښې می په بورډنګ کښې ځای ونه موندو او په بنار کښې په یو موټل کښې ډېره شوم. په علیګړ کښې زمونږ د ملک نور د ډېر پېښنانه هلکان و او ټول په بورډنګ کښې اوسیدل. په دې ورځو کښې نواب وقار الملک د علیګړ کالج سکرټری و ډېر ښه سړی و او ساده ژوندیې و یو معروف مونږ د ما نځه نه پس له جماعت نه راتلو ما ورته پښې سمې کړې هغه زر ماته پښې سمې

کړی او زما شکریه یې ادا کړه او راته یې ووې چه دا مه کوه مونږ پښتنو کښې د
رواج وچه د مشرانو دادب د پاره به موږ ته پښې سمولې مونږ به کله نا کله د هغ
بنګلې ته ورتللو خبرې اترې به مو ور سره کولې د هغه په بنګله کښې یو ورو کی غو
جماعت و په هغې کښې به مو بو ځای لمونځ کاوه د ېر خوش اخلاقه سړی و لوییې ا
تکبر پکښې نه وه، د مسلمانانو په مشرانو کښې د ده په شان ساده ژوند ماد چا
ولید لی د یر په قوم مین سړی و مونږ سره به یې د دوستانو په شان مجلس
او خبرې کولې او همدې خبرو به یې په زړه کښې لار کوله ځکه چه دده د زړه
راوتلې وې .

په دغو ورځو کښې په علیګړ کښې ګرمې ګرمې جلسې کیدې او مسلمانانو
حکومت نه دا مطالبه کوله چه د علیګړ کالج دې د علیګړ مسلم یونیورسټې
نامه یونیورسټي شي، په نورو هندوستان کښې دا رنګه جلسې روانې وې
چنده یې هم غونډوله . ماله به دې جلسو ډېر خوند راکاوه په هره جلسه کښ
به مې د شرکت کوښښ کاوه او د هر سړي تقرير به مې په ډېر غور اوریده. د ګ
چوټې رچه شروع شوې ما ته ویل شوي وو چه په بورډنګ کښې به د رته ځای
د ورکړ وخو په بورډنګ کښې ونه شو . د علیګړ د بورډنګ او ښار په سوسایټي ک
ډېر فرق و د علیګړ بورډنګ سوسایټي مهذبه او عالمانه وه په ښار کښې هغ
ژوند نه و او بله دا چه برسات شروع شوی و د ښار نه کالج ته تګ راتګ
ګران و . په دې وخت کښې زما ورور خانصاحب چه د لندن حالات یې ل
وو ، ما ته یو خط راولیږه چه ته هم دلته انګلینډ ته دانجنیرۍ د تعلیم د پار

زه به ډاکټري وکړم او ته په انجنیري وکړې. نو زه د علیګړ ډ کرمو په چوکښې کالج ته راغلم او د اباته مې د خپل ورور هغه خط وښوده خو د هغه ور سره اتفاق نه و آخر رضا شو. د دې ز د د روپې یې لي د خرڅ د پاره راکړې. پي، ان، او جهاز کښې لې راته ځای ونیولو خو زما د مور زما د تلو سره اتفاق نه و. د هغې په غوږ کښې چا دا خبره کښېنولې وه چه یو ځل ولایت ته څوک لاړ شي نو هغه بیا د املک څه کوي. یو زوی دې لاړ دی که دا بل هم لاړ شي او بېرته رانه شي نو ته خو به میراته پاتې شې. ما چه هر څومره کوښښ وکړو د هغې د زړه نه مې دا خبره ونه ویستلې شوه. په هغه وخت کښې زمونږ د ملک په بل حالت و. پرې جنبې او ترېګنې ډېر بد امنې وه د شپې به هر چا خپله څوکۍ کوله چه څوک مسلمان پښتون رانه شي او مړ مې نه کړي او د ورځې به ور سره وېره وه چه چا د ابانډ، ې دعوه کړې نه دې ځکه چه اکثر دعوې به په پرې جنبې او دښمنو کېدلې او داسې به هم کېده چه په خپله به یو سړي قصه مصه جوړه کړه او په خپلو دښمنانو به یې دعوه وکړه. دا ټولې قصې مې مور ته وکړې چه کوره مورې! یا به چا وژلی یم یا به یې د شمروز دادا په شان قید کړی یم. د دې نه خو دا ښه ده چه د تعلیم د پاره د تللو اجازت راکړې. هغې به ماته هیڅ جواب نه راکاوه او پټ پټ به یې ژړل. نو ما د لندن د تللو اراده پرېښوده او فیصله مې وکړه چه نور سبقونه نه وایم او د قوم او ملک خدمت کوم.

دوباره سبق شروع کولو او مختلفو ښارونو او سکولونو لیدلو کتلو او د خلکو سره بادل خیالات ماته ډېره فایده ورسوله او تجربه مې زیاته شوه. زما پلار د کلي لوی خان و او زه د خان زوی وم خو زما تعلقات د خانانو سره ډېر نه و زما ډېر تعلق

دغ بیا نوسرع وو زمانا سته او دوستی د شاخیلا نو، تر کا نانو اولوهادانو
جولا کانو او زمیندارانو سره وه دخانانو او ملکانو خو یو نه او عادتو
هم راکبنی لږ و دغه وخت دخان دا صفت وچه یره ډېر لوی
خان دی دخپلی مځکی پوله نه پېژنی دخپلی مځکی انتظام او
پخپله کار کول خو دخانه دشان سره مناسب نه و مالهٔ چه بابا کوم
مځکه راکړې وه په هغې کبنی ما پخپل لاس کار کاوه، زمایو نوکر و
شاخیل و قدیر نومېده، مونږ دواړو به په غوایانو کښوته سرې
چلولې او د سرو بورۍ به می پخپل لاس دکولې، قدیر زما دوړو کوالی
نوکر و ډېر وفا دار و خو چرسی و ماته به یې هم دچرس و صفتونه کول
خو زه پوه شوم چه دی ما دې دپاره په چرسو راروي چه بیا زه به ته چرس
پیدا کوم دی به یې دتاوانه خلاص وی بیا می منع کړ چه ماته دچرس و صفتو
مه کوه زما نور آشنایان او دوستان څوک په چیلم او څوک دنسوار و، څوک
سگرټ عادت وخو زه خدای ددی تولو څیزونو نه ساتلی یم. زه چه په کلی کښ
پاتی شوم په ډېره بده سوسایټی راوږېدم هغوی وران کاری وو زه یې
په ورانو سر کړم هغوی جنگیان وو زه یې هم دخلکو سرع وجنگولم، هغو
بدعمله وو زه یې هم بدعمله کولم خو دخدای احسان وچه ډېر زر لې د
سوسایټی بدله کړه او ډېرو سبو خلکو سرع می ناسته ولاړه شوه.

## نوی میدان، تازه افکار

روشنفکو وسره تعلق (مفتی صاحب، مولانا عبد العزیز، مولوی فضل ربی، مولوی تاج محمد).

مدارسې جوړول: دار العلوم دیوبند سره تعلق

شیخ الهند مولانا محمود الحسن صاحب

او مولانا عبید الله سندهي

قوم پرستي، ورومبی وراده

اگره کښې د مسلم لیگ جلسه، کلي وطن کښې

تعلیم و تبلیغ

## دعالمانو سره تعلق :

زما تعلق د فضل محمود مخفي صاحب، مولوي عبد العزيز صاحب د پکلي
مولوي فضل ربي صاحب او مولوي تاج محمد صاحب د کډر، د دار العلوم مهتمم سره
پيدا شو. مولوي تاج محمد صاحب د بغدادي و. د بي. اې تعليم يې و. مذهبي
تعليم يې د پاسه و. په اسلاميه هاى سکول پېښور کښې سکنډ ماستر و. مولوي فضل ربي
صاحب د پکلي و. د ديوبند سند يافته و. په رښتينو معنو کښې عالم او تمام پوست
سړي و. مولوي عبد العزيز صاحب زما د آشنا او د سبق د ملګري عبد الحليم ورور و
په بوپال کښې يې تعليم کړى و. د ا تمانو د لوى ملا صاحب د خاندانه و. فضل محمود مخفي
صاحب د چارسدې و ميټرک پاس او انقلابي شاعر و. څه وخت چه انګريزانو
د فارس په خليج کښې ازاده بندرګاه جوړه کړه چه هلته به بې عربو باندې د ترکو په
مقابله کښې ټوپک، تماڅې، کارتوس او نورې وسلې په ډېره ارزانه بيه خرڅولې
پښتنو قبايلو دې وسلو سراغ پيدا کړى وو. قلل به اوله هغه ځايه به بې وسلې راوړلې
او د پښتنو قبايلو کښې به خرڅولې. انګريزانو چه د پښتنو قبايلو سره داوسلې وليدې
حيران شول چه دوى داوسلې د کومه راوړي، چه تجسس يې وړيسي وکړ ورته معلومه
شوه چه دا د خليج فارس نه د ايران او بلوڅو په لار افغانستان او پښتنو قبايلو ته
راورل کېږي. نو انګريز دې خاتمه د وسلو تخنيوي د پاره په خليج فارس او دهغه په

غاړو کښې د ګوکسن، په مشرۍ یوه جرګه مقرره کړه. د دې جرګې یو داسې سړی په کار وو چه هغه په انګریزي، پښتو، عربي او فارسي پوهېږي. د مخفي صاحب ځلور واړه ژبې زده وې دې یې هلته د خان سره انټرپریټر (ترجمان) لګولی وو. د دغې نوکرۍ په وجه په ده کښې سیاسي شعور او قامي جذبه پیدا شوې وه. د پښتو په شاعرۍ کښې انقلاب ده راوستی و. د زلفو او کاکل او خط و خال ګل او بلبل په عوض یې قام او وطن غریب او بېچاره ته د شاعرۍ مخه وروګرځوله. زه ده ته د پښتو شکسپیر وایم. د ده په پښتو ډېر حق دی خو افسوس چه پښتنو د ده قدر لکه څنګه چه په کار وو ونه کړ. په دې ورځو کښې د ترنګزو د حاجي صاحب نوی نوی لوړ کې شهرت پیدا شوی و. دوی ټولو د هغه سره د دین د خدمت د پاره ملا تړلې وه. حاجي صاحب د پښتنو د نورو بزرګانو په شان نه و هغه د تلیم مصلح تش په خوله نه بلکه په عمل او په رښتیا سره یې په کومو غلطو رسمونو او رواجونو کښې چه قام نښتی و او د دین او دنیا نقصان یې پکښې و هغه یې لیرې کول غوښتل او د جهالت تورې لړې چه په قام او وطن راخورې وې د هغې د لیرې کولو د پاره یې ونښتنې کاوه. د مخفي صاحب دوې په ذریعه زما هم د حاجي صاحب سره تعلق پیدا شو. حاجي صاحب اول یې غیل کلي کښې او بیا ورته د عبدالاکبر خان پلار د ترنګزو او عمرزو په مینځ کښې یو ځای ورکړ. هلته یې آبادي وکړه او د کلي نه دې خانه راغی ... په ورځ به دلته ډېر لوی جمع کېدل او د لیرې لیرې ځایه به خلک لما نه دلته راتلل زه به هم ورتللم.

مدرسې جوړول:

زه په مشن سکول کښې د خیل هیډ ماسټر وګرم او د هغه د ورور ډاکټر وګوم

نه ډېر متاثر شوی وم دهغوی قربانيو راباندې ډېر اثر کړی و زماهم داخيال
پيدا شوی وچه ددی قام او وطن خدمت مې وکړی. په دغو ورځو کښې زمونږ
د قام دجهالت په وجه ډېر بد حالت و. نه دحکومت له خوا څه انتظام و اونه د قا
له خوا. دتعليم کوم هيڅ انتظام نه و اوکه په کوم کلي کښې به پرايمري سکول هم
نه هم ملا يا نو خوک نه پرېښودل نو ماغوښتل چه دپښتنو بچو دتعليم د پاره
ملک کښې اسلامي مدرسې جوړې ولو کوشش اوکړم اوخپل ژوند به په دې خد
کښې تېر وم. په ۱۹۱۰ع کښې ما او مولوي عبدالعزيز صاحب يوه مدرسه په اتمان
کښې جوړه کړه او دنورو مدرسو جوړولو دپاره مو په نورو علاقو کښې دوره شروع ک
دخلکو توجه مې دعلم طرف ته کړه او دپښتنو په زړونو کښې مې دعلم دضرورت احس
پيدا کړو او دغه شان مو ورو ورو په مختلفو علاقو کښې دمدرسو جوړول شروع
او په لږ وخت کښې مو ډېرې مدرسې جوړې کړې. زمونږ کلي ته نزدې دمفتي
نه خلک راغلل چه ته راشه مونږ دلته يوه مدرسه جوړوو نو زه لاړم خلک مې راټو
کړل دعلم دښېګڼو په باره کښې مې ورته خبرې کولې. په دې کښې يو ملا راغ
چترالي (چترال زمونږ داتمانزو دکلي په ميره کښې يوه بانډه وه) ملا به يې د
ويل دده سره ټوپک هم و او کتابونه هم ورسره وو. مونږ سلا مشوره کوله خبر
کولې ملا صاحب پاڅېد او وي ويل چه زه داتعليم چه عبدالغفار خان شروع ک
دی نه منم اونه داتعليم دی او هغه ويل چه په دې مدرسو کښې چه کوم کتابونه
کېږي نو په هغه کښې دي چه: "ايک کتا بھونکتا ھے"، يعني يو سپی غاپي او به ل
کښې ليکلي چه: (A big fig) يعني يو غټ انځر. داخه دی؟ داعلم

نو زه راغلی یم د ده سره فیصله کول غواړم چه په کتاب راسره فیصله کوی که یو یک؟
ما ورته وویل چه ته بنه پوهیږی چه زه د تو یک کار نه کوم او د غلته چه ته اتمانزو ته
ځی زمایو ترېږدی چه محمد خان یې نوم دی هغه ته د تو یک نوم واخله نو یچیل
خان به پیوه شي چه ته خوم سړی یې ملا صاحب علم خدای او رسول په مونږ
مسلمانانو فرض کړی دی او چه تا سو خلک د دې انګریزی ملاسو نه منع کوئ نو
په کار دی چه هغوله یخپله خو د تعلیم انتظام وکړی نو چه تاسو هم ورله خه انتظام نه کوئ
او مونږ هم د دوی د خدمت نه منع کوی نو د دی قام د دې خدای مل شي.

پښتون یوژوندی قوم دی د قومیت او قربانی ماده هم پکښی شته خو
ویښول غواړي. قوم نه خو تش په کُف وچُف نه رابیداږي د قوم نو د ژوندی
لو لو او بیدارو لو د پاره داسی کسان په کار دی چه بې غرضه وي دیانت داروی
یمانداروی او د خدای د پاره د خپل قام خدمت ته تیاروي چه داسی کسان
په کوم قام کښی پیدا شی نو د هغوی په کوښښونو هغه قام کښی مینه، محبت، همدردی
ورووری او غیرتولي پیدا شی هغه قام ابادشی مونږ بی همتو او خودغرضو خانانو،
ملایانو او بابا کانو تیاری ته کښیښولي یو ځکه خو زمونږ د قام دا حال شو. که چیری دا
کارونه په تش کُف او چُف، وظیفو او دعاګانو کیدلی شوی نو زمونږ د خپل رسول صلعم
به دومره کواوونه ولی کول دومره قربانی ورکولې، تکلیفونه او مصیبتونه به یې تېرول
خو د جماعت په کوټ کښی به ناست وای دعا به یې کوله د هغه په شان دعا د چا کیدې
شوه؟ کار به کیده، قام به ابادیده خو خبره داده چه بی عمله دعا د خدای په نزد
نه قبلیږی په دې کښی د پښتنو څه ګناه ده؟ دوی ته چه هر چا څو نګه جاره اچولې ده

... په پښتو دين حرڅه وي ۱۲



دوي ورته داقوال شوي دي شکرانۍ يې ورکړي دي دهغوی په مخ کښي يې مند
وهلي دي خدمتونه يې ورته کړي دي ملکانی او سيرۍ يې ورکړي دي تو دي ح
خرينديې لونه يې هم ورکړي دي خو هغوی دا بد بختان په هغه دين هم نه د
پوه کړي . هغوی داګمان کاوه دا زمونږ ددين او دنيا نجات دهنده دی خو
دوی سره نه ددين غم و او نه دقام هغوی سره خپل غم وه خپه يې خپل خا
کړي دي قام ، وطن او دين ته يې هيڅ نه دی کړي .

زمونږ دسکولونو مخالفت ملايانو شروع کړو او ويل به يې چه په د
کښي اردو ويل کيږي . اردو يوه بهانه وه . کنې دجماعتونو نه زمونږ په سکو
کښي ديني تعليم هم زيات و او هم په ښه طريقه و او هم ورسره ديني تربيه وه .
دلمونځ معنی چاته ښودلې نه ده او مونږ به زرګونو ځوړته دلمونځ معنی ورزد
ده . خبره داوه چه دا زمونږ مخالفين چه وو ددوی خو په اسلام څه کار نه
که نه اسلام خو علم په نرا و ښځه فرض کړی و او دا يې ويلي دی چه په علم
ان تر چينه لاړ شئ چين کښي خو منيه . خلاصه او دعربي علم نه و داسلا
دعلم دحاصلولو غرض وکه دا ملايان رښتيا په علم مين وی نو دوی به ز
ملا تړ کړی وای . دوی خو دا فکر کاوه که پښتنو کښي علم او پوهه راشي ز
دکان به سوړ شي او دې ته يې فکر نه کاوه که په پښتون قوم کښي علم راشي
به ترقي وکړي او چه قام ترقي وکړي مونږ به هم ترقي وکړو . دوی خو دقوم نه
نه دي ددوی نه بيا لاخانان ښه وو خکه که په قام کښي پوهه راتلله نو خاني
لي هم نقصان رسيده خو خانانو مخالفت خو لا پريږده چه ويې نه کړ بلکه ز

ډېر امداد ېي هم کړی دی . مونږ به ملایانوته ډېره تسله ورکوله چه که دا قام
ترقي وکړي تاسو به هم ترقي وکړئ خو دهغوی په دماغ کښې دا نه راتله چه
ونلدې پښتون قام او ورسره مونږ ترقي کولی شو . دوی دومره ډتیارخوړې
وبیکارۍ عادت شوي وو چه دجد وجهد ماده پکښې پاتې شوې نه وه ( زما
یاددی چه یوه ورځ په سیوا اکرام کښې دکانډهي جي سره ډېر خلق راجمع
شوي وو دپارتنې نه پس هغه خلکوته دا خبره وکړه دا نن چه مونږ غلامان
او دذالت ژوند تېروو داځکه چه مونږ ډېره لویه ناشکري کړې ده او د
خدای په نزد ناشکري ډېر لوی جرم دی مونږ ځکه په مصیبت مبتلا
چه خدای لاس او پښې راکړی دی او مونږ ورنه کار نه اخلو او زمونږ
مذهبي دله یعنی برهمنانان تیار خواره او بیکاره شوي دي ددې نعمت
کفران په وجه دخدای له طرفه په مونږ دالعنت نازل شوی دی په ګیتا
کښې لي راوړی دی چه څوک کار نه کوی او خوراک کوي هغه غل دی. )
په دغه وخت کښې قام دملایانو او باباګانو په جال کښې ګیر و او دهغوی
ترلاندې دبل چا اثر لي لا نه ومنلی او یو قام هله دچا اثر قبلوی چه اثر والا
ئې پېدا شي . کله چه ملایانو زمونږ دمدرسو مخالفت شروع کړونو د
ومدرسو دپاره مونږ دترنګزو حاجي صاحب سرپرست وټاکه نو په دې
بعه مونږ څه ناڅه دملایانو دتخریب نه بچ شو . دحاجي صاحب په وجه
مونږ ته په دې کار کښې ډېره کامیابي حاصله شوه . حاجي صاحب یو مصلح
ب و او دنورو باباګانو غوندې نه و دا یې لوی صفت وچه دنورو باباګانو

غوندي چا د ایرکت یا ان دایرکت په بیه نه شو اخیستلی، پونکی په
کارکښې د پواستاذو هغه د مسلمانانو د ډاکیو ولو د پاره مسلمانان سا
وو هیڅ ملا او باباتری بچ کیدی نه شو دغه یو حاجی صاحب تری خدای
و . زمونږ د مدرسو په مخالفت کښې هم د پونګیانو لاس وکه خه هم د ملا
یکښې خپل غرضونه هم وو .

## دیوبند سره تعلق :

دحاجي صاحب او دهغه ملګرو، مخفي صاحب، مولوی فضل ربی او
تاج محمد دوی سره خو زما داول نه تعلقات او تنګ داتنګ وخو دي
دجوړ ولو په وجه زمونږ تعلقات نور هم مضبوط او زیات شو ځه به کله کله
لیدل او تبادل خیال د پاره (ګلاد) ته ورتلم او دوي به هم چه کله د حاجي
صاحب لید وته راغلل زما لید وته به هم اتمانزو ته راتلل، مولوی تاج مح
د ګډ ر د دارالعلوم مهتمم و او د انتظام نه علاوه درس به یې هم ورک
نو د پر به له ګډ ر نه بل چیرته نه تلو. مخفي صاحب او مولوی فضل ربی صا
به د پر راتلل او د مولوی فضل ربي صاحب په واسطه ورو ورو زمونږ تعلق
د دیوبند سره پیدا شو. په دې شپږ ورځو کښې د دیوبند دارالعلوم پرنسپ
حضرت مولانا محمود الحسن صاحب د پر نیک، پاک، خدای پرست
عالم و او تش کتابي عالم نه و د علم سره یې عمل هم لرلو او په دې فکر کښې وچه
به څرنګه د پرنګي د غلامي نه ازاد کړی شو؟ زمونږ هم دا فکر و او د ملک
زمونږ مشترک مقصد و. مونږ چه به دیوبند ته لاړو نو د مولانا سره

په دیوبند کښې ډېر پښتانه طالب العلمان وو، مونږ د پښتنو طالبانو دلیډرانو په بهانه دیوبند ته تللو، د مولانا یو شاګرد میاعُذیر ګل به زمونږ د خوب او خوراک انتظام کاوه. د مولانا صاحب په ذریعه ورو ورو د هغه ملګرو سلایانو سره زمونږ پېژندګلوی پید اشوه چه د هغوی نه مولوی عبید الله سندهی او محمد میانو مونه را ته یاد دي او د نورو ډېر رانه اوس هېر شوي دي. د خوږجي یو مولانا صاحب زما ډېر اشناو، ډېر محبتي سړی و زمانه چه به خبر شو دیوبند ته به راغی د ډېر د خوراک خیزونه به یې د ځان سره مونږ ته راوړل د خورجي اچار او کولچې ډېرې مشهورې دي افسوس چه زما د مولانا نوم هېر دی شاید زما په هغو ورکو شو و نوټ بکونو کښې وي. ریښتیا خبره داده چه زمونږ په خپلو کښې ډېره مینه محبت و د چاچه مقصد او نصب العین یو وي هغوی کښې همیشه مینه وي، محبت وی هغوی کښې به رائی اختلاف هم وی خو دا اختلاف د هغې دلې د پاره رحمت وي: دانن چه تاسو په دلو کښې پرې جنبې وینئ تاسو تحقیق وکړئ د هغوی مقصد او نصب العین یو نه وي ځکه خو دا ای د رحمت په ځای د هغوی د پاره زحمت شي ځکه چه دوی د اکار د خدای او د خدای د مخلوق د پاره نه کوي د خپل ذاتي غرض د پاره یې کوي د نفس لارې ډېرې وي او د خدای لاره یوه وی نو د خدای د پاره خدمت او پرې جنبې دوه متضاد خیزونه دي.

زمونږ زیاتې خبرې اترې، سلاګانې او مشورې به مولانا محمود الحسن صاحب او مولوی عبید الله سندهي سره وی. په هغو ورځو کښې ډېر نګیانو

دپر رعب وداب و اودخلکو په زړونو کښې دهغوی دېره وېره ناسته و
او دهغوی دمخبرانو هم یوه زوره وره سلسله وه نو چه مونږ به هر کله دیوبن
ته تللو نو دهغوی دوېرې به مو د دیوبند نیغ ټکټ نه اخیسته مونږ به یې
دې خوا یا هغه خوا دکا دې نه کوزېدو وبیا به پیاده یا په بله ذریعه پټ دیوبند ته
ور تللو چه پرنګیان را بانډې پوه نه شي. مولوی عبید الله سندهي به په دیلي کښې
دفتحپوری لوئې جومات سره یو ځای اخیستی و او هلته به یې هلکانو ته دقرآن
شریف درس ورکاوه او کوم هلکان چه به بی. ای پاس وهغوی له به یې
پنځوس روپۍ دمیاشتې وظیفه هم ورکوله او درس به یې هم مفت ورکا
او هغه وخت پنځوس روپۍ ډېرې شي و. دهغه داخیال وچه دمسلمانانو
تعلیمیافته زلمو کښې به زه دقرآن شریف دد رس په وجه دحریت او خد
جذبه پیدا کوم لیکن سندهي صاحب پخپل مقصد کښې کامیاب نه شو
سندهي صاحب لوئ عالم و دهغه په شان په قرآن کوم څوک نه پوهېد
او نه یې دده په شان درس ورکولی شو خو په مسلمانانو کښې دجد وجهد ماد
پاتې شوې نه وه ځکه چې هم دغه د پرنګیانو په ملاتړ سو کښې هندوانو هم تعلیم کو
و. په هندوانو ددې تعلیم یو قسم اثر شوی و او په مسلمانانو بل قسم اثر شو
په هندوانو کښې یې دخپل قام مینه او دهغوی دخدمت جذبه پیدا کړ
او په مسلمانانو کښې خدمت او مینه خو پرېږده هغوی دقام او ملک نه خ
هم نه وو. دمولانا په شاګردانو کښې دهغه ډېر نزدې شاګرد دچه دسندهي
پرې ډېر اعتماد و. بی. ای پاس و قرآن یې دمولانا په ترجمه ختم کړی و

باوجود «ددي تولوخبرو دپرنګيانومخبر وخوت. دسندهي صاحب دې دوستانو او شاګردانو اوتولوحالاتو دايرى به يې هره ورځ حکومت له وركوله. دسندهي صاحب «دشاګر درشيدچه دغه حال وي دنورو به څه حال وي؟ دقام مينه او خدمت او دحريت جذبه يوازى په تعليم نه ده. مونږ چه دقام دخدمت اوازادۍ تحريك شروع كولو زه په بناړونوكښې تعليميافته وليسى ډيروكرځيدم ما به معنوى كښې داسې خلك پيدا نه كړى شول چه دخداى دپاره دقام خدمت ته تيارشي، دباباګانواوبزرګانومى دېرخاطر ساتلى دى اوخدمت مى كړى دى. دې طمع چه دده خوزدګونه مريدان دي كه دې يوځل زمونږ ملګرى شي نو دېرخلك به زمونږ ملګرتيا اوملاترو كړي. دملايانومى دېره خوشامنده كړې ده او دېرې منتې مى ورليسى وهلى دى خو دېرولږ دا سره ملګرتيا كړى شوى نو هغه هم تر خپله خوښه كښې وكښو تيا اوكښى ليسه چه بې د دوى نه مايوسه شوم بناړونه مى پرېښودل كلوبانو ته ورتلم او عوامو ته ورغلم په غلو وروميا شتو كښې دومره خلك راسره يوځاى شول چه پرنګى ورنه ووېرېده. زه دولس كاله په تعليميافته وليسى كوځيدلى خو د دوى نه مايوسه شوم او كلوته ووتم نو په ډېرزو كونو خلك راسره ملګرى شول.

## شيخ الهند صاحب او سندهي صاحب:

مونږ چه به ديوبند ته لاړو نو شيخ الهند صاحب به سندهي صاحب ته هم خبر وركړو اكثر به دى ديوبند ته راغى او كله نا كله به زه دده ليد واوسلامتورى ته دهلى ته ورغلم. دسندهي صاحب ځاى دفتحپورى جومات سره و زه به نيغ دهغه ځاى او درسګاه ته نه ورتلم ځكه چه دده په ځاى كښى به

سی. آی. ډی. همیشه حاضر واو دا داسې وخت وچه چانه په زمونږ علاقه کښې
مولانا ابوالکلام ازاد جاری کړی رساله الهلال راتله نو پولیس به ورپسې و
حکومت به په تورلست کښې لیکه او چه حکومت به لږ په چا بدګمان شو
ده په زړه کښې دازادی اوقام او ملک مینه او خدمت جذبه ښته نو
دې خدای مل شه. ځکه به زه دهغه درسکا ته نبغ نه تللم فتحپوری جو
ته به لاړم چه لموږنځ به وشو په جومات کښې به موسره ولیدل که خبرې به موا
وې په جومات کښې به تمامې شوې. سندهي صاحب به ځيل ځای ته لاړ او
به ځپل نور کارپسې لاړم او که خبرې به خلاصې نه شوې نو سندهي صاحب به ز
چای ځکلو د پاره دځان سره بوتلم چای به موهم وځکلی او خبرې به موهم و
دسندهي صاحب دلیدلو نه پس به زه په دیلي کښې نه پاتې کیدم او د
په ګاډي کښې به کلې ته راروان شوم ځو کله چه به مې نور کار پاتې و نو پاتې به
زه چه به پاتې شوم د مولوی سیف الرحمن صاحب سره به پاتې کیدم، مولوی سیف
زمونږ د دواړو. د دې عالم پوه او سیاستدان سړی و. مولوی سیف ال
د نورو ملایانو په ښان دمحدود وخیالاتو خاوند او تنګ نظره نه و، په کوت
کښې به نه ډوبیده د او چتو خیالاتو خاوند او بلند نظره و، د ډیر دم او
دل سړی و. فتحپوری د دهلي یو جامع مسجد وا او په هغې کښې یو ه عربي
وه او مولوی سیف الرحمن د دې مدرسې صدر مدرس و.

## قوم پرستي:

کله چه زما سوسایټي بدله شوه او د قام پرستو سره مې مخه شو

چه دقام پرستی کومه ماده وه هغه دا وپېښه شوه. دا خبره خوما لا په ورپوکوالي کښې په طالب العلمي کښې محسوسه کړې وه خو د مخفي صاحب، مولوی عبدالعزیز صاحب او مهتمم صاحب په مجلسونو کښې ورځ وکړه خصوصاً د مخفي صاحب د مجلس په ما ډېر اثر و. په دې وخت کښې زما د وه ځينو ټو سره ډېر شوق و. یو زمیندار ادی سره او بل د مطالعې سره. د زمینداری دپاره خوماته پلار په مامنه ناری (محمد ناری) کښې شپېته جریبه ځمکه راکړې وه په هغې کښې به ما خپله زمینداری پخپله کوله او د مطالعې دپاره به مې د مولانا ابوالکلام ازاد الهلال اخبار کتو، چه یو عالمانه اخبار و او هر مضمون به یې د علم نه ډک وو او دازادی او حریت علمبردار و او د اسلام په حقیقت به یې خلک پوهول او بل مې زمیندار اخبار راغوښتل. زمیندار اخبار د مولانا ظفر علي خان اخبار او ډېر قام پرست اخبار و، دا مې کنده نه وکه وروسته چه د اختر علي خان د هغه زوی په لاس کښې ورغی. بل مې مدینه بجنور اخبار راغوښته چه ډېر قومي اخبار و. یو مې انګریزي اخبار چه (د سول اینډ میلټري ګیزټ) نومیده راغوښته ورسره به مې د ديني او نورو کتابونو مطالعه هم کوله. چه طالب العلم وم د مطالعې سره مې شوق نه و خو چه د ملا سو کار مې شروع کړ د مطالعې شوق راسره پیدا شو. الهلال او زمیندار چه به هغه وخت چاله راتلل نو هغه به د حکومت دسترګو اغزی و او د هغه نوم به بلیک لسټ کښې و. ولې چه دا دواړه اخبارونه قام پرست وو قام یې را ویښاوه او پوهاوه او قومیت او جرئت یې پکښې پیدا کاوه. بدبختي حکومتونه خوښېدې ولاړ وي چه په خلکو کښې وېره پیدا کړي او د خلکو له زړونو نه

چه وپره وه ورکه شي د بدلیښې (بهرنی پردی)، حکومتونو بنیاد و نړېږی او د بدلیښې حکومت مثال د غله وي چه د کور خاوند راوېښ شي نو بیا غل کله تېښتېدی شي نو ځکه د انګریزی حکومت د دی قسم اخبارو نه خوښ نه وو. خو ځله ما پسی پولیس راغلل چه ته دا اخبارونه مه راغواړه بندې کړه، د حکومت نه خوښېږی ځکه چه دا اخبارونه لولی حکومت دې خپل دښمن ګڼي، تا ته به د ېر نقصان ورسېږی ماورته لنډ جواب ورکړو چه د حکومت خوښ نه دي حکومت دې پخپله بند کړی هغوی به وويل چه حکومت خو يې نه بندوي ما به ورته وويل چه زه يې هم نه بندوم.

مخفي صاحب به هم چه څه ته ښه کتاب پيدا کړ هغه به د مطالعې د پاره ما ته راوړه. يوه ورځ يې راته د عبدالحليم شرر يو ناول چه د زياد او حلاوه، نوم يې ده راوړی و او راته يې وويل چه دا کتاب په ښه شان مطالعه کړه هسې هم زما طبيعت داسې وه چه مطالعه مې د نورو په شان د يره نه شوه کولې خو چه څه مې کولی شوه نو ځان به مې پرېښ ښه پوهاوه او ښه غور به مې پرېښ کاوه چه مطالب يې ښه هضم کړم. دا ناول د سپين (هسپانيه) په باره کښې ليکل شوی و او دا يې ليکلي وه چه د سپين عيسائيانو د مسلمانانو د اتوسوو کالو تسلط ته څو نګې خاتمه ورکړه د دې ناول په لوستو ما ته په خپل کار کښې د يره کمته ورسېده. مخفي صاحب به چه پخپله نوي شعرونه جوړ کړل هغه به يې هم ما ته راوړل او راته به يې اوړل ما ته به د مخفي صاحب شعرونو د ير خوند راکولو خوند څه چه په ما به يې د ير اثر کولو. د هغه د ير شعرونه ما ته اوس هم ياد دی ما د مخفي صاحب به الهلال يو ځای لوستنه په مضمونونو به يې مونږ د ير بحث کاوه او څوځ

ځله به مولوستنه او چه خومره به وس کېده نوروته به موهم اورولو . دبښتیا خبره داده چه مونږ الهلال داسلام په حقیقت پوه کړي یو او دې اخبار زمونږ محنه دېر خواته کړه .

داهغه وخت وچه دپرنګی دحکومت له وېرې به چاپیت په حجره کښې دپرنګی خلاف خبره نه شوه کولی مونږ به چه داقسم خبرې کولې چرپیت ځای ته بهرلاړو . زمونږ کلي دپېرګپ کلي دی هلته به موپټې خبرې هم نه شوی کولی او دپېره لوړه به دپټوخبرو موقع راته پیدا کېده کله به دحاجی صاحب ځای حاجی اباد ته لاړو کله بل خوا . یوه ورځ مولوی فضل ربي صاحب او مخفي صاحب اوزه ماسمه نادئ ته چه په میره کښې زمونږ یو کلی دی او دپېرسنه نهر پکښې بهیږي او دپېرښکلی ځای دی لاړو دشپې دډوډۍ انتظام راته وشو دماښام دلمانځه نه وروسته په سړک ګرځو او خبرې کوو چه شاته موو کتل یو سړی راپسې دی په مونږ وارخطایي راغله زمونږ داخیال شوچه داسړی ګوندې مونږ پسې لګیدلی دی دهغه خایه موډوډه چټلی کړې او دوه پردي، پیاره ډوډۍ موپرېښوده او دکور خاوند ته موخبرقدرې هم ونه کړو . په سلو متلو زمونږ یو بل کلي مړوندۍ ته ماسختن (مازختن) ورسیږو زمیندار او دهقان ډوډۍ نه دوخته خوري هغوی ډوډۍ خوړلې وه زمونږ پاره لي په شپه کښې نوره ډوډۍ پخه کړه ډوډۍ موو خوړه او الحمدلله وده شوو . په داسې حالاتو، واقعاتو او مشکلاتو کښې مونږ کار شروع کړی وه سره ددې زمونږ کار ورځ په ورځ ترقي کوله خکه چه زمونږ کار

دخدای دمخلوق دپاره و زمونږ یکښې ذاتي غرض نه و بلکه ذاتي صو یکښې
نقصان و . نقصان داوو چه ده ثان لفقه ده پاره تجارت زمینه
ونه شوه کوم . خرچونه به کیدل +
ورومبی واده :
د ۱۹۱۲ع کال په اخر کښې پلار ماله واده وکړ . زه لا هلک وم په سکول کښې
می سبق ویلو . زمونږ کلی ته نږدې رحم (درزیو ) نومی کلی کښې دکنان خپله
خانانو په کورنۍ کښې یې راته کوژده کړې وه . زما په گمان چه زما سخر اخسو
یار محمد خان اولنی خان وچه په لوري روپۍ وانه خیستی . هغه وخت ک
خان به وکه غریب دخور لور په سر به یې پیسې اخیستی . دا رواج خلکوته یا
نه ښکاریده ولی هم پښتانه دخور او لور په سر روپۍ اخلی خوخلک ورته یا
په اسلام کښې دخور اولور په سر پیسې اخیستل لو یه گناه ده بلکه اسلا
خوخیندو او لوڼو ته د پلار ، مور او ورور په میراث کښې برخه ورکوي . زما
دېر سخي اوسیلمه دوست سړی و دېر دوستان او اشنایان یې لول د
کلي په غریبا بانو به یې خاص نظر ساته چه څه وخت مړ شو ما پخپله لیدلی
نو ، ښځو ، خپلو ، پردو ورپسې په زار زاړ ژړل پخپله یې تعلیم نه وکړی خو
سره یې دېر شوق و زما بابا ته به یې ویل چه هغه یوزوي دې تالندن ته تعلیم
لیږلی دی دا بل به زه ولیږم دامی اوریدلی وچه سخت مریض شو نو وی
زه وصیت کوم او خپلو زنانه وارثانو ته دشریعت په مطابق حق او حصه ورک
خپلو خپلوانو یې نه بووه . دېر خانان یې دوستان وو خو دده له مرگه ورو
هم دده دماشومانو پوښتنه و نه کړه ځکه چه دهغه نه قول وار ۲ ماشومان

د چار درویش په قصه کښې دیو سوداګر د زوی قصه کوي چه د پلار نه ورته
ډیر مال او دولت پاتې شوی و او ده هغه ټول په یارانو، دوستانو وخوړلو
کله چه د مال او دولت نه کنګال شو نو په ډیره بده ورځ په لاره روان دی
یو لاروی وپوښتنه ورنه یې وکړه چه ته هغه د سوداګر زوی نه یې؟
ده ورته وویل چه ولې نه یم هغه ورته وویل چه ته په دې مصیبت اخته
شوی یې ستا خو ډیر یاران او دوستان وو د دوی نه به څار بدل او قربان
شوی دي هیڅ امداد و نه کړ هغه څه شو؟ ده ورته وویل چه نه هغه زما
دوستان نه وو هغه د دسترخان مچان وو چه دسترخان مې غوړیدلی
وو دوی پرې بنهیدل او چه دسترخان ټول شو مچان والوتل.

ماسره دخیل قام د ښځو ډیر قلا، او عزت و او ډیره همدردي
ده وزسره وه ولې چه زمونږ په قام کښې هم لکه د نورو مشرقي قومونو په شان
د ښځو قدر، نه و دوی به د سړو نه ښکته کمتر شمیرلې شوې حالانکه چه پستې او
لوړوالی په عمل ده که د چا عمل پست وي هغه نر وي که ښځه په کار دی
چه پست وګڼل شي او د چا عمل چه وچت وي نر وي که ښځه په کار دی چه
په درانه نظر ورته وکتل شي، خدای خو نر او ښځه د دنیا د ابادۍ د وه
ملګري پیدا کړي او د بشریت د کاډۍ دا دوه پایې دي دا کاډۍ به
په یوه پایه نه شي چلیدی او بیا زمونږ د پښتنو ښځې خو ډیرې پاک لمنې
حیاناکې، مینه ناکې او وفادارې دي او ډیرې خدمتګارې دي، مونږ
چه به کله ناکله د خپلو خپلوانو کره میلمانه شو سره د دې چه نوکرانې به وې

خو زموږ د خپلو انو ښځې به دا نه چاپېره کړځېدې او ډېر په اخلاص به ی
زموږ خدمت پخپله کولو کوم ښه څیز چه به یې پوخ کړی وهغه به یې زمو
مخې ته داوړاندې کولو او چه زموږ نه به څه پاتې شو دوی به بیا هغې ت
کښېناستې او هغه به یې خوړلو. په ابتدا کښې به سړو د دوی سره یو ځ
ډوډی نه خوړه او ښځو به هم د نارینه و سره په یو دسترخوان ډوډی خو
عیب ګڼل د تولو نه اول دا خبره ما محسوسه کړه او چه کله به میلمانه نه و
د دوی سره می په یو دسترخوان ډوډی خوړه اول دا رسم ما مات ک
او ورو ورو په ټولو خلکو کښې د دې رواج اصلاح وشوه. ما چه واده و
زما ښځې ته به ما سره یو ځای ډوډی خوړل ډېر عجیبه ښکارېدل اول
به یې په اسانه راسره ډوډۍ نه خوړه. یو خو به څکه ښځو ډوډۍ ورو
خوړه چه د مېلمنو او نارینه و نه څه پاتې شو نو دوی به بیا پرې را غونډه
او که به کافي غذا پاتې نه وه هم دوی به پرې قناعت کولو او بله دا وه چه
سړو ښځو به خوانو ښځو پسې خبرې کولې چه خو دې ته ددې زمانې ښځو ته ګ
خومره کلک سترګې دي د خپلو مېړونو سره یو ځای ډوډۍ خوري موږ خدا
داسې زمانې ته پاتې کړو. خو اخر دوی هم ورسره بلدې شوې او دا کار بیا بد نه
کېدو. د مېلمه وخت هم معلوم نه و هر وخت به چه مېلمه راغی ښځې غریبانا
به مجبورې وې چه د ډوډۍ غم ورته وکړي. که نیمه شپه به وه او
دا ر پشکال تکنده غرمه به وه چه مېلمه به راغی نو هغه به هم ښه ډوډ
غوښته او کور به به هم ښه ډوډۍ ورکوله. زموږ تحریک کښې بیا دد

خبري هم اصلاح وشوه مونږ خلکو ته وویل چه یا به ناوخته په چانه مېلما نه کېږئ او که ناوخته په چاپېښ شوئ چه خه تیار وی هغه به خورئ او که څوک در باندی ناوخته راپېښ شو هم تیاره به ورته مخکښی ږدئ او بېدي شان مود ښځو تکلیف لږ څه کم کو.

په هغه وخت کښی هلکان چا تعلیم ته نه پرېښودل د جونو تعلیم خو بالکل د کفر سره مترادف گڼل کېده ملا یانو به تعلیم ته څوک نه پرېښودل زما یا ددې ما چه لور به سکول کښی داخله کړه نو دخو پرېږده چه خپله سخر کښی هم راته خپه شوه حالانکه دا سکول د یو خان په کور کښی وخاص د جینکو دپاره و یو قسم پرائیویټ (مخصوص) ملا مدرسه وه. دخان تبر پخپله درس ورکولو. اوس هم دېر خانان خپلي لونه په سکول کښی نه داخلوی ملا یانو دي ته نه کتل چه اسلام خو علم په نرو او ښځو یو شان فرض کړی دی یوازې د ملا دسو مخالفت نه کولو د اخبارونو لي هم سخت مخالفت کولو اول خو به یي ویل چه په دې کښی تول دروغ دي په چل ول دخلکو نه پیسی اخلی بیا چه خلک لږ لږ پوه شول چه په اخبارونو کښی خو د خدای او رسول خبري هم وي بیا به یي داپراپیگنډه کوله چه په اخبارونو کښی د آیاتو نو بي حرمتي کېږي په اخبار کښی آیاتونه لیکلی شی او بیا په لا رو کوڅو او د هرانو کښی پراته وی.

ماله چه به کوم اخبارونه راتلل ما به په حجره کښی خلکو ته لوستل خو چا به ورته سنه غوږ نه اېښود یو الهلال ته به یي لږ غوږ کښېښو ځکه چه یو څو کښی د خدای او رسول خبري وې او بل د ابو الکلام ازاد اخبار و.

پښتانه اوس هم د اخبار لوستلو شوق نه لري په چېتې څیز و تو په لی خا
رواجونو په زړ کونو روپۍ خرڅ کوي خو په اخبار یوه پیسه نه ورکوي او هلا وجه
ده چه د دومره بهادر او لوی قوم پخپله ژبه کښې یو قومي اخبار نشته - زمونږ یو
لوی خان و یوه ورځ لی په ښار کښې یو هلک لیدلی دی چه اخبارونه وا سره دي
او چغې وهي چه اخبار واخلئ ، خانصاحب گمان کړی دی چه دا کوندی وریاد
اخبار یې ورنه اخیستی دی خو چه هلک ورنه پیسې غوښتي دی ده اخبار بیرته
ورکړی دی او اخیستی یې نه دی چونکه زمونږ د اخبار سره مینه نشته نو څکه
زمونږ پخپله ژبه کښې اخبار هم نه و . تخنگه چه یې د اخبار سره مینه نه وه د غسې
یې د خپلې ژبې سره هم مینه نه وه د تعلیمیافته کسانو سره به مې چه د ژبې په باره کښ
خبرې وکړې را ته به یې ویل چه پښتو الا د څه ژبه ده؟ په دې کښې علم نشته پښتو
کښې څه دي ؟ ما به ورته ویل چه هلکه د انورې ژبې خو د اسمانه نه دي را کوز
شوي د هرې ژبې ویونکو خپلې ژبې ته ترقي ورکړې ده . پښتنو چه خپلې ژبې ته
توجه نه ده کړې دې کښې د پښتو ژبې څه گناه ده او دا خو زما او ستا گناه ده
ما چه وا ده وکړ کله چه به مې اخبار لوست نو به مې را ته ویل چه دا اخبار
څه له لولې د اخو ټول دروغ دي ما به ورته ووې چه نه دا خو پراپیگنډه ده اخبار لوست
ډېر ضروري څیز دی بیا به غلي شوه ویل به یې زه څه خبره یم خو خلک دا ...
وائي بیا به یې را نه پوښتنه وکړه ښه ده نو څه یکښې دي ما هم پرې یوه کره
به مې ورته ویل چه دې کښې د ټولې دنیا حالات دي ما به بیا ورته ځینې مطالب
د پښتنو ښځې د نارینه وو ذهنیت دې د هغې هم د اخبار او تعلیم سره ورو ...

دلچسپي پيدا شوه دقرآن او دين او نورو ضروري خبرو معلومات به مي ورته ورکول. هغه په پلار ډېر ګران وه په خپله پلار کښې يې ډېر اثرو دهغې په وجه زما د سخر کښې په ښځو کښې هم ډېره تبديلي راغله زما به هميشه داګوښښ وُچه د ښځو د مغزونه دکهترۍ احساس ليرې کړم ځکه چه په دوي کښې دا احساس خودغرضو او نا پوهو سړو پيدا کړي دې زما به خپل تهر سره په دې خبره بحث کولو چه ښځه او نر دواړه دخداى په نزد يو شان دي د روند والى او سپکوالى په عمل دى او دا به مي هم ورته ويل چه ددې احساس په پيدا کولو کښې تاسو ښځې پخپله هم ګرمې يي ځکه چه زوى ته په يوه نظر ګورئ او لور ته په بل نظر او دوړ وکوالي نه د جينکو په مغزو کښې دا خبره کښېنوئ چه هلکان او ناريينه خداى د جونو او ښځو نه بهتر او لوى پيدا کړي دي بيا به مي ورته دا هم ويل چه انسان دخداى په ټول مخلوق کښې اشرف ګڼلى شي نو بيا دې وجه لي د نور مخلوق نه ذمه واري زياته ده خو زه چه دې خپل قوم ته ګورم ما ته په دوى او ځناورو کښې فرق نه ښکاري د دوى سره هم دخپلى ګېډې غم دى او د ځناور سره هم دخپلې ګېډې غم دى د دوى سره هم دخپل کور غم دى او ځناور سره هم دخپلې جالې غم دى دوى هم بچي راوړي او دخپلو بچو غم خوري او ځناور هم بچي زيږوي او لويوي يې نو دوى به څه اشرف المخلوقات وبللې شي؟ دوى هم لکه دځناورو په شان يو بل وژنى دوى به هله اشرف المخلوقات وګڼل شي چه دوى کښې اجتماعيت، ورورولي عزيز ولي او مينه محبت پيدا شي. تش په دې چه نور ځناور په غلورو پښو ګرځي او

انسان په دوه پښو اشرف کېدی نه شي . يوه ورځ مې په خبرو خبرو کښې ورته ووېل
چه نارينه مرشي ښځه کونډه تون کوي او چه ښځه مره شي نارينه سمدستي
بله ښځه کوي . په کار خو دادی چه د ښځې ښښتن مرشي چه هغه هم بل مېړه وکړي
ماوې زما په خبره پوه شوې ؟ دې ويل هو ! ماوې معلومه نه ده چه څوک به
ه خلکښې مري خو که زه مړ شم او نه خوانه وې دبل مېړه په کو لو کښې هيڅ شرم
ونه کړې دې راته ووېل دادې غيرتي خبرې راته مه کوه .

## آگره کښې د مسلم ليگ جلسه :

په ۱۹۱۳ع کښې په آگره کښې د مسلم ليگ سالانه جلسه وه هغه وخت
به د مسلم ليگ جلسې په دسمبر کښې دبره دن په چوتيو کښې کېدې ماچه
اخبار ونو کښې ولوستل چه د آگرې په ښار کښې د مسلم ليگ جلسه ده نو
اراده مې وکړه چه ضرور به په دې جلسه کښې شرکت کوم ولې چه دا سياسي
جلسه وه او زمونږ په ملک کښې سياسي جلسې نه وې او نه ورسره خلک
بلد وو . که څوک يوې پوهېدل هم د پرنګيانو د وېرې چا د جلسې نوم قدر نه
اخيستی نه شو د پرخلک خو ترې خبر هم نه وو زمونږ په علاقه کښې هغه وخت
د ملا يانو به په داسې مسئلو بحثونه وو چه د تام او ملک او اسلام ته به ترې
هيڅ فايده نه وه مثلاً چا به ويل « ضالين » ، دې او چا به ويل « ظالين » ، د
چا به ويل د سبابې توبه قبوله ده چا به ويل نه ده قبوله . د غه شان چا به کونه او چتوله
سنت ګڼل چا به بدعت . په د غسې خبرو به د ملا يانو بحثونه وو په خو
او ښارونو به کتابونه بار يو ځای نه وو ه او بل ځای ته وړه او بحثونه کوه او خبر

مه فیصله کوه په دی تو که به یي دخلکو توجه دژوندانه دمهمو مسایلو نه بل پلو
اړوله ما ته په دي کښي دپرنګیانو لاس ښکاره بده ځکه چه کله کله به دا خبره هم
پکښي اوچته شوه چه که دانګریز او روس جنګ شي مونږ له دچا امداد کول په کار
دی د دي سوال په جواب کښي به بیا اختلاف نه وتو لو به ویل چه انګریزان اهل
کتاب دي او روس سور کافر دی مونږ ته دانګریز مرسته ضروري ده حال دا
چه انګریزان هم عیسائیان دي او روسان هم عیسائیان وو.

یوه ورځ په مامند نارې کښي دجمعي دلمانځه نه وروسته ناست یو چه
په دې خبره بحث شو چه دسابي توبه قبوله ده که نه ده؟ یو ملا ناست و د دېرې
ملا په نوم مشهور و هغه ووې که غوک والي چه قبوله ده زه یي ثابتوم چه قبوله نه ده
او که غوک والي چه قبوله نه ده زه یي ثابتوم چه قبوله ده مطلب یي دا و چه خلکو ته خان
وښیي چه زه دومره لوی ملا یم چه ناروا خبره روا ثابتولی شم او په خلکو یي هم دا
اثر و ناستو خلکو یو بل ته وکتل او وي ویل چه دېر لوی عالم دی خو ما ته دا
خبره عجیبه ښکاره شوه چه په مذهب کښي خو دوه خبرې نه وي یوه وی نو ما
ورته وویل چه ملا صاحب که خدای او رسول والي چه قبوله ده نو ته به یي څنګه
نا قبوله کړې او که هغوی والي چه نا قبوله ده نو ته به یي څنګه قبوله کړې د ملا صاحب
زما خبره خوښه نه شوه او خبره یي په بله واړوله. دوی به خپله ملایي خلکو ته
ښوده او دقام یي ښته وښکله. په خلکو کښي یي دومره نفرت پیدا کړی و چه
اکثرو دیو بل مړي ژوندی پرېښی و دیوی دلي مشرمانکی ملا صاحب او دبلې
دلي ملا صاحب و یو په بل به یي دکفر حکمونه کول حال دا چه دواړه یو خدای منلو

سره ده مشران نه معلوم شو یوه . چه د انګرېزانو خانانو جوړه کړې نوې ډله ده
بېشکه دروغ وئیل -



یو رسول یې منلو، یو قرآن یې منلو او د یو حنفي مذهب پیروان وو حتی د یو
پیر مریدان وو. د سوات صاحب مریدان وو -

زه او زما د سبق ملګری عبد الحلیم د مسلم لیګ په جلسه کښې د ګډون
د پاره اکوړې ښار ته روان شو. شپه مو نوښار ته پوره هلته د نوښار په تانه کښې
تا مښیدار د دوه سرو غلام سرور خان ؤ. د نوښار د تانې خوا و شا آبادي نه و
سپېره ډاګ ؤ. غلام سرور خان په خټ کلي کښې اوسېده شپه مو د هغه
سره شوه د ډاګ ګاډي د شپې په یوولسو بجو را روانېدو او په یوه بجه نوښار
ته را رسېدو مونږ په دې ګاډي کښې اکوړې ته تللو چه د شپې دوه دي
په خټ کلي کښې وخوره د شپې په ۱۲ بجو د ګاډي په پټلۍ باندې پیغ ستیشن
ته وا روان شو په لاره کښې د ځناورو غرار شو، د غراري اواز ورو ورو مونږ
ته رانږدې کېده مونږ په دې فکر کښې وو چه دا اواز به د څه شي وي چه
په دې کښې ځناورو را باندې حمله وکړه. مونږ هیبت واخیستو شور موجو
کړو د خدای فضل د خوله یې را وانه چوله بېج شو معلومه شوه چه هغه شر منګ
وو غلام سرور خان پرې د تمانچې ډز هم وکړو. مونږ ټیشن ته ور
لو. ساعت پس ریل راغی او مونږ د واړه د غلام سرور خان نه رخصت شو
اکوړې ته روان شو، چه اکوړې ته ورسېدو په یو سرای کښې مو یوه کوټه
کرایه واخیسته په کښې د ېره شو. سبا له جلسه شروع کېدونکې وه مونږ
سهار وختي د جلسې ځای ته لاړو د جلسې د پاره لوی پنډال جوړ شوی
ستېج د پاسه او لاندې کرسۍ لګېدلې وې مونږ ټکټونه واخیستل

په کرسو کښې ناستو. سر ابراهیم رحمة الله د دې جلسې صدر و مولانا-
ابوالکلام ازاد، سر آغاخان او د هندوستان نور ډېر غټان د ستیج
د پاسه په کرسو ناست وو. د صدارت د خطبې نه وروسته قسما قسم
قرار دادونه وړاندې شو او مختلفو کسانو تقریرونه وکړل. سر آغاخان
هم په فارسي ژبه کښې ډېر ښکلې تقریر په ډېره فصیحه ژبه وکړو د درې
ورځو پورې جلسه وه. د جلسې د ختمېدو نه پس مونږ د تاج محل شاهي
جومات او ښار سیل وکړو او بیا د آګرې نه ډیلي ته لاړو هلته د مولوي
سیف الرحمان مېلمانه شو، ډیلي کښې مو هم د کتلو قابل ځایونه ولیدل. یوه
ورځ په شاهي مسجد کښې ناست وو یو سپین بږیري ووېل چه ډیلي هیچا
سره وفا نه ده کړې معلومېږي چه انګریزانو هم زوال په برخه شوی دی
چه دارالحکومت یې د کلکتې نه ډیلي ته رابدل کړو. په دغو ورځو کښې
دارالحکومت رابدل شوی و، خلور دیرش کاله پس د هغې سپین بږیري
پیشګوئي رښتیا شوه.

په دې ورځو کښې به کانګرس او مسلم لیګ دواړو د لوډېر ګیانو نه د عهدو
او مراعاتو نو سوال کولو او قرار دادونو به یې پاس کول چه مونږ ته دا راکړئ او
دا راکړئ. د هندوستان د منورینو (انټیلیجنسیا) اکثریت په کانګرس
کښې وو، خو وخت چه ګاندهي جي د افریقې نه راغی او به په کانګرس کښې شامل
شو د کانګرس حالت بدل شو د تشو مطالبو او تشو خبرو په ځای د ملک د
حقوقو د اخیستلو د پاره عمل او جد وجهد شروع شو. حقیقت دا دی

چه حق خوک چاله ورکوی نه بلکه حق اخیستل کیږی. کله چه د کانګرس پالیسی د
منتونو او زاریو په ځای عمل او جد وجهد وشو هغه کسان چه مصیبت کالو
وو لکه جناح صاحب، کنزرو، جیکار او سپرو او نور د کانګرس نه ووتل، جناح
صاحب مسلم لیګ ته لاړ او دې نورو لیبرل پارټی جوړه کړه. خبره داسې وه
چه وخت د رولیټ ایکټ مسئله پېښه شوه نو جناح صاحب او سپرو وغیره ډ
قول مخالف وو نو سوال دا پیدا شو چه که حکومت زمونږ مطالبه ونه منی نو بیا
څه کوو؟ دې ذکر شوو کسانو وویل چه احتجاج به کوو ددې نه پس سوال داسې
پیدا شو چه که بیا حکومت هم مطالبه ونه منی نو بیا به څه کوو دې کسانو وویل «بیا
هم احتجاج کوو،» ګاندهی جی وویل که زمونږ خبره حکومت ونه منی نو جد وجهد
به کوو،» په دې خبره دوی جدا شول.

## کلی وطن کښې تعلیم او تبلیغ:

څو ورځې پس له ډیلی نه کلی ته راغلو چه کلي ته راغلو خبر شوم زما زو
غنی پیدا شوی دی. زما د تېر ورور نه ٔو نود زوی په پیدا کیدو ډېره خوشالي
د جمې په ورځ کښې به د حاجی صاحب په ځای کښې ډېر خلک جمع کېدل، دا
د پاره به له لیرې لیرې ځایونو نه راتلل. زه به هم که په دوره نه وم خامخا ور تلل
مهتمم صاحب، مخفی صاحب او مولوی فضل ربی صاحب به هم د سلامشو
د پاره کله ناکله راتلل. د جمې د لمانځه نه پس به ما خلکو ته وعظ او نصیحت
کاوه خو د ملایانو نه خوښېده ځکه چه زمونږ ملایان د بې همنانو غونډې ځا
د مذهب ټیکه داران ګڼی. ما د خپل قام د اصلاح د کار د خدای د پاره

دهغوی پروا نه ساتله اخري رالیسی پته پته پراپیګنډه شروع کړه چه بزیره یې خرییلی ده او وعظونه کوي اول خو دې خپل ځان په شریعت برابر کړی بیا دې نورو خلکو ته نصیحت کوی. ددوی خو په بزیره او اسلام غرض نه و زما بد ناموول یې غرض وو نوم هم ناپوه او جاهل ؤ چه ملا به ورته ووي چه دا مذهب دی ده به هم منله. ملایانو بزیرې له دومره اهمیت ورکړی وو چه ټول اسلام یې تش د بزیرې پورې تړلی ؤ حال دا چه مذهب خو ښه عمل دی[*]، مذهب خو په بنیادی دول د اخلاقو او عمل سره تعلق لري بزیره پرېښودل او بریتونه خرییل دا د عربو تهذیب و. یوازې د صحابه (رض) نه بلکه د اسلام د دښمنانو عربو لکه ابوجهل، ابولهب وغیره وهم بزیری وې. سره ددې هم ددې د پاره چه د ملایانو د اعتراض نه خلاص شم بزیره می پرېښودله خو بیا هم د ملایانو نه خلاص نه شوم بیا به یې ویل چه دموچی نه کمه ده. د دنیا تاریخ ګواه دی چه په کوم قوم کښې دا سی اشخاص پیدا شوی دی چه هغوی د خپل قوم د اصلاح د پاره پاڅېدلي دي د اقتدارخاوندانو یې مخالفت کړی دی ولی چه هغوی خپل اقتدار په خطر کښې لیدلی دی تاسو دې خپل د خدائي خدمتګارو تحریک ته وګورئ څومره چه قوم کښې پوهه راغلې ده هغومره د اقتدار د خاوندانو قدرت کم شوی دی او د خپل پیغمبر (ص) ژوند مطالعه کړئ چه څومره زورورانو یې مخالفت وکړ دا څه د پاره؟ د اقتدار د پاره. د مدینې خلکو یې ملا تړ وکړو ولې چه د هغوی سره نه مذهبی اقتدار وو نه سیاسی چه دوی یې مخالفت وکړو هم د اقتدار د پاره و.

زمونږ مدرسې په ترقئ کښې وې پښتون ژوندی قوم دی خو چه د

[*] بزیره خرییل بلا کار دے چه عمل نه دے

دڅوندی کولو خلک پکښې پیدا شي ترڅوچه په یو قام کښې دڅوندی کولو د پاره خلک
پیدا نه شي هغه قوم ژوندی کیدی نه شي . په لرهٔ موده کښې خلکو خای په خای
مدرسې جوړې کړې او په ډیر شوق یې په کښې چیل بچي داخل کول . خو مره چه
مدرسې زیاتیدې هماغو مره زمونږ پیسو ته ضرورت ډیریده خکه چه بې پیسو په
دنیا کښې هیڅ کار نه شي کیدی . پښتون قام شوم نه و مهمان نواز و . فیاض و
خیر و خیرات پکښې و . خو کومه طریقه چه ملایانو ورته د خیرات ښودلې وه هغه په
دې وخت کښې کټوره نه وه . قام په پوخ خیرات اوموخته ؤ حال دا چه زمانه بدله
شوې وه د پوخ خیرات ضرورت نه و پاتې د نقد او خام خیرات ضرورت و . دا
د بدلون سره که قام بدل شي ترقي وکړي که نه وروسته پاتې شي . د ذکوة په باره
کښې هم ملایانو قوم ته ویل چه په مدرسو ذکوة نه کیږي . د ملایانو سره په دې
خبرو ډیر بحثونه شوي وو خو ملایان دې ته تیار نه وو چه د قام د ابادی او تعلی
د پاره د یوې نمونې ورپیژنه نیرشي . قام په رسم او رواج تنګ شوی ؤ خو دا چه
پکښې نه و چه پرې یې ږدی . رسم و رواج پرېښودل اسان کار نه دی ، په ډیر
ډیر ګران دی او اخلاقي جرئت غواړي . مونږ چه په دې دو قوم ته تللو په هر ځا
کښې به قوم راته راغونډ شو چه د قوم سره به مو خبرې وکړې نو خینې خلک به را
راچاپیره شول چا به ویل ما به شاد تپوه چا به ګوره یا مالکه راوړه چه دا د
که چا به ویل چه دم را باندې واچاوه ما به خلکو ته ویل چه زه کف او چف نه
نه یم زه خو ستاسو خدمتګاریم . ستاسو خدمت له راغلی یم تاسو باید په
او په هغه کف او چف والاو کښې فرق وکړئ هغوی خو درنه په د غه طریقه شک

ـه نن سبا ملا سیې نه ګوة اخلي - متعرض ۶ ـ نقرآن میناهې

نه ددې راکړي بې سوته ملړ او وکړي مزدوري د پاره دامداد
او خندل وډېر صاحب حاجي . بېرسي راو فايده ډېره ته مونږ به
دي خواره داتيار کول خه بيا بي دولته نو کارکولي دوي که : ويلي وي
وسلم عليه الله صلى الله رسول چه دا حال دي بنکار بد کول کار ته دوي
فرمايي : « الكاسب حبيب الله » يعنى كسبگر دخداى دوست دى .

## دشیخ الهند صاحب سره

جنوري ۱۹۱۴ع . آزاده علاقه کښې دمرکز تلاش د دیر

باجوړ، چمرکنډ . هډې ملا صاحب، سالارزی

او مامونډ . اولنۍ جنګ عظیم دشیخ الهند

صاحب پروګرام دترنګزو دحاجي

صاحب هجرت

زما بېرته تګ . بنیر کښې د پرنګیانو سازش، مدرسې

بند شوې . دحاجي صاحب ترنګزو مومند و ته تګ ، د

سوات د باچاهي کشاله . دپرنګیانو مظالم

## دشیخ الهند صاحب خط :

مونږ به په کال کښې یو ځل دوه دیوبند ته تللو او د مولانا محمود الحسن ص
او مولانا عبیدالله سندهي صاحب سره به مو لیدل کتل کیده او په دې به مو تبادل
خیال کولو چه څنګه به د پرنګیانو د غلامۍ نه خلاصیږو ؟
دجنوری ۱۹۱۴ع کال په سر کښې دحضرت مولانا شیخ الهند محمود الحسن
صاحب خط راغی چه دیوبند ته راشه ، نوزه مخفي صاحب او مولوی فضل ربی صاح
دیوبند ته لاړو دستیشن نه نیغ مدرسې ته لاړو . لهغه ځایه مولانا عُذیر ګل
د مولانا صاحب کورته بوتلو . مونږ د سي . اي . ډي له ویرې بهرنه ګرځید
شیخ الهند مولانا محمود الحسن صاحب د دیلي نه مولانا عبیدالله سندهي
راوغوښت ، دډیر بحث او غور نه وروسته مونږ په دې نتیجه ورسید
مونږ له دوه مرکزونه جوړول به کار دي یو په هندوستان کښې دننه او بل
هندوستان نه بهر په ازادو قبایلو کښې هلته چه خلک یې د انګریزانو تنخواخو
نه وي او مجاهد قام وي چه هلته د هندوستان د ازادۍ دپاره یو فوځ تیا
ددوی دا خیال وچه دامرکز دې په بنیر کښې جوړ شي کوم ځای کښې چه د هند
دمجاهدینو دله اوسیږي . داهغه ټولي وچه د سید احمد بریلوي صاح
او اسماعیل شهید صاحب په بالاکوټ کښې د شهادت نه پس د هغوی پ

ملکری دهزارۍ نه بنیرته تللی وو او به بنیر کښی په سیتانه کښی میشته شوي
وو او تر دې وخته پورې به ورته د هندوستان نه دسره او روپو امداد ور کول کېدو
خو به دوی کښی هغه جذبه او روح پاتی نه وه په کوم روح چه سید صاحب او شهید
صاحب ورته شوي وو. دوی دومره بې کاره کسان وو چه خپل د شاوخوا علاقی
خلک یې په خپل خیال نه وو پوه کړی او نه یې پکښی هم خیال ملګري پیدا کړي وو. یوه
ورځ زمانه ۶ د مولانا ابوالکلام ازاد هم ددوی خلکو په باره کښی تبادل خیال شوی و. مولانا
صاحب هم ددی خلکو په باره کښی خوش اعتقاده وه چه دا کار تېګ دی خو ما ورته دویل چه دا
بیکار خلک دي. د هندوستان حساب ته ناست دی او خوري یې د دوی
دا عقیده وه چه په توره او نیزه او لینده او غشی جنګ کول به کار دی خکه چه د
رسول الله (ص) ملګرو به دې شیانو جنګ کړی دی او فتح یې کړې ده. داسنت ★
دی. دې ته یې نه کتلو چه د رسول الله (ص) ملګرو چه په توره. لینده او غشی جنګ
کولو هغه وخت د کفارو سره هم دا وسلې وې. نن خو دنیا ترقی کړې ده. د توپ او
توپک زمانه ده. توره. نیزه او لینده د توپ او توپک مقابله نشی کولی خو د هندوستان
خلک به دې حقایقو خبرنه وو او نه ورته ددې د لې ماهیت معلوم و. د افسوس
خبره دا وه چه د مسلمانانو لوی لوی لیډران او علما ددې حقیقته ناخبره و. مونږ ته
ددې ټولې ټول حالات معلوم وو. مخفی صاحب ددوی د حالاتو د تحقیق د پاره
خپله بنیرته ورغلی و. په سمخو کښی یې ورسره ناستی کړې وې مونږ د دیوبند ملګرو ته
دی خبره پوه کړل چه نه دا مجاهدین د کار خلک دي. او نه دا ځای د
مرکز د پاره مناسب دی.

## آزاده علاقه کښې د مرکز تلاش :

فیصله مو په دې وکړه چه زمونږ دیو وفد تلل په کار دی
چه په ازاده علاقه کښې د مرکز د پاره یو ځای خوښ کړي. د دې کار د پاره زه او مخفي
صاحب وټاکلی شو چه اول مونږ به قبایلي علاقه کښې وګرځو او ځای خوښ کړو بیا به
دوی ته خبر ورکړو. سندهي صاحب به راشي او هغه ځای به وګوري چه دده هم پکښې
اتفاق راشي نو کار به پکښې شروع کړو. د فیصلې نه مخکښې د دې کار د پاره زه د پېښور
او جوش کښې وم خو چه فیصله وشوه او زه به واړي را بانډې پرېوته غوني مې خېږ خېږ شو
او ځان مې دروند شو لکه غر چه را بانډې پرېوتی وي. چه جرګه ختم شوه او خپله خپله
کوټو ته لاړو په تنهایۍ کښې مې ډېر وژړل او په دې ژړا مې لږ زړه سپک
او ده شوم سحر چه را پاڅېدم زړه ته مې ډاډ ورکړو را رخصت شوا وکلي ته را
زمي و سنه یخني وه کاڼي ګرځېدې ما او مخفي صاحب د تللو د پاره سلامت
وکړه نېټه مو مقرره کړه چه د تخت بابي د کاډې په سټېشن به یو ځای
کېږو. تخت بابي زمونږ د کلي نه د ولس میله لیرې ده ما د تللو خبره ډېر
پټه وساتله یو د حکومت له ویرې بل له دې ویرې چه مور به اجازه رانکړي
ما هغې ته دا بهانه وکړه چه زه اجمیر شریف ته ځم چه تېر مې دا واورېده
زه اجمیر ته ځم ډېره خوشاله شوه ځکه چه زما سفر کښې د اجمیر شریف چمنې
وو او سفر به مې کال په کال اجمیر شریف ته تلو او دده دا عقیده وه چه
دا اولاد اجمیر شریف راکړي دی او دا د هغه چمنې دی. د اجمیر فقیرا
کال په کال راتلل او ډېري روپۍ به یې ورنه وړلې غني چه وشو د اجمیر فقیر

رازره وته راغلي وو خبر شوي وو چه دخان لمسي شوي دی نوهلته راغلل په
دی خیال چه دا هم غوره اسامي ده کیږول بي په کار دی خو په مايي دم ونه چليده
اوږه دي اوږه دي قصي يي راته راواخيستي چه کوندي غني د اجمیر شریف چمنی
دی ما وورته ووي چه دازما چمنی دی د اجمیر شریف چمنی نه دی. ددی خبری
په اوریدو دیر حیران شول چه دالا کوم قسم سړی دی مایوسه بیرته لاړل.
ما دخپل کلي نه شپه مامند نادی ته راوړه سبا په اس سور تخت بايي ته
روان شوم. ماسپښین ستیشن ته ورسیدم مخفي صاحب مخکښي راسیدلی
و ما اس نوکر ته ورکړ او رخصت می کړ. ریل به مازیګر درګئ ته روانیده مونږ
ما ښام درګئ ته په کادي کښي ورسیدو. دستیشن نه بهر دکرايي ټانګي ولاړي
دي مونږ دواړه په ټانګه کښي بټ خیلي ته روان شو. د ملکنډ په غاښي دپوليسو
څوکی وه هره ټانګه به يي لټوله زمونږ ټانګه يي ولټوله او د ټانګي نه راچاپیر شو
او ښتنی يي لاندکړي. زه وبریدم چه دوی نه پیژني او څه شک يي راباندي راشي
څکه چه هغه وخت په ایجنسو کښي ډیره زياته نګراني وه چه په چا به يي شک راغی
به يي نیوه او په کاټ کښي به يي واچولو. کاټ یو اوږد لوګی وهغه کښي به سوري
دسړي پښه به يي په هغه کښي اچوله او د پاسه به يي پړی پاڼه تک وهله او هغه
به يي پيړي کولي چه هلاکو خان به هم په چاکړی نه وي او د ملکنډ پوليټيکل
ايجنټ پرتګي دفرعون نه هم دوه ګوتي زيات و. خلک له خدايه دومره نه و بیریدل
دده نه چه به وبریدل. تیاره وه په مونږ د چا څه شک رانغی او چه زمونږ تم تم
لا ته يي اجازه ورکړه نو ابله مولادي تېری شوي ماسختن بټ خیلي ته ورسیدو

مونږ په پټ خپله کښې څوک پېژند ونه او سرای او هوټل نه وو خو د پښتنو حجرې او جو
تو نه د میلمنو او مسافرو د پاره تل بېرته وي . مونږ حجرې ته لاړو چه څوک مو
ونه پېژني او حکومت را باندې خبر نه شي جومات ته لاړو ځکني وه مونږ سره ځو
څه جامې نه وې خو جومات گرم و او د پکښې بلېدو په بوریا د کښې مې ښه شپ
تېره کړه سهار وختي پاڅېدو په چلک ده کښې په سپینډ یوخ پل دی په هغه پو
وتو او نور تول پیاده منزل شروع شو ځکه چه هغه وخت په دې لار د سورلۍ څ
انتظام نه و تسپه مو املوک درې ته ورسوله په یو جومات کښې مو تېره کړه ملا بانگ
د املوک درې نه روان شو تول ورځ مو منزل وکړو ماښام تیاره د سپینډ غاړې
ورسېدو او به لوږې وی خوږي وی په چرپوړې وتو او ماسختن تېرا ایله په څ
د مخفي صاحب دوی کلی ته ورسېدو ستړي ستومانه وو په نخوا او بو کښې پو
وتلي وو ځکني موشوې وه ښه وزي وو خو د مخفي صاحب د ځپلو ځپلوانو کور رو
وو زړ زړ لي راته او رونه بل کړل چه تاوده شو د دوی ډې لا وره ښه په مس
کېږد مو وخوره کتونه یې راته جوړ کړل پکښې پرې وتو . په جوماتو کښې خو
په ځمکه وی او حجرو کښې په کتونو کښې وي . دې علاقې ته سپینډ وایې ځک
سپینډ پکښې بهېدلی دی د مخفي صاحب دوی په کلي کښې چه سړی د
په غره کښې ناست وی لاندې سپینډ ته گوري لکه چه چیه ماړ کوږ وو
دا کلی د پوښکلی و . د سپینډ علاقه اباده او ښکلې ده شولې پکښې کېږي
يې خوږې دي . د مخفي صاحب پلار په دې کلي کښې زېږېدلی او خو په ځپله
صاحب د هشنغر په چارسده کښې زېږېدلی او پلاري چارسد

دشوی و . دده پلار لوی عالم و واده یې په چارسده کښې کړی و نو هملته او سېدل
غه وخت کښې د دیني علم د زده کړې د پاره ملاسي نه وې هر ملا چه به د ملا
یې وتو له دخپل کلي یا دبل کلي جومات کښې به کښېناست خلکو ته به یې
ای جاتي درس ورکولو . اکثر خلک به دغرونو دعلاقو نه سمې ته د درس
ره راتلل دمخفي صاحب پلار هم په دې سلسله کښې راغلی او بیا هملته
چارسده کښې پاتې شوی و دېر ښه عالم او روښن فکره سړی وکه روښنفکره
ای نو هغه وخت به یې زوی علاوه په دیني ، دنیایي علم ځنګه کړې وای .
زه د پیاده ګرځېد و عادت نه وم ښه ستړی شوی وم ، څو ورځې مو
ته ښه ارام وکړ . مخفي صاحب رانه بېرته هندوستان ته د مولانا عبیدالله
سندهي د راوستو لپاره لاړ زه او د مخفي صاحب یو د تره زوی چه نوم یې
هېر دی د مرکز خوښولو د پاره روان شو . مخفي صاحب پېښور ته او
چمرکنډ ته روان شوم ، چه سره جدا شو ما د مخفي صاحب جدایي ډېره
سوسه کړه ، چمرکنډ د افغانستان په پوله دغره په سر یو ورو کی غونډی
ی دی د اډې ملا صاحب چه څه وخت په افغانستان کښې د بزرګۍ رواج
نو او اثر رسوخ یې زیات شو او امیر عبدالرحمن خان له افغانستان نه
ي لو چمرکنډ ته راغلی و ، د اډې ملا صاحب یو غازي سړی و د هغه په وجه
مرکنډ ډېر مشهور شوی و .

مونږ چه د مخفي صاحب له ځایه روان شو ما ښام د چار ، ته ورسېدو
یو وړوکی غونډی کلابند کلی دی مونږ چه ورسېد و د کلا د دروازه بنده

وه خواد شابل کلي نه واریان شو چه څه به کوو اخر مي خپل ملګري ته وويل
دروازه و ټکوه هغه چه دروازه و ټکوله د ننه نه اواز و شو چه څوک يي مو
میلمانه یو لږ. شېبه پس يي دروازه خلاصه کړه مونږ ته يي ښکته پورته
چه يقين يي راغي چه مونږ خطرناک کسان نه يو کلا ته يي ننه ايستو د ننه
جومات ته لاړو دوډۍ يي راله راوړه شپه مو په جومات کښې تېره
سهار وختي روان شو شپه مو بابړي ملا صاحب ځای ته ورسول
لاره به چه د هغې سيمې د اسره څوک ملګري شو ما به ورنه د بابړي د ملا
پوښتنې کولې چه څنګه سړی دی ؟ دوي به وې چه : « غوله د ېر
زبرک دی » ما به وې چه څنګه لوی زبرک دی ، دوی به راته وويل
« غوله لاړ به شې او چيله به يي ووينې چه هرې پېښې ته څخپل لاس يو
غوړی اړوي » د هغه قام دې خدای مل شي چه د هغوی د زبرګی دا
وي . بابړي ملا صاحب يوسپين ږيری او ښه سړی و همېش چه به يو
د قبايلو سره جنګ کاوه بابړي ملا صاحب به د قبايلو په مرسته په غزا
شامل و د پرنګي سخت مخالف و ، غازي سړی و ، په نا پېژندګلۍ کښې
ډېر دارو ملا ر وکړ د سهار چايو ته يي خپل خلوت خانې ته وبللم او خپله
چای يي ماته راکړه . د چايو نه پس ورنه مونږ رخصت شو چمرکنډ ته
شو چمرکنډ له دې ځايه نږدې و کله چه مونږ د غره لمنې ته ورسېد
په غره ختو نا څاپه د پاسه را باندې غوښنو هلکانو مچوغنې راسمې کړې
يي ويشتو ډېر وار خطا شو اخر دې خوا مو وکتل چه دا څوک دی چه

ن چه کاته مو دغه پسرلي شو کسه هلکان دي چه مونږ کافي ورووي مونږ چغې
دي کړې هغوي چه زمونږ چغې او اشاری ولیدې په خندا شول هغوي ته دا
تماشا ښکاریده او که مونږ هیچ شوې نه وای او په یو کافي لګیدلی وای فیصله به وه
ټیز په یوه نوي کږه وږه لاره دغې سرته ختلو. زه دغې دمزل نه یم زده زه به
نوي کیدم او دمه به مو کوله په دمو دمو دغې سرته وختو ما اوریدلی دی لکه
نه چه دسمې خلک دغې دمزل تکړه نه دي دغسې دغر خلک دسمې او اواری
مزل تکړه نه دي.

## چمرکنډ:

چمرکنډ دپرښنګلی او دمزو ځای دی دغې په سرکښې دپاکو، صافو او بو
نه ده دڅرمې ګومه او داوړي یخه وي دچینې دپاسه یو ښه چنار ولاړ دی
خوا کښې لې دهلی ملا صاحب جومات دی دجومات خوا کښې لنګر خانه او
نوتهنی ردي خوکو ته تښتي وي ځوک پکښې نه و. اخر یو کوډ و خوا کښې لي یو
میوه داری ونی وې دغمو یو پېتی هم و دکوډ مخکښې یو ځوډ کلونو کیاری
رکو تې پېتی) هم وې. زمونږ په ګرځېد و او ګرځېدو او خبرو دکوډ خاوند
روت داد اديې ملا صاحب شیخ دیوازی دلته او سیده. راغې مونږ ته
ستړی مه شی وکړه په جومات کښې کښېناستو، شیخ صاحب مونږ ته د
ې ملا صاحب دزمانې یو لې قصې وکړې چه داځای هغه څرنګه اباد کړ
هغه په وخت کښې دلته څومره ګرمجوشی وه دلیری لیری ځایونو نه خلک
ی لماتخه له راتلل. ملا صاحب یو غازی سړی و شیخان دخپلو پیرانو

عجیبه عجیبه کرامات بیانوی . ماخو پخپله علاقه کښې دمانکی صاحب
سوات صاحب دکراماتو قصې اوریدلې وې ماته مې خپل پلار چه دسوات
مرید و قصه کوله چه ماته دسوات صاحب یو شیخ ویل چه یوه شپه را
سودا راپیدا شوه چه دا دلنګر خرڅ به له کومه ځایه پوره کیږي ؟ سهار چه
پاخیدم سوات صاحب پاخیدلی وا او دا سه ته یي ځان جوړ ولو چه او د
ته روان شو زه هم ورسره روان شوم ماته یي وویل دا اودس وچولو د پا
لوټه راواخله ماچه لوټه راواخیسته هغه « سنګ پارس »، وبله مې راواخ
هغه هم « سنګ پارس » وبله مې راواخیسته هغه هم سنګ پارس وا
شوم چه دا زما دبیکا نۍ خبرې جواب دی نود صاحب په پښو پریوتم او ع
ورته وغوښته زما دپلار هم په دې پوره باور وچه دا خبره رښتیا ده ا
به یي ویل دا اولیا و کرامت حق دی . دغسې مې د پیرانو پیر کرامات هم اور
وو چه د دولسو کالو دوبه بیړۍ یي راوښکلې ده چه نه دخدای له قول سره
خوری او نه د رسول الله (ص) دقول سره او ملایانو کښې دومره جرئت نه
خلک به دې پوه کړي چه دا هسې خبرې دي . زما د دې قسم قصو سره الف
و خپل پلار ته به مې ویل سوات صاحب چه دومره کرامت ، لوی بیا دخلکو
ولې اخلې او ملکانې ولې ټولوي . د تونګزو دحاجی صاحب په باره کښې به ی
شیخانو دغسې خبرې کولې او په دې طریقه یي غریب او ناپوهه پښتون ق
او لوټلو او خپل لوی والی به یي پرې منلو . زما په باره کښې به هم خلکو دغه ډنګ
کولې ، چا به ویل چه لاسونه یي اوږده دی ، بزرګ دی ، چا به ویل چه

ـه په موضوع ګوتې تحصيل صورت کښې ده سخت ګرمۍ په موسم کښې ده با جا...
مرحوم جلت ... ده د جلسه په ګنبره کښې ده او چوږ د شفاء ځمږه ...
۱۰۳ مشهوره شوه چه د مستجاب ...

اوبه ترخې وې چه ده پکښې يو منګې اوبه واچولې هغه خوږې شوې او د ليرې ليرې

ځايه به خلک راتلل، ويل به يې چه ددې کوهي اوبو کښې شفا ده، چه څوک يې او څښي

مرض به يې ليرې کيږي، او چه څوک پرې کالي (جامې) وينځي صابن ته ضرورت

نه پيښيږي، چا به ويل دده په ځای کښې دلسو کسانو د پاره ډوډۍ پخه شوې وه

سل ميلمانه پرې راغلل ټول پرې ماړه شول او ډوډۍ خلاصه نه شوه، دغه شان

قسما قسم عجيبه خبرې او قصې کېدلې، داخو خلکو ويل، زما ملګرې خدايي خدمتګار

وو، شيخان نه وو، او ما به هم هغوی ته داخبره کوله چه زه نه شيخان نيسم نه

مريدان! زمونږ يو مقصد دی، زمونږ د هغې د پاره شريک جد وجهد کوو.

شيخ صاحب هم د آدې صاحب ډېر کرامات مونږ ته بيان کړل خو مونږ

سره د هډې صاحب قدر او عزت د هغه د دا رنګه کراماتو په وجه نه و بلکه هغه د

پرنګی سره د مخالفت او غزاګانو په وجه مونږ منلی و. هډې صاحب د سوات

صاحب مريد و لکه مخکښې مې چه ويل امير عبدالرحمن خان د هډې نه چمرکنډ ته

شړلی و خو دلته يې ورسره د پرنګی خلاف په غزاګانو کښې پښه مرسته کوله مونږ ته

دې شيخ وويل چه د غزا په موقع به امير عبدالرحمن خان توپک او کارتوس

رالېږل. شيخ صاحب پوه او معقول سړی و هغه د خپلې ګذارې د پاره د شاتو

مچې ساتلې وې او ويل يې چه زما د کور ټول خرڅ له دې مچيو څخه لاس ته راځی مونږ

له يې چه ډوډۍ راوړه د غنمو ډوډۍ سره يې د خپلو مچيو شات راوړل هغه خوند

چه ما په دې ډوډۍ کښې ليدلی دی ما په ښو ښو ډوډيو کښې نه و ليدلی يو خو مونږ

وږي وو بل غرو، او د ابادۍ نه ليرې ځای و هلته د ډوډۍ پيدا کيدل امید

هم نه و. داځای خوزمونږ ډیرخوښ شو ځکه چه داځای دې خوامومند و او
باجوړ ته نژدې و او هغه خواسرکانو او کونړونو ته لنډ و بله داچه په جنګي لحاظ ډیر
محفوظ ؤ. هغه وخت هوائي جهازونه نه وو خو هغه ځای ډیر وړوکی واو زمونږ *
پلان پکښې عملي کیدلی نه شو.

سالارزی، ماموند:

دشیخ صاحب سره موشپه تیره کړه بیا سالارزو ته لاړو هلته مو هم ډیر
کلي وکتل. د سالارزو نه بیا مونږ ماموندو ته لاړو. سالارزي او ماموند د باجوړ
دوه لوئي لوئي قبیلې دي بالکل ازادې دي. د باجوړ په نوره علاقه کښې وړې
وړې خانۍ او نوابۍ شته د ماموند و علاقه ډیره اباده او بیړازه ده او په کښې
ډیرې دي خلک یې هم ښه خلک دي داعلاقه زما ډیر خوښه شوه کلي یې هم
لوئ لوئ دی. کټ کوټ او کبري پکښې د نورو په نسبت ډیر لوئ کلي دي جوماتونه
یې هم ښکلي او مضبوط جوړ کړي دي، روغ روغ غونډان یې پکښې لګولي دي او
زمونږ دکلو غونډی پکښې جوماتونه ډیر نه دي په هر کلي کښې یو جومات دی
متول کلي هغه یو جومات له لمانځه له راځي. په هر جومات کښې دا او د اسې د پا...
د روانو او بو انتظام شوی دی خلک یې ډیر لمونځ ګذار دي، او بې یې ډیرې *
یخې دي او دس پکښې زمونږ غونډی خلکو ته ګران وي خو جوماتونه یې ګرم وي
دژمي موسم ؤ او مونږ به په یو ځادر کښې شپه تیرو له. کوښښ به مو کو و چه
څوک مو ونه پیژنی ځکه چه ددې ځای ډیر طالبان زمونږ علاقې ته د سبق د لپ...
د یاره راځي په کټ کوټ او کبري کښې خو دیو کس دوه و شک راغی خو مونږ ځانونه

جانه کړل څو هغوی به دې خیال کښې چه دپښیر کوخان او دلته راتګ نوزړه ته به
راغلل چه مونږ غلط شوي یو یو خل ما ته یو کس ووېل چه ته دپښیر کوخان نه یې
درته ووېل چه نه . مونږ به په جوماتونو کښې شپې کولې چا سره موخبره مبره نه
له . چا چه ډخه راوړل هغه به موو خوړل . یوه شپه په کټ کوټ کښې یو سپین
ږیري ملک مېلمانه کړو هغوی مېلمه کوړته بیایي مونږ یې خپل کورته بوتللو ، نو ښځې
ته لاس په لامه ولاړ وو ډک شکور دوډۍ یې راته مخکښې کښېښوده د پرښه کوډلي
او د پرښه کوډبانه وو . مونږ د ماموند ونود کلي هم وکتل په اخر کښې مو څېړ ی خوښه
ره . دا علاقه زما د مرکز د پاره ډېره خوښه شوه یو خو د اخلک د پرستانه او درانه خلک
له داچه دا علاقه لکه د پښتنو د نورو علاقو په شان د انګریزانو نه متاثره نه وه او نه
ګریزانو ماجب خواره او نه یې په پیسو اخیستو اموخته کړي وو او د انګریزانو سخت مخالف
. انګریزانو به د باجوړ قوم ته لکه د نورو قومونو په شان حساب نه ورکوه . دلته به یې ماجب
انو ته ورکولو . نو قوم د پرنګي د اثر نه ازاد وو . مونږ دلته د مخفي صاحب او سنډاکې
حب د راتللو په انتظار پاتې شو ، دلته لکه زمونږ د علاقې پخواني رواج په شان دا
ه ده چه شل کاله پس قوم راټول شي او له سره د کلو او ځمکو ویش وکړي په هر
ي چه د چا خسنې و خبر ي هغه کلي له به ځي . دا د پښتنو عامه زړه قاعده
خوکومې علاقې چه د حکومتونو دا ثر لاندې راغلي هغوی کښې د ځمکو د ویش سلسله
ه شوه . د پښتنو کوم قومونه چه ازاد دي هغوی لا هغه شان شل کاله پس له سره
ن ویشي .

ما فکر وکړ که مونږ هسې هسې بې هیڅه دلته ناست یو نو د خلکو به راباندې شک

داشی داخه یوه قصه جوړه کړه چه دمخفی صاحب دوی توراتکه یوې وخت و
په جومات کښی یوې کوټنی کښی چیله شوم تش لمانځه، اوداسه او قضای حل
نه به داوتلم هغه به مې هم مخ پټ ونور به مې په کوټنی کښی وظیفه کوله، تزکیه نف
به مې کوله. ما دشیخ الهند محمود الحسن صاحب نه لاس نیوی هم کړی و
چیلی به دې خلکو ډېر لوی اثر وشو دهغوی داخیال وچه زه کوندې زبرګ یم
به دم، دعا او تعویذونه به یې راته غوښتل. یوه ورځې یوه ښځه راغله زوی ی
غمبر کښی وویل یې چه زما دې زوی ته دعا وکړه چه خدای یې د تی نه زر صبر کړ
د دوې کالو شو او تی نه پرېږدی چه تی نه ورکوم ژاړی بلده ورځ جوړه کړی
ورته وویې چه سور مرچکی ښه میده که او د تی به غوټی یې پوړی کړه امید
چه زوی به د تی پرېږدی. ښځه لاړه او داچل یې کړی وسبا له راغله
خوشاله وه د شاتونه ډک کنډول یې په لاس کښی ورته یې ووې چه ستا
خدای قبوله کړه. زوی می تی پرېښوده زه اوس به زور تی ورکوم دی یې نه
هلک به څنګه تی اخیستی وای د تی پوری مرچکی ودهغه خوله یې ترخه کړی
دوی داز ماکرامت ګڼلو حال داچه کرامت نه وخو پیښتانه ډېر خوش اع
خلک دی او خلکو ورته داخیزونه په ذهن کښېنولی دی. بس دخلکو تګ ر
ما ته زیات شو دغسی چه دوی ته هر چا خلکه یا جونګه جاره په سر اچولې
ورته راغونډ شوی دی شکرانی یې ورکړی دی خدمتونه یې ورته کړی دی و
یې ورته وهلی دی خو بابا کانوخیل مطلب په دوی کړی دی دوی له یې ځم
کړی د دوی غم یې نه دی خورلی.

دچیلی نه وروسته هم مونږ دمخفی صاحب او مولانا عبیدالله سندهی صاحب انتظار وکړو خو هغوی رانغلل زما سودا شوه چه دوی ولې رانغلل هلته چه مونږ خبر شو چه دیورپ جنګ شروع شو مونږ هم واپس را روان شو دمخفی صاحب دتره زوی تر ملکنده پوری راسره راغی له هغه ځایه مې رخصت کړ او زه په درګی کښې په ډیل کښې سور شوم په تخت بائی کښې کوز شوم او کلي ته لاړم څو ورځې پس مې مخفی صاحب ولیده پوښتنه مې ترې وکړه چه تاسو ولې را نه غلئ هغه راته وویل چه کوم ځای او کوم وخت چه ما د مولانا سندهی صاحب سره مقرر کړی وه هغه ترا وسه هلته نه دی راغلی نه پوهیږم چه څه وجه ده ؟ مونږ به په دې انتظار کښې وو چه یا به مولانا پخپله راشي یا به بل څوک را ولیږی چه دمرکز ځای ورته وښیو بیا هندوستان ته لاړ شو او دکار دشروع کولو بندوبست وکړو ده پروخت تیر شو او څوک رانغلل چه په دې کښې ددنیا اولنی لوی جنګ د نبت او زمونږ دغه سکیم په ځای پاتی شو او مونږ ته بیا دیو ځای کیدو موقع په لاس رانغله .

## اولنی جنګ عظیم :

کله چه ترکیه په جنګ کښې شامله شوه نو دهندوستان د مسلمانانو په جنګ کښې دلچسپي زیاته شوه یو خو ترکیه اسلامی ملک و او د مسلمانانو خلیفه او پیشوا ګڼل کیده او بله دا چه دوی فکر کولو که ترکیه او جرمن انګریز ووهي نو زمونږ ملک به مونږ ته پاتی شی دوی دې تدته کتل که انګریز د جرمن او ترک دلاسه ووهل شی خو دا ملک به هم جرمن یا ترک اخلی دا څنګه کیدی شی چه مړه کیږی به جرمنیان

اوترکان او وطن به پرېږدی هندوستانیانو ته خو به کوم قوم کښې چه مېړانه
او د قربانۍ ماده پاتې نه شي هغه به تل د بل تورې ته کوږې کله به د جرمن به تمه
وی او کله به د ترک په تمه وی او کله به د امام صاحب په تمه ناست وي، د هندوستان
د مسلمانانو لپه کمزوری داوه چه دوی به د خپل ملک اندرونی معاملو سره د ومره
دلچسپې نه اخیسته د نورو بهرونی خلکو په غم کښې به وو، دوی به دی فکر کښې
وو چه مونږ ته د ترکیې سره امداد پکار دی دوی سره د خپل ملک د ومره غم نه دی
لکه چه د بل ملک وي. سړی چه خپل ځان د غلامی نه نه شی خلاصولی هغه به د بل سره
څه مرسته وکړی شی که مونږ رښتیا د دنیا د نورو مسلمانانو سره مرسته کول غواړو
نو به کار دی چه د پرنګی نه هندوستان ازاد کړو ځکه چه د هندوستان په وجه
هغه طاقتور دی او د هندوستان په زور هغه نورا سلامی ملکونه وو هل. د افغانستان
په جنګ کښې تول سپاهیان هندوستانیان وو صرف افسران یی انګریزان وو او د اترک
هم ورته د هندوستان پلټنو وو هل. د حضرت مولانا محمود الحسن شیخ الهند
صاحب او حضرت مولانا عبید الله سندهی صاحب په سلا او مشوره مولوی
سیف الرحمن صاحب د دیلی د فتحپوری عربی مدرسی پرنسپل یی د ترنګزو
حاجی صاحب له راولیږه چه هغه دې ازاد قبایلو ته هجرت وکړی او قبایل دې
د انګریز په خلاف اوچت کړي دغسی دې د هندوستان په ټولو سرحدونو کښې
د بغاوت اور وبل کړی شی او افغانستان دې هم دې ته تیار کړی شی چه
د ترکو او جرمن په مرسته کښې داخل شی او د پرنګی بر خلاف غزا شروع کړی د
هغوی مقصد داوه چه که انګریز خپل فوځ د جرمن او ترک مقابلې ته بیاییٔ د ته به زمونږ

په مقابله کښې کمزوري پاتې شي مونږ به بې ووهو او له هندوستانه به بې وشړو او که خپل نوځونه زمونږ د مقابلې د پاره په هندوستان کښې پاتې کړي د ترکو او جرمن په مقابل کښې به کمزوري پاتې شي هغوی به بې ووهي او مونږ به له غلامۍ نه خلاص شو. د جنګ نه وړاندې هم مونږ سره دا فکر وو چه یا په ازادو قبایلو کښې د پرنګیانو د مقابلې د پاره مرکز جوړ کړو یا د افغانستان سره تعلق پیدا کړو. چه جنګ د نښتو او جرمنیانو انګریزانو ته ځای په ځای ماتې ورکړه مونږ په دې فکر کښې شو چه مونږ له هم څه کول په کار دي باید ازادو قبایلو یا افغانستان ته هجرت وکړو مونږ لا په څه فیصله رسېدلي نه وو چه مولوی سیف الرحمن صاحب راورسېد او د شیخ الهند صاحب او دهغه د ملګرو پیغام بې راووړ مونږ ټول هجرت ته تیار شو حاجي صاحب خوشپه شپه بُنېر ته هجرت وکړو او وروسته مخفي صاحب، مهتمم صاحب، مولوی عبدالعزیز صاحب او مولوی فضل ربي صاحب دوی هم ورسره لاړل او زه ددې د پاره پاتې شوم چه د دوی او هندوستان د ملګرو تعلقات وساتم او دهغوی امداد دوی ته ورسوم.

## دحاجي صاحب هجرت :

دحاجي صاحب په تللو چه حکومت خبر شو په ملک کښې یې لوی غوبل جوړ کړو ځکه چه په دې وخت کښې د حاجي صاحب تلل د دوی د پاره ډېر خطرناک و، حکومت دحاجي صاحب د تللو دعلت معلومولو د پاره لوی لوی افسران مقرر کړل. ما دا خبره خوره کړه چه حاجي صاحب ته د حکومت یو لوی افسر

سره ده افسر خبره بیا هم خان هغه کړې وه چه حکومت یو
خپل کارکنان بدطرف شي ۱۲ آکرب خپل ځل ۱۲



سه

خبرداری ورکړه چه حکومت تا دخلافت په وجه ګرفتاروي نو حاجي صاحب ددي کبله شپه په شپه ووتلو. دحکومت خوښتیا هم داسي اراده وه ما بیسي هم سي. آی. ډی راغلل دا پوښتنه يي کوله چه دا افسر څوک وچه حاجي صاحب يي دحکومت د ارادی نه خبر کړی دی ؟ ما به ورته څه ویلي وای ځکه چه ما ته څوک معلوم نه و او نه چا افسر دا خبره کړې وه. دا خبره چه لږ پټه شوه زه دحاجي صاحب دوی دخبر اخیستلو دپاره بونیر ته لاړم زه خو پټ لاړم خو په دي پوه نه شوم چه دحکومت نه پټ پاتي شوم که نه ځکه چه دانګریز دحکومت نه دداسي خلکو پټ پاتي کېدل ګران کار ؤ. زه چه بونیر ته ورسېدم نو حاجي صاحب دنورو ملګرو سره په دوړه وتلي وکوم ځای چه دبونیر پښتنو حاجي صاحب ته دسیری په دول داوسېدو دپاره ورکړی و ډیر مزه دار ځای و، یوه لویه غونډۍ وه ورلاندي ښه آوی ځمکه وه. داغونډۍ به دابادۍ دپاره ډیره موزونه وه او دا ځای دحاجي صاحب دپاره موزون و او دبونیر خلکو دآبادی دپاره ډیر لرګی او سامان هم راجمع کړي وو. زما دا رایه وه چه هم دا ځای دحاجي صاحب دپاره جوړ شي

## زما بونیر ته تګ :

* حاجي صاحب په پاچا کلی کښي ؤ دپیر بابا زیارت هم په پاچا کلی کښي دی، ډیر خلک زیارت ته روان وو مونږ هم ورسره روان شو چه پاچا کلی ته ورسېدو حاجي صاحب مو ولید وچه ډیر خلک ورته راجمع شوي دي هغه زمونږ ملګری او دحاجي صاحب مشر زوی باچا ګل صاحب هم

ورسره و، خلکو کښې د جهاد او غزا خبرې کېدې باچاګل هم خلکو کښې لېس پېسې
کولو چه د دوډۍ وخت شو، حاجي صاحب خود خلکو په هجوم کښې ګېر وو او زمونږ
ملګري باچاګل او زه سره بېل شو په دې خيال چه دوډۍ به هم وخورو او خبرې
به هم وکړو. په ټوله علاقه کښې د مېلمنو د پاره هر چا د خپلې وسې سره سم دوډۍ
پخه کړې وه مونږ ډېر دوډۍ خوړلو د پاره د خوږنه پورې غاړه کوږونه وو هغو
ته ور پورې وتلو هلته ځانله په يو حجره کښې کښېناستو هغو خلکو راله د غنمو
خمبيره پرسېدلې دوډۍ او کالو خاني تالي کښې د چرګ د غوړو ډکه ښوروا
راوړه ډېره مزه داره دوډۍ وه ما پخپله سيمه کښې د بې تکلفۍ د عوتونه خوړلي
وو خو د اسې خوندې پکښې نه وليدلې بل د دې ځای اوبه او هوا هم ډېره ښه
وه هر څو مره دوډۍ چه به مو خوړه لږ ساعت پس به هضم شوې وه. ما
خو به دوه ځله دوډۍ خوړله بيا به هم وږی وم، د دوډۍ نه وروستو
د خلکو نه جدا شو او په حالاتو مو خبرې اترې شروع کړې په خبرو کښې را ته
معلومه شوه چه د دې علاقې مذهبي مشران، سېدان، ملايان، مياګان
او زيړګان بونيرته د حاجي صاحب په راتګ خوښ نه دي ځکه چه د حاجي صاحب
په راتللو د هغوی بازار سوړ شوی و، خلکو حاجي صاحب ته مخه کړې وه نو دوی
غوښتل چه داسې چل جوړ کړي چه حاجي صاحب نور د لته تيکاو نه شي نو د دې
د پاره هغوی يو طرف ته په خلکو کښې د جهاد او غزا تبليغ شروع کړی وا و بل
طرف ته يې په خلکو کښې غلې غلې دا پروپيګنډه هم کوله چه دا خلک چه راغلي دي که
جهاد له راغلي وي نو په کار دی چه جهاد وکړي او که سودا کړي له راغلي وي

چه دسمي جايداد موهم شو او دا جايداد به موهم شي نو دا بيله خبره ده. نو با
کل وويل چه په دې طريقه يې زمونږ پوزيشن ډېر راخراب کړی دی او دبا
جي هم دا نظريه ده چه مونږ له جهاد کول په کار دي ولی چه تام ناپوهه دی
زمونږ په خلاف په داسی طريقه تبليغ شوی دی چه د تام په زړه کښې يې دا
کښينولی ده. که مونږ جهاد نه کوو د دې خلکو عقيده به مونږ نه کوځی او د ک
مقصد د پاره چه مونږ دا غلي يو دا خلک به سبا په هغه مونږ سره تعاون
ونه کړي نو مونږ به خپل مقصد ته ونه رسيږو. ليکن زما د دې خبرې سـ *
اتفاق نه و او په موجوده حالاتو کښې د جهاد اعلان زمونږ د مقصد د پار
ډېر زيات نقصان رسولو. ما د حاجي صاحب او نورو ملګرو په خدمت کښې عرض
وکړو چه د خلکو خبرو پسې مه ځئ دا د خود غرضو خلکو خبرې دي د دوی په جها
څه کار نشته. د دوی دا خيال دی چه دلوي وني لاندی واړه بيا کلي و ده نه شو
کولی. نو تاسو په څه چل له دې ځايه ليرې کوي او ميدان ځان ته خالي کوي نو د
مقابله په کار ده او خلک بايد پوه کړی شي او صاف صاف ورته وويل شي چه
انګريز مقابله په وازی تاسو کولی نه شئ او تاسو سره د انګريز د مقابلې سامان هم
نشته نو اول بايد په ټولو ازادو قبايلو وکړ څو هغوی ځان سره کړو او قول منظم کړ
او د انګريز په مقابله کښې دوی ته د سنه جنګي سامان بندوبست وکړو او د
د جنګ د پاره تيار کړو. نو په دې طريقه به زمونږ طاقت پيدا شي او چه طاقت
مو پيدا شو بيا به د انګريز سره جهاد کوو او خصوصاً د بونير پښتانه د نو
ازادو قبايلو غونډې سامان هم نه لري او هغسې تياری هم نه لري نو که په واز

دی جنګ شروع کړو کامیاب به نه شو خو به حاجی صاحب د پراګنده ی دومره
شوی وچه زمادی خبرو منلو ته تیار نه و.

بنیرکښی د پیرنګیانو سازش :

په دې پراګنده کښی د پیرنګیانو د پرلوی لاس و. هغوی غوښتل چه اول
حاجی صاحب بهرته خپل ځای ته راشی او په دې غرض یې ورپسی دخانانو او
دمشرانو د دې د ځی جوړګې ورلیږلی وې او بل طرف ته یې ورپسی دا پراګنده
چه حاجی صاحب مجبور شی چه بهرته وطن ته راشی او که نه راځی نو ددی نه
دی چه نور قبایل دځان ملګری کړی باید جنګ وشی. ما دوه دری ورځی
تېری کړې بیا واپس کلي ته راغلم لږ ی ورځی پس می د حاجی صاحب د
د اعلان واورېدو. په دې قام کښی د پرنګی د مقابلې طاقت نه و یوه ورځ
ی څه معمولی مقابله کړې وه نور طاقت پکښی نه و. حاجی صاحب پسی پرنګیانو
خوری کړې وې چه ژوندی یې ونیسی. د دی کار د پاره یې خلک هم پیدا
ی وو او نیوه یې چه حاجی صاحب خبر شو شپه په شپه سوات ته او له هغه ځایه
رته واوریده او له هغه ځایه د مومندو (سره کمر) ته لاړ هلته د بره او اباد
. د حاجی صاحب خو زما د خبری سره اتفاق وخو د هغه برخلاف د غلطی
ی په وجه د اسی رأی عامه جوړه شوې وه چه زما خبره یې منلی نه شوه د
عامه مقابله ډېره مشکله وې. د غلطی پراګنده ی مقابله کول په کار وي چه
ی پاختیږی ملاو تړی او خلک په حقیقت پوه کړی او داهله کیدی شی چه د
ضوع هم خیالو مضبوطه دله وي چه د خلکو اعتماد یې حاصل کړی وی وچت شی

چه ملک کښې وکړي او خلکو ته غلط خبره او حقیقت سم ورښکاره کړي . ول
نه داسې ده لهٔ وه اونه به دې طریقه کارشوی دی اونه دکارموقع په لاس
وه او داسې ده له خود کار کولو نه پس پیدا کېدی شي . حاجی صاحب چه څ
منډه بونیرته تللې وه به دې وجه هم داسې په منډه له بونیره وتښتېده . م
باباکان . میاګان او پرنګیان پخپله پالیسی کښې کامیابه شول .

## مدرسې بندشوې :

پرنګیانو ته ددې کشمکش په وجه دنقصان په ځای فایده ورسېد
خوبې په بونیر قبضه وکړه او بله داچه بحانه په لاس ورغله زمونږ په ملک ک
غورمره قومی اسلامی مدرسې وې تولې یې یودم بندې کړې ځکه چه دامد
پرنګیانو دخپل حکومت په لاره کښې اغزی ګڼل . دهغوی استاذان او ک
یې بندیان کړل . هغه کسان یې هم بندیان کړل چاچه به ددې مدرسو د
دخلکو نه چندې تولولې او دمدرسو پالنه خدمت او انتظام به یې کولو . حق
خو دا وچه دامدرسې د حاجی صاحب نه وې دقام وې او دقام به پیسو
انتظام چلېدې خو ملایانو دخولو بند ولو دپاره مونږ حاجی صاحب سرپرست م
حکومت د مدرسو داستاذانو او چلونکو سره ډېر زور . ظلم اوبد
وکړ ، د ډېره اسماعیل خان جېل ته یې ولېږل . دصوبه سرحد به تولو جېلو
ډېره اسماعیل خان جېل د آب وهوا په لحاظ او د بد سلوکۍ په لحاظ ډېره
جېلخانه ده . درنې درنې ځولنې یې ورته واچولې ، مېچنې به یې پرې ګرځول
کولوکان "د تېلوکانهٔ" ، به یې پرې ګرځول اوګله دسنډاګانو به یې په ارت

اسلامي مدرسې *

سه د هوس لوړ چیل کښې موټنګ هم دا تجربه کړه چه موټل ته راکښې روڼې بیالوژ پیشوته په لوړ کښې موټنګ کیښې د پیشوتو روانه شوه موټو دغیوم قیدیان وو . او د چه حُان د قید ټنګی قیدس وو ، سوو ) عبدالقیوم خا



یږي لي تږي وخړ میلې ، وي وهل ، وي تکول ، وي شړمول . هغه وخت به
جیلخانې کښې داسې ډودۍ ورکول کېدې چه انسان خوړ پرېږدې چه څناور به هم
خوړه او داسې جامې به يي ورکولې چه سړي به پکښې د سړي غوندې نه ښکارېده
بو . د کلي پلار او زوي بندیان شوي وو چه د جیل جامې یې وراغوستي دي او
ودې ته یې رایستلي دی ، زوي یې چغې کړې چه بابا مې څه شو حال دا چه
ولي خوا کښې ولاړ و خو داسې جامې یې وراغوستي وې چه خپل زوي نه پېژندلو
ی نه شي پېژ . او وه کاله پس زه پخپله د خلافت په سیاسي تحریک کښې قید
وم ما ته یې چه کوم پرتوګ راکړی و هغه زما د زنګانه د سترګی نه پورته و او
ی کمیس یې راکړی و چه په سجده به پریوتم ملا به مې تو له ښکاریده .
ی به بندیانو له جامې په یو ناپ جوړولې د هغه قید ی دې خدای مل شي چه
یا قد به څک او تن به يي غټ و او خوراک مې داسې وو چه سپي خو جیل کښې
مګر پیشوته مې خپله ډوډۍ سره دا نګولي ایښې ده پیشو خوړلی نه ده .
د دې نه علاوه یې د حاجي صاحب شیخان او تعلقداران هم ډېر ګرفتار
. پولیس ته دا اختیار و چه د حاجي صاحب د رشته دار او تعلقدار او
شیخ به نوم چه هر څوک ګرفتارول وغواړي ګرفتارولی یې شي . په خلکو کښې یې
ره ویره او بزدلي پیدا کړه او دومره هیبت یې پرې راوستو چه چا ته به دې
ې شیخ صاحب هغه به د رته ووې پلار به دې شیخ وي . د حاجي صاحب
لوی شیخان د حاجي صاحب د شیخی نه توبه کار شو او څینې خو پکښې داسې
ردان وو چه حاجي صاحب پسې یې سپکې سپورې خبرې هم شروع کړې

ددې دپاره چه پرنګی به خبرشی ، وزه به د قید نه بچ شم . دا ډیره دافسو
خبره وه چه دپرنګی زور او ظلم په دې خلکو کښې ډیره زیاتوله او دمقابل
دجد وجهل جذ به یې پکښې نه راویښوله . دا ټول مذهبی خلک وو او دد
په نزد ډیره د مذهب لوی رکن و . دوی کښې دډیرو خوړیلوهم غیرت را
نه کړو په جیلخانو کښې یې اذان نه شو ویلې دجمع لمونځ یې نه شو کولې . دا ټ
اصلاح هغه وخت وشوه چه مونږ خدائی خدمتګار جیلونو له لاړو . بیا د چا
نه شوه کلېدلې . اذانونه به کېدل ، دجمعې لمونځ به پنځه وخته باقاعده کېده
کېدې ، خوراک ښه شو میچینې ، کولو کان ، ادتونه کړ خول بند شول جامه د
شوه دیوې چکۍ ګوډې او غوړو اجازت نه و په یوه چکۍ ګوډه به قید ی پ
کښې بند پاته د امونږ ازاد کړل . زه په دې حقیقت پوه شوم چه مذهبی
سره به چه ظلم زیاتی کېده دوی به ویرېدل او بې جرأته کېدل او د سیا
بند یانو سره چه به څومره ظلم زیاتی کېده هاغومره به د دوی همت او جر
زیاتېده . دا ټوله ګټه د قام قیدیانو له خدائی خدمتګارو وکړه او دخدائی خد
په قربانو شوی ده . پاس ذکر شوي اصلاحات هغه وخت وشول چه د
خدمتګارو حکومت راغی . په دې ورځو کښې ماپسې هم ذکر فتادی حکم
شوی وو خوزه خوش نصیبه وم چه څو ورځې مخکښې زمونږ دعلاقې پولی
کپتان حافظ زین العابدین چه دامبرسر ( امرتسر ) ته زمونږ کلی ته را
. اتفاقاً زما او دهغه زمونږ د ملدسي په باره کښې خبری شوې وې هغ
وویل چه مونږ هم په امبرسر کښې ستاسو غونډی قامی مدرسه جوړه کړ

* هغې مصارف مونږ. دقربانیو د څرمنو نه پوره کوو که تاسو هم دې قام ته دوو لې
په دقربانی څرمن درکوی د چند وتولو لوله کړاوه به خلاص شی. ماورته
دوی خه کوې په ملا یانومی وژنې ؟ دلته خو دقربانی په څرمنو دملا یانو قبضه
په ملا به خپلې څرمنې ایستلو ته تیار شی خو دقربانی څرمنې چاته نه ورکوی. هغه
دوی چه زه به په دې کښې ستاسو امداد وکړم ماورته ووې چه ستاپه ملاد
لیدی شی. که ته داخانان او ملکان پوه کړې چه دقربانی څرمنې دملا یانو
په ځای قومی مدرسې ته ورکول ډېر ثواب لري نو دوی به بې ومنی ځکه چه
زمونږ. په خانانو، ملکانو او ملا یانو دحاکمانو او پولیس افسرانو ډېر زیات
ترد ی. ددې خبرو په دوران کښې هغه ته دا خبره هم معلومه شوه چه دا
مل رسمی قامی مدرسی دي او دحاجی صاحب یکښې هیڅ نشته صرف د
ملا یانو دخولو بند ولو او دپرانګیلو ی دمخنیوي به غرض پرې مونږ د حاجی
صاحب نوم ایښی دی نو ځکه هغه زه گرفتار نه کړم خو مدرسې راته بنده
کړه او دمولوی عبدالعزیز صاحب نه علاوه چه دحاجی صاحب سره تللی
و. نوراستاذان یې هم قید کړل. تقریباً یو کال پس پرنګیانو داکسان دها
کړل خو دوی غریبان دومره وېرېدلې وو چه چا به ورته د شیخ، ملاد، سي او
او حاجی صاحب نوم واخیسته دوی به ور سره جنګ کاوه.

څو موده پس چه بیا دحاجی صاحب او پرنګیانو ښبته دمومند و به علاقه
کښې وشوه داکسان یې بیا ونیول او تقریباً نهه میاشتې بند یان و. دغسې به
چه هروخت دپرنګیانو او دحاجی صاحب کشمکش پیدا شو دوی به بې ونیول.

پر نګیانو به دا فکر کولو چه حاجي صاحب د دوی په ډاډ غواړي چه دام
زمونږ د غلامی نه ازاد کړی او د دې نه خبر نه وو چه دوی عز بیا نا
☆ ازادی پېژند له چه دا د خدای یو لوی نعمت او رحمت دی او نه یې غل
محسوسوله چه دا د خدای لوی لعنت او غضب دی ان که د مسلمان و
☆ هم وی . دوی خوشوابیان خلک وو او غوښتل یې چه د تسپو او ط
په زور خاننه په هغه بل جهان کښې جنت وګټي او جنت ښکلې جنت
پکښې به حورې وي ، غلمان وی ، د شاتو ، شرابو او پیو ویالې به پکښ
بهیږی ، قسما قسم مېوې به وي چه د شو کولو تکلیف به یې هم نه وي تش
خوله وازوه پکښې به راپرېوزي . هغوی ته مذهبي لویو لویو پیشوایانو
ممبر د پاسه داویلي وو چه دا دنیا د کافرو ده مسلمانان به دلته خوار وزا
وې ، تږی ، لوڅ بربنډ او حقیر او ذلیل وی په هغه جهان کښې به بیا د
مزې کوي د مسلمان خو هغه دنیا ده او خلکو هم دا منلې وه . په دې خبره هیڅ غو
او فکر نه کړی چه دین د دې دنیا د پاره دی که د هغه جهان د پاره او که د دوا
د پاره دی مونږ خو په لمانځه کښې اول د دې دنیا ښېګڼې له خدایه غواړ
او بیا دا چه د هغه جهان نه خو څوک راغلی نه دی مګر د دې دنیا تاریخ خو زم
په وړاندې پروت دی چا ته چه مذهب راغلی او هغوی منلی او عمل
پرې کړی دی په دې دنیا اباد شوی دی د عزت خاوندان شوي د
د خپل حکومت خاوندان شوي دي د خوشالۍ او امن ژوند یې نصیب شو
دی ، تا سو عربو ته نه ګورئ چه د اسلام نه مخکښې د هغوی څه حال و ؟ او ح

م داغی او عمل یې پرې وکړو دهغوی څه حال شو؟ داسلام په وجه دوی
ومت، دولت او عزت خاوندان شول. تاسو دهغه وخت دمسلمانانو دژوند
سرا ارخ نظر واچوئ غور او فکر پرې وکړئ او د اسلام د دې ټیکه دارانو په خبرو
او سوچ وکړئ چه دا دوي چه کوم اسلام بیانوی داهغه دخدای او رسول
م دی که دسرمایه دارو؟ او دوی چه څه وایی دخدای دپاره یې وایی که د
ایه دار دپاره یې وایی؟

## مومند وته دحاجی صاحب هجرت:

دبونیر نه مومند وته دحاجی صاحب په تللو او دېره کېدلو مونږ ته یوه فایده
ه چه مونږ ته رانږدې شو او دحاله یې زر زر خبرېدلو ځکه چه مومند اکثر
وره دی بوکوړي پاس په غره کښې او بل یې دلته مونږ سره په هشتنغر
وي. روزانه خلک ځي راځي دهغه ځای دماتوکو پوونه مونږ خبروی او
دماتوکو پوونه هغوی خبروی. بونیر خو لیری و او بل دخلکو تګ
ورته لږ و.

دحاجی صاحب دهجرت او د اول عالمی جنګ دشروع کېدو په وجه
رستان ته زمونږ تګ راتګ بند شو. زماتولو ملګرو دحاجی صاحب
هجرت کړی و زه یوازې پاتې وم. پرنګیانو هم په ملک کښې داسې حالات
ی و وجه ما دهندوستان دتللو جرئت نه شو کولی. بلکه داچه شیخ
مولانا محمود الحسن صاحب عربو ته هجرت کړی و دحج دفریضې
لو دپاره مکې معظمې ته تللی و. هلته شریف مکه دترکو په خلاف دپرنګیانو

په سازش دکفر فتوا په ملا یانو لیکلی او دستخط کړی وه په شیخ ا
صاحب بي هم زور لګولی وچه ته یي هم دستخط کړه خو هغه انکار کړی
دی وجه شریف مکه شیخ الهند صاحب ګرفتار کړی او پرنګیانو ته سپ
پرنګیانو شیخ الهند صاحب دخپلو ملګرو سره دمالټا په جزیره کښې
کړی ؤ . مولانا عبیدالله سندهی صاحب هم له هندوستانه هجرت
او افغانستان ته رسیدلی ؤ . دده سره دهندوستان یو خو قوم پ
مسلمانانو او هندوانو هم هجرت کړي او په کابل کښې یي یو عارضی حک
راجا مهندرا پرتاب په صدارت قایم کړی وځوک چه پاتی وو معلوم
چه هغوی دپرنګیانو له وېرې مونږ سره رابطه نه شوه ساتلی صرف یو
دپرش پوند ه چه څلور نیم سوه روپی کېدی دډاک په ذریعه زما په نو
دی چه هغه ما حاجی صاحب ته ولیږلی نوریي دحاجی صاحب هیڅ ق
امداد ونکړ حال دا و چه حاجی صاحب سره دوی دمکمل امداد وعد
او حاجی صاحب ته ددوی دامداد ډېر ضرورت و . ماته مې بابا دجیب
دپاره په ماموند نادی کښې شپیته جریبه ځمکه راکړې وه په هغې کښې
زمیندار ی کوله دهغې به چه څو مره امدن کېده هغه به مې حاجی صاح
خپلو ملګرو دامداد دپاره لیږه خو هغه به دحاجی صاحب دمشر ځوی با
لاس ورتلو زما ملګرو ته به یی نه ورکولو هغه غریبانان دخرڅ پورې ا
هیڅ کاریی نه و لکه دنورو شیخانو دلنګر یخی یودیې ته به ناست وو
تکلیف به یي ژوند تیرولو . په کار خو دا و چه حاجی صاحب هلته دوی

جوړولو انتظام کوی وې. دوی به پټپښی کار کولی او بچو به هم پټپښی علم زده کولی
او د تبلیغ دپاره به یې پټپښی خلک روزلی وې چه بیا به تولو قبایلی علاقو کښی خواره
شوی وې هم خیال کسان یې پیدا کړی وې او قبایل یې په یو مزی کښی پیبیلی
او منظم کړی وې. زمونږ ملګرو به رموز رموز کښی دا خبری کړی وې خو چا
پرې غور نه وا ایښی اخر معتمم تاج محمد صاحب دشیخانو په یوه غونډه کښی
پاڅېدلی او په ممبرو دربانلی دی دوی ته یې ویلی دی. تاسو شپه او ورځ د
خپل لنګر په فکرئ دقام اصلاح او تعلیم خوا ته هم څه توجه په کار ده. ده غریب هم
دومره خبره کړې ده شیخانو نورو خبرو ته پرینښی نه دی او له ممبره یې راکوز کړی
دی. دا کسان خود کار قابل او لایق کسان وو دوی چه خپل کور کلی پرینښی وو قربانئ
یې ورکړی وې او مومنه وته تللی وو. کار یسی تللی وو د یو مقصد دپاره تللی وو.
دشیخانو په شان خوئ دلنګر ددې سود کړې نه وه او لکه دشیخانو د جنت
په تمه ناست نه وو. ددوی په جنت او دشیخانو په جنت کښی او ددوی د جنت
په لار کښی او دشیخانو دجنت په لار کښی ډېر فرق و. معلومیده داسی چه
باچاګل دپرنګیانو سره سازش کړی و او دحاجی صاحب او دهغه دکارکوونکو
ملګرو ترمینځ یې غلط فهمی پیدا کولې او ددوی په لار کښی یې خنډونه اچول او
زمونږ ملګری یې دی کار ته نه پرینښول. زمونږ ملګرو دپی کاری ټوند نه شو
تېرولی مایوسه شول او دانګریزانو هم دا کوښښ و چه دوی ددې ځایه لاړ
شی. مخفی صاحب خود خپلو خپلوانو ځای ته دیر ته لاړ مولوی سیف الرحمن
صاحب افغانستان ته لاړ او مولوی فضل ربی صاحب هم ورپسی لاړ و، مولوی

عبدالعزیز صاحب سوات ته لاړ ، مولوی تاج محمد صاحب کمانګری ته لاړ او هلته ځان له دیره شو بیا دهغه ځایه په هغه لښکو کښې چه د امیر امان الله خان په مرسته دپکتیا دمنګلو قبیلي دګود ملا دشورش خلاف جوړکړي و، منګلو ته لاړ او هلته بیا په خوست کښې وفات شو. مولوی عبدالعزیز صاحب سوات ته راغی .

## دسوات دباچاهۍ کشاله :

په دی ورځو کښې دکوهستان ملا صاحب د دیر دنواب د زور ظلم نه د سواتیانو د یچ کولو د پاره سوات ته راغلی و ، دنواب ندیي دسوات ډېره برخه نیولی وه او سیستانی یوسیدیي چه عبدالجبارشاه نومیده په سوات کښې باچاکړی و . کوهستان ملا صاحب د تونګزو دحاجی صاحب ماذون و ده ته په کار و چه د سوات یوسړی یې دسواتیانو مشوکړي وي ځکه چه سوات دسواتیانو او دسواتیانو وینې پرې تويي شوی وی او بله خبره به دا وی چه کوهستان ملا صاحب د مدینې په طرز او طریقه دخلکو په رأیه یو جمهوری نظام قایم کړی وي خو معلومیږي داسی چه دپښتنو دکورونو جنګونو ، ګوندیو ، تربګلنیو او بی اتفاقیو او دښمنی له کبله کوهستان ملا صاحب دا کار کولی نه شو . دپښتنو تاریخ دداسی واقعاتو نه ډک دی چه کله داسی موقع په لاس ورغلی ده ، دوی دخپل وروره عزیز په ځای میا ملا په ځان مسلط کړی دی عزت یې خپلو کښې په یو بل پېرزو شوی نه دی او په خپلو کښې بدنیته شوي دي او دغه شان چه څوک دوی دخپل ملک ، تمام او مذهب مشران په ځان منلي دي هغوی بیا بنه مېزلی او خوړلی دي اودوی

بیا هم ورنه سبق نه دی اخیستی او دغه وجه ده چه د جنت په شان وطن کښې په جرار و مارۀ نه دي ورزي ، تږي ، خوار زار او جاهلان پاتې دي د قدرت د پټو خزانو نه چه د دوی په ملک کښې لي پیدا کړي محروم دی او تر هغې بد بې دا حالت وی تر څو چه دوی قبیلوي ژوند په ملي او قومي ژوند تبدیل کړی نه وي او يو ملت شوی نه وي او پخپلو کښې ورورې ، عزیز ولی او قامولی مینه ، محبت او پېرزوينه پيدا کړی نه وي . او تر څو چه لي د قام عزت ، خپل عزت او د قام بې عزتي لې خپله بې عزتي ګڼلې نه وي . دا د دنیا قومونه چه اباد شوي دي ترقي بې کړې ده او اسمانونو ته وختل او مونږ چه د هغوی د عزت ژوند او اسودګۍ ته ګورو ورته پسخیږو . دا زمونږ په شان خلک دي دا زمونږ نه بهتر او پيدا شوي نه دي خو په هغوی کښې مليت ، قامولی او عزت ولی ، علم او پوهه مینه او محبت پیدا شو ، ترقي بې وکړه او په مونږ کښې دا صفات نشته ، مونږ به په خاورو کښې تو غړېږو و په هغوی کښې مليت او قومولی راغلی ده ، دا به کف او جف په تسپو ، د پېرو وظیفو او نفلونو او په بې عمله دعاګانو نه ده راغلی . په هغوی کښې ایماندار ، دیانتدار ، بې غرضه او بې الایشه کسان پیدا شوي دي ، د قام تباهي بې محسوسه کړې ده ، د ژوند خوارۀ بې په ځان حرام کړي دي قام پسې لې خپل ځ ، قام بې پوه کړي او وينښ کړی دی ، قامولی لې پکښې پيدا کړې ده اباد شوي دي .

سيد عبدالجبار شاه څه موده حکومت وکړ ، خو ورځی وروسته ورسپي مشهوره شوه چه قادیاني دی . زه په دی خبره بحث نه کوم چه دی قادیاني

وکړه که دی قادیانی و نه روهبی نه به قادیانی و هغه وخت یې چه باچاګول ولی

د دی خبرې تحقیق نه کولو. حقیقت دا و چه هیچا داګمان نه کولو. چه دسوات

دا ریاست به قایم پاتی شی او چه څه وخت خینو کسانو ته چه دې کار ته یې زړه

کېږه معلومه شوه چه دا خو قایم پاتی کیدی شی نو دسید عبد الجبار شاه

پسی یې دا پروپیګنډه شروع کړه. بله دا چه دسید عبد الجبار شاه حکومت

کمزوری حکومت و. دسوال یاری وه واک و اختیار ټول دکوهستان ملا

و. او کوهستان ملا دېرنګیانو مخالف و. نو پرنګیانو غوښتل دسید عبد الجبا

شاه په ځای دخپلی طبعې یو داسی سړی دلته کښینوی چه دکوهستان ملا

واک اختیار ټول خپل کړی چه په دې علاقه کښی څوک دپرنګی برخلاف لاس

او پښی وبه خوزولی شی.

په خلکو کښی دسید عبد الجبار شاه دمخالفت دزیاتیدو په وجه

کوهستان ملا مجبور نشو چه هغه لیری کړی او بل څوک په دی ځای کښینوی

نو د باچا ګل صاحب دترنګزو دحاجی صاحب دمشر زوی دا خواهش او کوښښ

وچه دسید عبد الجبار شاه په ځای دی دسوات باچا شوی وای او دده چانس

زیات و. کوهستان ملا صاحب دده د پلار معتقد و. نو ده څان دې موقع ته

و او کوهستان ملا صاحب نه یې وعده اخیستی وه. دی ببرته مومند وته

عرض لاړو چه خلور پنځه سوه ملاتړ دمومند وته ځان سره راولي مولوی عبد

چه د باچا ګل نه دېر خپه و او ښه ورته معلوم و او دهغه سلوک ورته یاد و د

وخت دکوهستان ملا صاحب سره مصاحب و او په کوهستان ملا صاحب

دېراتلو و بلکه دغه پوقسم سکرټر و اوکوهستان ملا صاحب به په هرکارکښې دغه ته مشوره اخیستله نو مولوی عبدالعزیز صاحب کوهستان ملا صاحب په دې خبره رضاکړو چې د باچاګل د راسپړونه یې مخکښې د میاګل عبدالودود د باچایۍ اعلان وکړو چې باچاګل داورسېد هرڅه تالا والا و میاګل عبدالودود باچاشوی و. په دې وخت کښې دازادو قبایلو په باره کښې د پرنګیانو پالیسي بدله شوې وه، هغوی غوښتل چې په هره قبیله یا علاقه کښې واړه واړه خانان او نوابان جوړ کړی چې هغوی دا قوم په قبضه کښې وساتی او د قبایلو د شور شوټو، بغاوتونو او جنګونو مخه ددې خانانو او نوابانو په ذریعه ونیسی ځکه چې دخانانو او نوابانو قبضه کول پرنګیانو ته ډېر اسان و هر یو به د بل دوېرې د پرنګی خوشامنده کوله ددې کار دپاره پرنګیانو د ښبار خان ته ډېرې روپۍ او وسلې ورکړې چې ناوه گی باندې حمله وکړي وې نیسی که ناوه گی د ښبار خان ونیسی نو پرنګی به دی ددې سیمې نواب تسلیم کړی او ډېر جاګیر به ورکړی. پرنګیان په دې پوهېدل چې ناوه گی ددې علاقې د دروازې حیثیت لری د هر چاپه لاس کښې چې وی قام ورنه ربړ وهلی نه شی قام هم په دې خبره پوهېده نو ځکه د قام او د ښبار د خان په ناوه گی د ډېر جنګونه وشول خو د ښبار خان د ناوه گی په اخیستو کامیابه نه شو دغه شان پرنګیان په اپریدو کښې، وزیرو کښې، مسعودو کښې او بیټنیو کښې ډېرې روپۍ خرڅې کړې خو دخانیو او نوابیو په جوړولو کامیاب نه شول.

میاګل ورو ورو ځان مضبوط کړو او کوهستان ملایی په مخه کړو مولوی عبدالعزیز صاحب خو دده سره دده په باچاکېدو کښې ډېرامداد او احسان

کوږی واواوس هم ورسره هغه قسم امداد ته تیار ونو دی دده سره پاتی شوی
زه په دغو ورځو کښې د مولوی عبدالعزیز صاحب لید لو ته سید وله ورغلم یو
دوه شپې می مولوی صاحب سره وکړی د میاګل صاحب په مجلس کښې شریک شوم
دسوات یوه جرګه هم په دې وخت کښې میاګل صاحب ته راغلی وه دهغوی په
مجلس کښې هم شریک شوم په خبرو خبرو کښې راته معلومه شوه چه داخلک
له خدایه دومره نه وېرېدل لکه څومره د پرنګی نه د پرنګی نوم به ما اخیستو وېره
به په دوی راتلله د دوی په خدای هم داعقیده نه وه چه ګوندې مونږ به د پرنګی
دغلامی نه خلاص کړی شی . نن چه تاسو په سید وکښی کومې ابادی ګوری هغه
وخت داابادی نه وې یوه دختو معمولی کلاګی وه . میاګل صاحب ، مولوی
صاحب اونور تول د دوی ملګری به پکښې اوسېدل او داسی خاص میلمان
چه به راغلل هغه به هم ورسره پاتې کېدل . زه په هلکوالی کښې هم سید وته
تللی وم او یوه شپه می پکښې کړې وه هغه وخت زما علم کم و او داسلام
په حقیقت پوره نه پوهېدم ما به داګمان کولو چه زیارتونه د سړی سوالونه
قبلوی . زمونږ په خلکو کښې داعقیده وه چه پیربابا د سړی یو سوال قبلوی
نو زه هم په همدې خیال د خو ملګرو سره اول د پیربابا زیارت ته تللی وم او بیا له هغه ځ
دجواړی په کنډو (غاښې) سوات ته راواوړېدلی وو . دسوات د باباجی زیارت
موکړی واوشپه مو د لته تېره کړې وه .

## د پیرنګیانو مظالم :

داد پورته ملک حال و د کوز ملک حال داوچه پرنګی په خلکو دومره

وېره او ترهه راوستي وه چه چا ددوی له وېری حقه او رښتيا خبره نه شوه کولی او حکومت خبره خو پرېږده چه دچا په خيال به پوره شو چه دده دخپل قام، وطن او اسلام سره مينه ده، نو د باوو نه به يې پوری شروع کړلو او چه په دې به کار و نه شو نو بيا به يې منصبونه، پيسې او لقبونه ورو ړاندې کړل او چه په دې به هم کار و نه شو نو بيا به يې دجېلخانو توروتمبو ته واچولو مېچنې به يې پړی او روپلې کولو مکان به يې پرې کړځول داسې ظلمونه به يې پرې کول چه دېر وحشي قام به يې هم دېو حيوان سره ونه کړي يا تی خولا دتمدن مدعي دېو انسان سره. دا پراپيګنډه شوې ده چه انګرېز انصاف دارو. منم چه انصاف دارو خو په داسې مسئلو کښې چه کوم ځای کښې به دده خپل مفاد نه وو، کله چه به دده خپل سياسي غرض وو نو بيا د انصاف سوال نه پېدا کېده. ولې په سياسي معاملو کښې يې بيا انصاف نه پېژندو، او بيا هر ظالم چه تا سو پېژنئ دهغه نه زيات ظالم و. دپرنګيانو مخبران به ملک کښې خواره وو- دکور، کلي، حجرې، جوماتو وړه، غټه خبره به يې پوليس ته رسوله او پوليس ته تول اختيار او پوره واک حاصل وو چه په هر چا به يې چه کوم ته کښېنوده چه داغل دی هغه به غل و بيا يې پو هنه نه وه او پوليسان هم دجهان بلا د بيا نه وو خصوصاً دپنجاب پوليس خو دپرنګي دخوشالولو دپاره دخدای په مخلوق او مسلمانانو داسې شندی کړی چه هيڅ چېرې به چا کړی نه وي.

خانانو، ملکانو او ملايانو به ځای په ځای جرګې کولی چا به له وېری چا به د پيسو په تمه چا به دنوکرۍ دپاره دپرنګيانو تعريفونه کول، ملاکانې

يي ترلي وي برته به يي ورته کولی او ويل به يي چه خدای پاک ويلي دي چه «د خدای اطاعت کوئ، د پيغمبر اطاعت کوئ او د اولوالامر اطاعت کوئ» او پرنګي خو زمونږ اولوالامر دی اطاعت يي واجب دی. حالانکه د قرآن ايات کښي د اولوالامر سره لفظ «منکم» راغلی دی، يعني چه اولوالامر دي د ستاسو نه وي. نو دا به دی ملیانو نه ويل، او په دی طريقه يي د پرنګي د اطاعت د پاره قرآني جواز پيدا کوو. خدای پاک په قرآن کښي د بني اسرائيلو د عالمانو ذکر کوي چه هغوی به د لږ و پيسو د پاره او د خپلو خواهشاتو د پوره کېدو د پاره د تورات او زبور په اياتو نو کښي تحريفونه او تاويلونه کول هر مذهب او مسلک چه د خود غرضو او چالاکو خلکو په لاس ورشي بيا پکښي هغه اولني انقلابيت او روح پاتي نه شي، بيا د سرمايه دارو مذهب تری جوړشي او تش کالبوت شي.

زمونږ په علاقه کښي په دې کار کښي زياته برخه د عمرزو سعدالله خان اخيستي وه يو خان و او بل د پرنګيانو نوکر هم و. هغه به وخت په وخت د دوی د وکړه خانان، ملايان او شاعران به يي راغونډول کړل او د پرنګي د خوشالولو د پاره به يي جلسي جوړولي او د پرنګي تعريفونه به يي پکښي کول او خلک به يي د پرنګي سره د تعاون د پاره اماده کول. يوه ورځ په چجړه کښي ناست وم د مولانا ابوالکلام د «البلاغ» اخبار مي لوسته خبرشوم چه نن بيا په عمرزو کښي جلسه ده مولانا په خپل اخبار کښي د دی جلسو متعلق د پرښته مضمون ليکلی ؤ نو په زړه کښي مي تېره شوه چه ورځم او په دی جلسه کښي

خلکو ته دا مضمون او روم خو دا همت او جرئت مې ونه کړې شو. عجیبه خولا
داوه چه دا ځا د سرحد ملایانو او زبرګانو به ویل چه د پرنګی خلاف جهاد فرض
دی او د داخل ملایانو او زبرګانو به ویل د پرنګی مرسته او اطاعت فرض دی.
لکه د قسطنطنیې او مدینې د ملایانو په شان یوې دلې به یو قسم فتوه ورکوله او هغې
بلې به د هغې مخالفه فتوه ورکوله. د دې موضوع په باره کښې په یوه مذهب کښې
دوه قسمه خبرې نه وې خو حقیقت دا دی چه نن په مذهب هم سرمایه دارو
د خپلې سرمایې په زور قبضه کړې ده هغه د خدای رښتینې مذهب باقی نه دی.
رښتینې خدائی مذهب خو د مخلوق خدمت دی، مینه ده، محبت دی.
انصاف دی، عدالت دی، بردباری او ایمانداری ده. په هغې کښې د
خدای د مخلوق ګټه او فایده ده. دا نن چه تا سو څه وینئ
دا سرمایه دارو د خپلو غرضونو د پوره کولو د پاره د مذهب په نوم
یوه لوبه جوړه کړې ده. دا ننني مذهب خو د خو کسو د عیش عشرت
د پاره دی د خدای د مخلوق د آرام د پاره نه دی چه مذهب د
خود غرضو کسانو په لاس ورشي دا سې حال شي. حقیقت دا
دی چه دا ټول اسمانی مذاهب حق دی

او قرآن خو دا وائي چه

د متقی او پرهیزګار

خلکو

به په دې قرآن هم عقیده وی

اوچه ددی نه مخکښی کوم کتابونه دخدای له طرفه راغلي دی په هغه
به يي هم عقيده وی نوموږ نه پوهيږ وچه په دنيا کښی دمذهب
په نامه داجګړی اوجنګونه ولی اوڅنګه پيدا شوي دي ؟

## دولت ایکټ او مونږ

وبا ( دړومبی تېر وفات ) دولت ایکټ . زمونږ جلسی . زما
وړومبئ ګرفتارۍ . زما بابا او نور کلیوال جیلخانه
کښی . دجیلخانی حالت دقیدنه خلاصون
بیا ګرفتارۍ او دویم واده

دیو دریم جنګ چه ولنبت نوزما په زړه کښې دا خیال پیدا شو چه سرې کا
ته لاړ شي او د افغانستان د حکومت په امداد د پرنګیانو خلاف جد وجه
شروع کړي دا د امیر حبیب الله خان زمانه وه او د افغانستان په باره کښ
زما هغه وخت دا عقیده وه چه دا یو ازاد او زورور حکومت دی که چیرې
وغواړي نو د پرنګیانو خلاف زمونږ ډېره مرسته کولی شي د دې د پاره مې
فیصله وکړه چه د سوداګرۍ په بهانه افغانستان ته ځم. ما دا تجویز خپ
پلار ته وړاندې کړو هغه راسره ډېر ملګرو خپلو دوستو مې مخالفت وکړو خو آخر مې ه
هم راضي کړه بابا راسره د روپو وعده هم وکړه. زمونږ د کلي زمایو اشـ
جمعدار عجب الله خان چه د پرهو بنیار او جهان دیده سړی و د پرنګیانو
انتهیلیجنس د ډیپارټمنټ کښې هم پاتې شوی و او د غه ملکونه یې لیدلي وو مې د
خان سره ملګری کړو او د راهداری د پاره مو حکومت ته درخواست وکړو خو حکو
راهداري را نکړه او دا کار پاتې شو.
جنګ خلور کاله پس ختم شو په دې دوران کښې به کله ناکله د پرنګیا
او ازادو قبایلو تر مینځ جنګونه کېدل خو د ټولو قبایلو په یوه سلا او په منظمه طریقه

نه وو ، نو خلکه پرنګي ته څه نقصان نه رسيده . چه مومند و به په پرنګي حمله وکړه وزير ، مسعود او اپريدي به په خاې ناست وو او که د اپريدو او انګريز جنګ به و مومند ، وزير او مسعود به خبر نه وو او که د وزيرو به ورسره جنګ و مسعود به چه د وزيرو سره په يوه علاقه کښي ترونده تېروي جنګ ته تيار نه و مومند او پريدي خولا به خاې پرېږده هر يو به ويل چه دا د هغه جنګ دي مونږ ېي څه کوو په کار دا وو چه تول قبايل په يو تحريک کښي تنظيم شوي واي منه تربيه ورکړ شوي واي او تول يو خل را پورته شوي واي . نو که پرنګيانو د دوي د مقابلي د پاره ډېر طاقت دلته په کار اچولي وې د تړکو او جرمن مقابله ورته سختېده او که ډېر طاقت ېي د ترکو او جرمن مقابلي ته متوجه کولي نو دلته به دوي ډېر کاميابي حاصله کړي واي خو جهاني جنګ د پرنګي په فتح او د ترکو او جرمن په ماتي تمام شو .

## وبا ، د رومي تبه مرګ :

د جنګ په وجه په دنيا کښي سخته وبا راغله . په جنګ کښي دومره کسان نه وو مړه شوي لکه په دې وبا کښي چه مړه شول . په هندوستان کښي هم دې وبا ډېر خلک ووژل ، پښتنا نه هم ډېر پکښي مړه شول . دا داسي عجيبه وبا وه چه اکثر به ېي ځوانان ، ځينکي او هلکان وهل او مړه کول . او چه يو کور ته به يو ځل ننوته بيا به ېي يو هم نه پرېښوده . داسي پېښه شوې ده چه په کور کښي يو کس هم نه دي پاتي شوي او د کور دروازې پورې شوې دي . په ورو کو ورو کو کلو کښي به مړي همداسي پراته وو

د ښخولو ئي ځوک نه وو. په دې مرض د تولونه اول زه په یو تي وم خو هسې خدای
جوړ کړم خکه چه په دې مرض هغه وخت ځوک پو هېدل نه او نه د حکومت
طرف نه د ډاکټر، دوا او درمل انتظام و . زما د دوسته غني چه د پنځو کالو
ناروغه شو. غني د ډېر ښکلي و د موري ورسره ډېره مینه وه د ډېر به يي ورته ژ
ما به منع کوله او د صبر تلقین به مي ورته کولو خو د هغې زړه به نه صبر یدو. یو
ورځ د غني رنځوري سخته شوه موري يي ورته د کټ سر ته ناسته وه د ده
يي په غېږ کښې اېښې و ما د ماښام لمونځ کړي و په مصلیٰ ناست وم دعا
کوله غني ته مي کتل چه بې هوشه پروت دی چه ناخاپه يي مور پا څېده د زو
سرئې د خپل ورانه نه په بالښت کښېښوده او د زوئې له کټه چاپېره وګرځېده ا
سه ته يئې و درېده او لاسونه يي په دعا پورته کړل په ژړا يي و ويل چه ای خدا
د ده مرض په ما کښېږدې او دې ماشوم ته شفا ورکړې. د خدای یو عجیب
حکمت و. په سباله دا ناجوړه شوه د دې مرض ورځ په ورځ زیاتېدو او
د غني مرض به ورځ په ورځ کمېدو غني جوړ شو او مور يي ځوانیمرګه شوه ماشو
ئې راته پاتې شو. د غه وخت غني د پينځو کالو ، ولې د درېو کالو او خور يي د یو کال
په کلو کښې د و مره مړي کېدل چه خلک يي ښخولو ته نه رسېدل. مونږ
به د سهار نه د قبرونو په کنستلو لاس پورې کړ تر ماښامه به لګیا وو، کله به
په مشکله پوره شو او کله به یو نیم کم شو د ډېرو به د کفن د رک هم نه و. د داسې
مړو د پاره مونږ یو فنډ جوړ کړو بې کفنو مړو ته مو د دې فنډ نه کفن ورکولو
او په د غسې حالت کښې به هم ځینې کسان دا غلل په دروغو به يي د انه کفن یو وړ

ځینو چالاکو به وژړل او مونږ ته به یې دوکه راکوله : اخر مونږ داسې انتظام وکړو چه کفن به مو د خپل سره یې په لاس لېږلو چه مړی به یې ولید و نو کفن به یې ورکړو که نه به ورته بدي راوړلو. د دارو درملو موهم څه انتظام کړی و په اول کښې خو یې چا ته دارو معلوم نه و خو وروسته چه مرض اوږد شو ډاکټرانو او حکیمانو ورته دارو راپیدا کړل هغه به موجود وو او مریضانو له مو ورکول. دا یو ډیر لوی افت و چه زمونږ په قام رانازل شو او په داسې وخت کښې چه نه په قام کښې احساس او نه اتفاق و چه ددې مصیبت مخه یې په اتفاق سره نیولې وای او نه مو کوم خواخوږی حکومت وو چه زمونږ غم یې خوړلی وای او ددې افت نه یې بچ کړی وای. په جنګ کښې هم زمونږ د ملک خلک د نورو ملکونو د خلکو نه زیات مړه شول او په مرض کښې هم. جنګ د چا و او مړه پکښې څوک شول؟ ګټه او بیلاټ د بل چا و او جنګېدلو مونږ. زه خو وایم چه مونږ اجرتي قاتلان وو. د پیسو د پاره د خلکو مرګ پسې تللي وو د خپل ملک د ازادۍ او خپل عزت د پاره راکښې دا احساس نه و چه د پرنګي سره جنګېدلی وای یا کم از کم په خپل کور کښې ناست وای پرنګي مو یوازې ترکو او جرمن ته پرېښې وای. مونږ جرمن خو پرېږدو د مسلمان ترک سره د پرنګي په ډډه او طرفدارۍ وجنګېدو او جنګ مو ورته وګټلو ددې ګټې په پاداش کښې مونږ ته پرنګیانو «دولت بیل» چه یو ظالمانه او ناروا قانون وو راکړو او د خدای د طرف نه دا مصیبت نازل شو.

## دولت ایکټ:

ګاندهي جي چه د پرنګیانو ددې وعدې په مقابل کښې چه که پرنګیان جنګ

وګڼتي مونږ ته به یو سلف ګورنمنټ راکړي په جنګ کښې د پرنګیانو د پرامداد
وکړو خو پرنګیانو چه فتح وکړه وعدې خو پرېږده د «رولټ اکټ» ۱۹۱۹ع د ناف
کولو اراده وکړه نو مونږ ټول هندیان ډېر مایوسه شو او د «رولټ اکټ» خلاف یې
اواز وچت کړو. مونږ ټولو هندیانو خوله پرېږده چه د پرنګیانو ملګرو هندوستانیانو
هم د دې قانون خلاف چغې پورته کړې. په ټول هندوستان کښې د دې تور قانون
په خلاف زبردست ایجی ټیشن (تحریک) شروع شو، لوی لوی جلسې جلوسونه
به کېدل د دنی دنی مظاهرې وشوې، ډېر ستیټمنونه او سرکاری ځایونه
پکښې وسوزېدل. پرنګیانو هم اسره ونه کړه خلک یې په ګولو ووېشتل په جیلخانو
کښې یې واچول ډېر سپک او ذلیل یې کړل. تر دې وخته زمونږ په علاقه کښې
سیاسي تحریکونه جلسې او جلوسونه نه وو او نه پرې څوک پوهېدل د تعلیم د پاره
د مدرسو جوړولو تحریک موجود و هغه هم د جنګ په وخت کښې پرنګیانو بند کړی
یو شپه کور ناست وم دو دې مو خوړله چه د ډول اواز مې تر غوږ
شو چه غوږ مو ورته کښېښود د ډول ورڅې ورسره د ډول وره غږ وله چه سبا له
به د «رولټ اکټ» برخلاف د حاجي صاحب په جومات (عیدګاه) کښې جلسه
وي. په دې پوه نه شوم چه د جلسې انتظام چا کړی دی. چه سبا شو چای مو
وڅکلو، حاجي صاحب جومات ته روان شو. د جلسې نوم د کلي خلکو نه وو اورېدلی
دا ورته یو عجیبه شیز ښکارېدو ډېر خلک ورته روان وو. د تحقیق نه دا ته
معلومه شوه چه د جلسې اعلان زمونږ د کلي یو خان چه نوم یې محمد اکرم خان و
کړی دی. دا را ته هم معلومه شوه چه د جلسې د اعلان په وخت کښې د پولیس

یو افسر راغلی و د خان او افسر په مینځ کښې ښه گفتګو او کشمکش شوی و، خان د
هغه له ضده د جلسې اعلان کړی دی، د قدرت کارونه هم د حکمت نه خالي نه
وی، چرته دا خان او چرته د جلسې اعلان د جلسې په ورځ مونږ او لیدل چې
د غه اکرم خان پخپله جلسې له راغی. وروسته معلومه شوه چې د جلسې په وخت
کښې هغه د مردان د اسټنټ کمشنر گریفتهه صاحب سره وو. د کلي اکثر لوی خانان
وغت غټ ملایان راغلي وو. زه پاڅیدم او خلکو ته مې وویل چې د غه شان جلسو
کښې د صدارت ضرورت وي یو مشر سړی د دې جلسې صدر مقرر ول په
کار دی خلکو ووې چې ته صدر شوې ما ووې چې یو مشر سړی به صدر کړو خو دوی ټینګ
شو زه یې صدر کړم. عام خلک خو د صدر په معنیٰ نه پوهېدل هغوی چې د جلسې نه
ستانه شول دا یې خوره کړه چې گوندې زه د پښتنو باچا شوم، مونږ خو د غه وخت په
تقریرونو نه پوهېدلو خو چې د اخبارونو نه موښه لږ ودېر زده کړي و وهغه مو خلکو ته وویل
او خو کښې یو بل خان تجویز وړاندې کړو چې دا خو زمونږ د کلي جلسه ده، بلکه هفته
ورپسې دا بیا دلته د دې تولې علاقې جلسه وي خلک خبر کړي چې په کن شمیر کښې راشي. د
تقریرونو په لحاظ خو دا جلسه جلسه نه وه مګر د اثر په لحاظ یې په خلکو کښې د پېر جوش
او خروش مینه او جذبه پیدا کړه.

## زمونږ جلسې:

د راتلونکې جلسې د انتظام د پاره خلکو ملا وتړله، زه پخپله هم په اس
سور شوم او د دواړې او هشتنغر کلي مې وکتل د جلسې د جوړولو له پاره دوست
دې له ور غلم. دا د دواړې مشهور کلي دی، هغه کښې مې د د غه کلي لوی خان

ولیده ده وعده وکړه چه جلسي له به ددخم په دولت پوره کښې ده راته یوه ډېر
عجیبه خبره وکړه . وې چه یوسړي کره سمسره عادت شوې وه د دوی پې به لې
خنبل . ښځې ده ته ووې چه دې سمسرې خو ډېر وراني را اخیستي دي څه ورسـ
وکړم ؟ دی پخپله سمسري ډیرولي وو ورته یې وویل چه ښځې دا خو زبرګه د
ورته مه وایه . ښځه په پیو مینه وې یوه ورځ دې سمسرې پې په کټوی کښې څښا
د ښځې صبر نه شو په سو بادې یې ووهله او مړه شوه دې ښځې فکر وکړو چه دا خ
می د خاوند زبرګه وه اوس به ماسره څه کوي چه خاوند یې راغی نو ورته یې ووې چ
زما د لاسه نن ډېره غلطي شوې ده ستا نه دغې معافي غواړم، خاوند ورته ووې
چه ووایه . دې ورته ووې چه هغه زبرګه زما د لاسه مړه شوې . ده وې کومه د
دې ورته وښودله ده پری را باندی کړله . مړه سمسره یې ټوټې ټوټې کړه ا
ښځې ته یې ووې چه زبرګه مړګه نه وه خو زه ترې ېرېدم . دی وخت کښې په
چاکښې قومي جذبه پیدا شوې وه ، دا سرکاری جرګه نشین خان وخو ډېر نګ
څه یې نفرت پیدا شوی و .

خانانو او غریبانو ټولو له موبه جلسه کښې ډګلهون بلنه ورکړه ، خلکو د
خوشالي ومنله . د جلسي په ورځ دیولک نه زیات خلک راټول شوي وو .
زړګونو ښځو د جلسي د خلکو د پاره په منګو کښې د سیند نه اوبه راچلولي . د جلس
په دوران کښې د حکومت له طرفه میان اکبرشاه کاکاخیل ماپسې راغی او ویل
چه چیف کمشنروالي چه په صوبه سرحد کوم قانون حاوی دی دا خو د « رولټ اکټ
پلار دی ، دا خو د « رولټ اکټ » نه زیات ظالمانه دی دوی له په کار دی چه د

قانون په خلاف دحکومت غوښتونو ته خپل آواز ورسوي. د« رولټ اکټ » تاو دوی ته نه رسی او بله دا چه هندوستان ددوی سره ددې قانون په لیری کولو کښی کوم امداد کړی دی چه دوی یې ورسره کوی زه د دوی سره وعده کوم چه په دې قانون له نوی سره غور وکړم او چه دوی څه وایي هغسی به وکړم ما ورته ووې چه میاصاحب زه منم چه هندوستان زموږ مرسته نه ده کړې دا د هغوی انسانی فرض و خپل انسانی فرض یې ادا نه کړل زموږ هم دا انسانی فرض دی چه د رولټ اکټ خلاف د هغه خپل اواز ملګری کړو. هر سړی په خپل عمل پړ دی. میاصاحب پوه شو چه دی زما په دام کښی نه نښلی نو بیایې ووې که ته اجازه راکوې زه به هم دې خلکو ته خوشخبری وکړم. ما ورته ووې وکړه. د هغه په تقریر کښی دخولی نه داو خته چه حکومت زموږ مور او پلار دی. دا په خلکو بده ولګېده چغې یې پورې جوړې کړې چه میا کښېنه حکومت که ستا مور وی او که ستا پلار وی وی به زموږ هیڅ هم نه دی. ما چه خلکو ته وکتل په خلکو کښی پوره جذبه وه او میا صاحب ته په قهر وو. ما میا صاحب کښېنولو او په خپله ورسره شوم د جلسی نه می بهر وښکو ځکه که زه نه وای بیا ما د خلکو نه مخکښی د علام تشدد وعده نه وای اخیستی خدای خبر چه د میا غریب به څه حال شوی وای. زه یوه خوا د خلکو جذبې ته حیران وم او بله خوا د میا ګانو انګریز پرستی ته. د دې جلسی صدارت هم خلکو ما ته راکړو، موږ د تقریرونو په چل نه پوهېدو الکثر به مو تقریر ولیکه او د کاغذ له مخه به مو خلکو ته اوروله. عباس خان دې خدای وبخښی زما ډېر دوست و هغه له می لیکلی تقریر ورکړی وچه د هغه وار راغی او پاڅېده تول رېږدېده او وی ویل دا تور قانون بیایي ووې دا تور قانون څو کړته یې هم دا تور قانون

تورقانون ووي ماورته دلانديږ نه ووې چه ورانداي ووايه دي تول رپېډه داته
يي وويل چه په سترگومي تياره ده ورانگ نه وينم ددي نه يي زيات څه ونه ويلي شواخر
كښيناست . دازمونږ دتقريرونو حال وخوسره ددې هم جلسه بالكل كامياب وه
قراردادونه موپاس كړل ، اخبارونو اوحكومت له مو ولېږل .
په خلكوكښې يوه عجيبه مينه اوجوش وه بياخاص زمونږ دكلي دننرواوشهو
خولا بل حال و . په سوونوښځې زمونږ دكلي راغلي وې كومي وه سسيند ته به
تللي اوخلكوته به يي دڅكلو اوبه راوړې . زمونږ دكلي دوه كسه دې جلسې ته نه
ووراغلي يوخان بهادرمحمدعمرخان اوبل هغه خان چاچه داولې جلسې
دپاره ډ نډه وړې وهلي يعني محمداكرام خان هغه دجلسې په ځاى مردان ته
گريفت پيرنگى ته تللي وو . گريفت دمردان اسټنټ كمشنرو ددوى اشن
و . په دې ورځ يي هم داخيال وچه په حكومت به زمونږ مخ وشي خو نه يي په حكو
مخ وشو اونه يي په قام كښې مخ پاتي شو . ددوى په گريفت صاحب داده وو
خودقدرت كار بيل وې گريفت ددوى په سبب رانغى اوددوى هم مونږ سره كوڅا
شول مونږ ترآخره هم په دې پوه نه شوچه اكرام خان د دولت اكټ خلاف د
اعلان ولې كړى وخوخلكو به داويل چه ده غوبښتل چيل ترپوران ، خانان ، دين نكمان
په ضد راولى اوبرنگيان هغوى برباد كړي خودى پكښې پخپله ونښت .
داتمانزو دې جلسې په پښتنو كښې او رولگولو اوښه جوش اوخروش
پيداكرو . بله جلسه په تاكال كښې دارباب رضا خان له طرفه مقرر شوه ، تول
علاقې يي خبر كړې وه مونږ تدې هم بلنه راكړې وه . دجلسې په ورځ سهار

مونږ. ور روان شو چه د سر دریاب دپله نه پوري وتلو. عاشق، د پښبور د ښار میوه فروش په تانگه کښې سور مخي له راغی اشاره یې وکړه تانگې مو ودرولې راکوز شوزه عباس خان، بابې جان او احمد استاذ مې بیل کړو او دا تر یې ووې چه د افغانستان او پرنگیانو جنگ شروع شو بنکا په تول ملک کښې د مارشل لا اعلان شوی دی. د تا کال جلسه بنده شوه او د افغانستان له طرفه څه کاغذونه مارا وړي دي دا و څلی او په ملک کښې یې وویشي، کاغذونه زمونږ ملګرو له ورکړل او دی بېرته ښار ته ستون شو او مونږ بېرته کلي ته راغلو.

په دې ورځو کښې قاضي ښاکوالله د پرنگیانو له خوا مقرر شوی و چه زمونږ د علاقې دوره وکړي او دا معلومه کړي چه څوک د پرنگیانو په خلاف او څوک یې په حق کښې دی نو دی به کوځېد واو ګرځېدو، جو ما تو نو کښې به یې د پرنگیانو په خلاف سخت سخت تقریرونه کول. یوه ورځ زمونږ په حجره کښې یې مونږ ته دا قصه کوله چه زه د جنگ په ورځو کښې پرنگیانو عربو ته د مخبرۍ د پاره لېږلی وم هلته یې په یو جنگي سمندري جهاز کښې د یو جرنیل سره ونکولم، د دریاب په غاړه د عربو یو کلی و مونږ یو پرنگي د سفیر په توګه ور ولېږلو هغوی دا پرنگی مړ کړو چه د هغه د مړګ خبر راغی نو جهاز ته حکم وشو چه په کلي گوله باري وکړي. نو چه هغه کلي یې په گوله باري د خاورې سره خاورې کړو بیا فوځونو ته حکم وشو چه لاړ شئ وګورئ چه څوک مزیا ښځه خوژوندي پاتې شوی نه دی که پاتې وي مړه یې کړئ. زه هم ورسره لاړم چه کلي ته ورسیدم څه ګورم چه یوه ښځه شهیده شوې ده او وړو کی ماشوم یې په تی بوخت دی او روی یې. په ما ددې ماشوم او مورحالت ډېر اثر وکړو چه

خه وخت جهاز ته واپس راغلو نوما دخپل افسره سره خبره کول غوښتل خو
هغه دومره په غصه وُ چه زما شکل لیدل پرې منه نه لګېده و داتې ووې چه
دمخې نه مې لیرې کېږه ، نوهغه وخت ما په زړه کښې داخبره محسوسه کړه چه
دیو پرنګی دپاره یې دا دومره مسلمانان دخدای مخلوق تباه تباه کړو اولا زړه
یې سوړ نه دی نو دخان سره مې فیصله وکړه چه نوره ددوی نوکری نه کوم اول
کافر وم ددی پیښی نه وروسته مسلمان شوم . دغه شان قاضی صاحب دټول
هشنغر دوره وکړه . دهشنغر خانان ، ملایان اوعوام ټول دانګریز مخالف
وو . قاضی صاحب دټولو حالات معلوم کړل یوزمونږ دکلی دمحمدعمرخان
په باره کښې سرکار ته لیکلي وو چه په ټوله علاقه کښې دده په شان ستاسو بل وفا
دار نشته . ددې رپوټ په وجه دمحمدعمرخان دسرکار په کور کښې لویه
ترقي وشوه او ډیر اختیارات یې ورکړل او خان بهادر یې کړو .
دمارشل لا په وجه زمونږ په خلکو ډیره ویره او هیبت راغی ځکه چه داخبار و
په ذریعه به دهندوستان او پنجاب دحالاتو نه خبرېدل چه پرنګیانو په خلکو څومره
ظلم او زور را اخیستی دی . په ټولو کښې مونږ ډیر ناکراره وو هره ورځ به اوازه
شوه چه بنګاله به فوځ راځي او دکلی نه به چاپېرېږی . ددی کونګوسې په اوریدو
به زمونږ دکلی نر او ښځې په لړزان شوې او یوه هله ګوله به جوړه شوه خوګ به په
کوټو کښې وینې نا بست وو ، خوک به دکلی نه تښتېدل خوک به په حجرو کښې را
جمع شول . زه پخپله هم دګرفتاری په وجه به پخپل کور او حجره کښې کښېناستی
نه شوم په کلي کښې به ګرځیدم خلکوته به مې دا دګیرنه ورکوله . یوه شپه ډیره ګو

اوازه وه چه نن نه فوځو ته خامخا راځي چه یوسړی خبرکوم چه ملک سلطان محمد خان سره دسړو په سرک کښې مور چه نیولې ده او وايي چه دېرنګي نه مونږ هسې هم ته خلاصيږ. و یو ځلې مرګ دی زه خو ورسره مقابله کوم . زه په منډه ورغلم چه ګورم ملک صاحب ولاړ دی کوچ يي اچولی دی نوکران يي مورچه کړي دی ، دی ورته شا بسی ورکوي . ماپرې دليرې نه اواز وکړو چه ملک صاحب څه کوې جواب يي راکړو چه نن ورسره معلوموم ماترې پوښتنه وکړه چه ټوپک درسره دي ووې چه پنځه ټوپکه ماتری بیا پوښتنه وکړه چه څومره کارتوس درسره دي ده ووېل چه شل پنځه ویشت دانی به وي ماورته ووې چه دا دومره کارتوس خو دهغو په یو ټوپک کښې وی نو څرنګه په پنځو ټوپکو او شلو کارتوسو دېرنګي مقابله کوې ؟ ددې خبرې په اوریدو خویوه شېبه چپ شو بیا یي نوکرانو ته ووې چه دوی سره نه کیږی زما اسپه زین کړئ ! په اس سور شو او شېبه په شېبه ازادي علاقې ته لاړو دغه شان زمونږ دکلي د یوکسانو څانونه په څنګ کړل .

## زما ګرفتاری :

زه میرې ته لاړم زمونږ زمیدارو عبید الله کاکا یي نوم ؤ په بله شپه مي هغه دځان سره کړو او کچی ،کوږ ته لاړو هلته مونږ پخوانی زمیدار او سید ل دا د ایجنسی علاقه وه زمونږ د کلي یو مفرور مرتضی خان هم دلته او سیده . هغه مو ولیده راسره شو . سپینخوړه ته روان شو ، هرې چند دکمر په غاړه د باړه پولیس تانه وه چه ورنږدې شو سپاهیانو را باندې اواز وکړو چه وودریږئ تاسو څوک يئ ؟ مونږ سره بی لا یسنسه وسله هم وه په ماویره راغله خو مرتضی خان ورسره

بلـ وو وراندی شو ورته یي وویل چه چیل یو دهغه د پښتو ګلوی په وجه یي مونږ
د تلو اجازه راکړه . مونږ چه د سپنځرو لاړی ته برابر شو اومرتضیٰ خان د وی
دا نه بیرته ستانه شول اومونږ سپنځرو ته لاړو بابا جی خبر شو زمونږ لید لو
داغی او زمونږ یي ډیر قدر او عزت وکړو . شپه مو په سپنځرو کښې تیره کره
دافغانستان په نیت روان شو خلکو دا رایه راکوه چه ستاسو د پاره ډیر انګ
غرلاره ښه ده د سیند نه به په زانګو پوری وځئ او د باجوړ په لاره به فیـ
جلال اباد ته لاړ شئ خوزه د زانګو نه ویریدم ولي چه زما بدن ډیر درونډ وزه
سره داویره وه چه د زانګو پری رابا ندی ونه شلیږی او په سیند کښې ونه لو
په دې لاره زما د تلو اراده نه وه خو ملګرو مجبور کړم او مونږ په انګ غره ته روان
شو چه په غره مو د ختلو شروع وکړه دسمی خلک دغره د مزل نه دي او ده خو
نورو ملګرو نه زیات بی خونده وم چه څه لږ مزل مو وکړو نو ستړی شوم مونږ
یو سړی د بوچو لارهم ښودلی وه دالاره لږه اوږده وه خو اواره وه او په سیند
هم په کوم د پوری وتل و نو ما ملګرو ته په دې لاری د تلو تجویز پیش کړو بیره
دا و کوځیلـ و او بوچو ته روان شو نا وخته بوچو ته ورسیدو د اکوم خان نومی
ملک حجری ته لاړو اکوم خان ډیر ښه سړی و زمونږ یي ډیر دار مدار وکړ
شپه مو په ارام تیره کړه سهار موچه چای وڅښلـ په روانیدو کښې وو چه کوم
بابا می راورسیدو راته یي ووې چه بچیه بلـ ملک ته مه ځه زه د پیتی کښ
تا پسی راالیږلی یم هغه وایي چه ده بی له جلسی نه بل څه نه دی کړی او جلس
خو څه جرم نه دی . مونږ ورته هیڅ نه وایو . ما ورته وویل چه بابا مارشل

یو خو پرنګیان هسې په معمولي معاملو کښې انصاف نه لري او بیا چه دهغوی
خلاف کار وشي او مارشل لا هم وي نو د دوی نه د انصاف څه تمه کېدې شي؟
نه یې په وعده باور کول په کار دي لیکن بابا مې د تللو اجازت را نه کړو د هغه
رنګې په ژبه باور و دې پخپله یو ژبې سړې و دې د پرنګي په فریب او چلول کله
هېده ما ته یې روې چه نه ما سره چه پرنګي کوم لوظ کړې دې هغه به هیڅ پرې مات
کړي زه یې مجبور کړم او بېرته یې کلي ته راستون کړم. چه ما مند نارې ته داور سېلو
یې د لته پرېښودم او دې اتمانزو ته لاړ زما په زړه کښې وېره وه او دا باور مې
و چه کوندې پرنګیان به ما پرېږدي نو زه به تول ورځ په مقبره کښې پټ ېډم
ما مند نارې سره نژدې یوه لویه مقبره وه او د شپې به کور ته راتللم. زه د پرنګیانو
یپټ نه وم او نه هغوی زما نه بې خبره وو بابا مې پخپله زما د راتګ نه خبر کړي.
. یوه ورځ زه دغرمې دوډۍ له کور ته راغلی وم په حجره کښې ناست وم چه تانه دار
د دیولوي کار ده راغی او زه یې ونیولم. زما د نیولو خبر د بجلۍ په شان تول علاقه
نې خور بشو خو ک چه خبر پېدل ما مند نارې ته به راتلل خپل خپلوان مې مونږ کره
جمع شوي وو ژړا انګولا یې جوړه کړې وه د مور مې ډېر حالت خراب و تانه دار
سړي و ما ته یې کور ته د تللو اجازت را کړ و مور مې با با ته بنېږي کولې چه که تا دی نه
ی راستون کړې ولې به ګرفتا ر پېده ما مې مور ته ډېره تسلي ورکړه خو هغې په چغو
و ژړل. د څېنو کسانو دا نظر یه وه چه ته وتښته مونږ به د پولیس سره تر هغه
سته پورې مقابله کوو تر څو چه ته د دوی له علاقې نه نه یې وتلی. لیکن د دوی څه خبر وو
ما رشل لا ده او ما هم د خپل ځان د بچ کولو د پاره نور خلک په مصیبت کښې نه اچول

موردا تو غاړه وته ښکل یې کړم او راته یې ووې بچیه په خدای می سپارلی
زه د مور نه رارخصت شوم بهر راته تانه دار منتظر و دخانغانی تاڼی ته یې بوتلم
هغځ ایه یې مردان ته بوتللم د رسېد وسره یې پولیس کپتان ته مخکښې کړم
سره یو تانه دار او بل کمیدان و دواړه په وردی کښې وو او بوتهان یې په پښو
څه وخت چه دوی زما سره پرنګی ته ورننوتل بوتهان یې وایستل ماته دوی به
کار د پرسپک ښکاره شو دهغې نه پس یې زه جېل ته بوتلم چه زولنی یې راته
زما په پښو کښې تنګې وې ځکه چه زما بادی ډېره مضبوطه وه پنډۍ می غټې
وې. هر څو مره زولنی چه یې راوړې زما په پښو کښې رانغلې اخر یې په زور
جوړه زما په پښو کښې واچولې ډېرې تنګې وې څرمن پورې کلکې ونښتې.
وروسته یې زه د جېلخانې نه راوایستم هتکړې یې هم راته ولګولې په
کښې کښېنولم دوه پرنګیان یو د پولیس افسر او یو ملکي افسر راسره شول
نه یې پېښور ته روان کړم هغه وخت ما داخبره محسوسه کړه چه د مارشل لا
کښې چه حکومت څوک وغواړي نو هغه ته ځان ورکول په کار نه دي ځان
غلطي ده زه پټېل راتک پښېمانه او ستومانه وم خو څه فایده ؟ چه ښار ته ور
نیغ یې د پولیس کپتان بنګلې ته بوتللم د موټر نه یې کوز کړم او کښې یې نولم پولیس
چاپېر وو لږ ساعت وروسته زمونږ دکلي یو هلک چه د ټیلفون تار یې پرې کړی
دوه کاله قید وهغه یې د کپتان بنګلې ته د ننه کړو بهر ته یې راوویست او واپس
بوتللو بیا یې زه بنګلې ته ننه ایستم چه کوردم لس، دولس پرنګیان راغونډ شوي
زه یې هغوی ته مخکښې کړم د ورمخکښې کېدو سره را باندې یو پرنګي سوال وکړ

تا د سرکار برخلاف بغاوت کړی دی ماورته ووې چه نه ما هیڅ بغاوت نه دی کړی بل راته ووې چه ولې تا د سرکار برخلاف جلسې کړي نه دي؟ ماورته ووې چه په جلسو کښې مونږ د بغاوت هیڅ قسم خبرې نه دي کړي بلکه مونږ سرکار ته خواست کړی دی چه دا قانون دې په مونږ نه جاری کېږي بل ووې چه ولې ته د سرکار برخلاف په خلکو کښې کوځېدلې نه یې؟ او خلک دې د سرکار برخلاف اوچت کړي نه دي څه؟ ماورته ووې چه زه خو اکثر په خانانو کوځېدلې یم او خانان خو د سرکار خیر خواه دي. بل راته ووې چه ولې تا خان باچا کړی نه و؟ ماوې نه ده وې ولې خلکو به در ته باچا نه وې ماورته ووې چه کومو خلکو ما ته باچا وایه هغوی بې علمه او ناپوهه خلک دي هغوی غریبانانو د صلاه او باچا فرق نه شو کولې. زه د جلسې صلاه وم د هغوی د اګمان وچه صدر به باچا وي. ددې نه پس زه یې بهر را وایستم. بهر راته پولیس تیار ولاړ وو راته چاپېره شول پیاده یې روان کړم د تنګو زولنو په وجه مې پښې زخمي شوې وینې پرې روانې وې په داسې حال کښې یې د چونې کوتوالي ته بوتلم او په حوالات کښې یې بند ی کړم هلته مې زیر ب تانه دار ولیده چه دوه ورې ما ته را نزدې کېدې نه شو په دده دده به راته تېرېده. ده ماسره په مشن سکول کښې یو ځای سبق ویلی و او یو ځای په بورډنګ کښې اوسېدلي وو او لکه د ورو نومو ډېر تعلقات وو.

په سباله یې زه بیا د پولیس دفتر ته بوتلم سید اکبر نومې یو اپریډی انسپکټر و د دې کوتوالي انچارج وهغه راته ووې چه ستاسو پېښې ده پاسه څه ماورته ووې زما پښې ژوبلې دي زه کچهرۍ ته پیاده نه شم تللې، ده راته ووې چه جلسې کولې شې او پیاده تللې نه شې زه ستا د پاره د سورلۍ انتظام کولې نه شم ماورته ووې چه داسې دا

زما پښې وګوره زه د پياده تللو يم؟ ده راته وويل چه زه دې پښې نه ګورم پاخېږه -
روانېږه چه ځو. ما ورته ووې چه زه پياده نه ځم اوکه ته مې بېولی شې بوځي ځه چه زه
ورته کلک شوم نو انسپکټر راته نوم شو. دانګرېزانو عجيبه حکومت او عجيبه نوکران
دي چه ما ورته نومه وې ده راته ګومه ووې او چه ما ورته ګرمه ووې دی راته نوم شو
سپاهي ته يې اواز وکړو چه ورشه هلکه تانګه راوله په تانګه کښې يې کښېنولم پېښې
ته يې بوتللم يو ساعت بهرناست وم هيچا ته يې مخکښې نه کوم او له هغه ځايه يې
جېلخانې ته بوتللم په جېل کښې يې يو بارک ته ورو ستم يو زوړ کمبل او يو زوړ توړی يې
راکړل يوه کډې خالي وه ما توړی په کډې واچولو، ما جېلخانه چېرې ليدلې نه
وه او دجېل نه ډېر وېرېدم زه ځه چه تول پښتانه دجېل نه وېرېدل، جېلخانه چه
چاليدلې نه وې ورته يو بلا ښکاري خو زمونږ دخدای خدمتګار و تحريک په وجه
تري اوس ښکاري، زمونږ د قبايلو پښتانه اوس هم دجېل نه ډېر ويرېږي اوس ځوک نه ويرېږي ماسره چه بارک کښې نور قيديان وو دهغوی جامه ډېره ښه وه او
تعليميافته ښکاريدل خو په ما تياره وه دځان فکر راسره و. په هندوستان کښې
پرنګيانو ډېر خلک ځانسي او چار ماري کړي و. زما هم ځپله باره کښې داخيال
و شپه او ورځې به مې لمونځونه او وظيفې کولې خدای ته به په سجده پروت وم
زاري به مې کوله که عمري قيد شم خو خير دی چه ځانسي نه شم، خو ورځې چه تېرې
شوې دجېلخانې د ملګرو سره بلد شوم پوښتنه مې توې وکړه معلومه شوه چه
تول د افغانستان خلک وو او پرنګيانو دجنګ له کبله بنديان کړي وو.
لس، دولس ورځې به تېرې وې چه يو سپاهي راغې راته يې وويل چه بهرستا

یو دوست راغلی دی وایی که ددهٔ څه سوال وجواب وی چه زه یې کلی ته ورسوم زما خواول په زړه کښی دا راغلل چه بابا ته سوال وجواب ورکوم چه فضلو لوهادی کړه زما څه کاغذونه دي هغه واخلئ اوویی سېزئ ځکه چه هغه کاغذونه په ازادو قبایلو کښی د دوړي کولو او یومرکز جوړولو په باره کښی وو که هغه حکومت ته په لاس ورشی کافی ثبوت دی خو دلږ فکرنه پس زړه ته دا راغله چه ددی سپاهی تا سره کوم تعلق او کومه همدردی ده چه ستا له غمه خوب نه ورځی په دې چل دوی ستا راز معلوموي . د جیلخانو ملازمان اکثر د سی . آی . ډی مخبران وي او دسیاسی قید یانو سره څو دېر داسلوک کېږي د هغوی تجربه نه وي دوی ورته خوله پسته کړي راز تړې واخلی زما د پرخطونه یې په دی طریقه سی . آی . ډی له ورکړی دی . دا تمانزو هغه هلک چه د تیلفون د تار په پرېکولو دوه کاله قید شوی وو په جیلخانه کښی په لنګرکښی وو او په قیدیانو به یې ډوډی وېشله هغه نه ما پوښتنه وکړه چه ته یې زما دراوستلو په ورځ دڅه د پاره دکپتان بنګلې ته راوستی وې هغه راته ووې چه به ماجیل والا او پولیس والاو دېروس کړی وکه تا نه پوښتنه وشی چه دا تار تا د چا په لمسه شلولی ونو ته ورته ووایه چه د عبدالغفارخان په لمسه دا دوه کاله قید به دې معاف شي نو ځکه یې زه هغه پرنګیانو ته پیش کړم هغوی راته پوښتنې کولې چه دا تار خو به تا د بل چا به وینا پرې کړی وی ؟ ما ورته ووې چه نه صاحب دهیچا په لمسه مې نه دی غوڅ کړی اخری راته بنکاره ووې چه کوره داکار به تا د عبدالغفار په وینا کړی وي ما ووې نه دا کار ما پخپله سلاکړی دی زه دروغ نه شم ویلی .

## زما د بابا او نورو کلیوالو گرفتاري :

زما د نیولو به شپاړس ، اووه لس ورځې شوې وې لور ماز یګر و چه یو ملاز
داغی راته یي ووی چه د اتمانزو اته نهه شلي قید یان یي را وستل زه لا په دې فکر
کښې وم چه دا به څوک وی چه لویه ډله یي زمونږ په بارک راننه ایستل چه کاته مې بابا مې
ؤ ، عطاء الله دادا ، شمروز دادا ، حیدرخان کاکا ، عباس خان ، فیض محمد خان
ع عبد الغفار خان بونې ، د شموز و مشر ملا صاحب ، برهان دادا ، لنډه دا چه یوازې
زمونږ د کلي یکښې اووه نیم شلي تنه وو . زمونږ خو تول خاندان وو د اتمانزو تول اتمانزي
خانان وو اکثر لوی ملایان ، پیران او معززین وو د رخړو یو څو خانان چه زمونږ
خپلوان وو هغه وو . برهان خان ، قلندرخان ، د بابړې باچا صاحب او څه کسان
یکښې د چارسدې وو دا خلک یي د هغه قاضي شاکرالله په ډاېرکې نیولي وو . بابا
مې چه زه ولیدم ډیر خوشحاله شو ویې خندل او ویې ویل چه د خدای شکر دی
چه تا سره یو ځای شوم زما په باره کښې دا خبره خوره شوې وه چه ځانسي شوی
دی ځکه مې بابا په لیدو خوشحاله شو زه هم خوشحاله شوم ځکه چه یوازې تنګ
شوی وم . دوی راته د خپلې ګرفتارۍ قصه داسې بیان کړه چه ملایانو لا د سهار
بانګونه نه وو ویلي تیاره وه چه فوځ زمونږ د کلي نه چاپیره شو او د ملدسې سره
په دې لوی میدان کښې یي توپې و درولې کوره سپایان پرې ناست وو چه څوک
به د کوره راووت هغه به یې ونیوه او ډاک ته به یې راوست چه لږه رڼا شوه پولیس
په لا ړو ، کوڅو کښې خواره شول او خلک به یې له کورونو نه راویستل ورته به یې ویل چه
هر چا کره وسله وي هغه دې راوړي سرکار ته دې تسلیم کړي که چا تسلیم نه کړه

وسله ورکوه وخته چار ماری کېږي به خلکو دوېږي نه وسلې راوړي په ډاک
ښي يې انبار کړي او خلک يې هم راوستل په ډاک کښې يې د توپو خولو ته مخامخ
ښېنول چه ډاک د خلکو نه ډک شو او وسلې له کورونو نه راټولې شوې ښځې د کوټو
ته ختلې وې ژړا انګولا وه په ټول کلي وېره او ماتم وو چه په دې کښې ګوره کان
پوته وختل او د توپو چړق چړوق شو د ټولو دا يقين شو چه وژل کېږو د قرآن
سورتونو ويلو موشروع وکړه او هلته په کوټو ښځو وېرته زود ورکړو چه په دې
ت کښې دپېټهي کمشنر او څوځې افسران راغلل او زمونږ مخکښې ودرېدل
راته يې وويل چه اې داتمانزو خلکو پوه شئ چه د سرکار ډېر لوی لاس دی يو
س يې افغانستان کښې دی او بل دلته تاسو ته دی . ماستاسو کلي ډېرش
ره روپۍ جرم کړو او يوسل وپنځوس کسه مې ستاسو نيول پنځوس کسان په
ي کښې چه هغوی د سرکار برخلاف جلسې کړي دي او سل کسان به تر هغه وخته
ري قيد وی چه تاسو ديرش زره روپۍ جرمانه ادا کړې نه وي . بيا يې
ږ دچارسدې تانې ته راوستو او له هغه ځايه يې په ټمټمونو کښې کښېنولو
پل ته يې راوستو . بله ورځ حي کا ته چه محمد اکرام خان هم چه زمونږ په
سونه يې مخبري کولې لاس تړلې راوستنه . ده سره پرنګيانو عجيبه
رقه وکړه نه د دين شو نه د سادين . اکرام خان مونږ سره په بادک
ځای و زما دا خيال وچه پخپلو کړو به پښېمانه وي او لږ شرم به محسوسوي
هغه دومره کلک سترګی وچه مونږ ترې په اوړکښې ولاړ وو چاپودی به يې
مخبري کولې چا سره به يې بحث کاوه او چا سره به ښتي وجنګ به يې کاوه

ته به يې ښکنځل کول ويل به يې چه خدای ويلي چه ذوی به دی ويلي چه ذوی به د مسلمانا
ځ قسم دوستان نه شي خوچه يوه ورځ ورته ذوی ليکلي وو چه ته ذوی ليکلي وو چه زموږ
نت مستور ويلي خانمايي ته په دوره راغلي و. ستا تصوير ته حلي و. ستا تصوير ته چه په حجا
و دپر د پرکتل. په دې دومره خبره دده نه د پرنګيانو هغه توده نه د پرنګيانو هغه تول بلا
ذوی ته يې وليکل چه دا الي ورکول په کار دی. دا تول د غلامادی. دا تول د غلامانه ذهنيت
په غلامي کښې دانسان نه انسانيت هېر شي او انساني خوبلې کښې يا

زمونږ سره يو کابلي بندی وچه کله به ټوټو نو د رزهار شو او دا سو د رزهار شو او داسې به معلو
غانستان او د انګريز جنګ دی په جوش او جذبه کښې پاڅي او جذبه کښې پاڅيده په هغ
شو لاس به يې دتوری غوندې ټنګ ه او په زوره زوره به يې د په زوره زوره به يې ويل چه
کش کو. زمونږ څومره کسان يې چه د جلسو کولو په تور نيولي وو د سو کولو په تور نيولي وو د حکومت
چه ګوندی زمونږ د افغانستان سره خه راز باز دی او ګوم اخبار از باز دی او ګوم اخبار ونه چه
ستان نه راغلي دی هغه دوی په ملک کښې تقسيم کړی دی او دوی تقسيم کړی دی او دوی د افغانستان
ط او کتابت هم لری. حکومت لګيا و د دی تحقيق يې کولو با بامي راحقيق يې کولو با بامي راته ويل
الله خان د عمرزو په چل ول زمانه دامعلومات اخيستل چه نلومات اخيستل چه زمونږ با
ستان سره راز و بازشته يا د افغانستان اخبارونه د ه ته راځي اخبارونه د ه ته راځي. بابا
په ما باندې ډېر زور لګولی وکه د غسې اخبارونه تا سره وي يا خبارونه تا سره وي يا د ه ته مع
ماته يي راوره چه زه يې لولم. ده غوښتل چه دغه راز معلوم کړی ا دغه راز معلوم کړی او پرنګي
ی وکړي او خپل مخ پری وکړي خو حقيقت دا و چه د افغانستان دا و چه د افغانستان س

زمونږ هیڅ راز و بازنه و نږ هیڅ راز و باز نه و نه موخط وکتابت وه نه موهغه اخبارونه ته
عاشق میوه فروش چه کوم اړ میوه فروش چه کوم اخبارونه راوړي وو په هغه کښې مایوهم نه وو
بابي جان ، اکبراواحمد ابجان ، اکبراواحمد استاذ اخیستي وو . د بابي جان د اخبارونو
داخلاص شوم مورمي راته قصص شوم مورمي راته قصه کوله چه بابي جان خو مونږ په لوی مصیبت
خو خدای بچ کړو . خبره دای بچ کړو . خبره داسې وه چه بابي جان د عاشق میوه فر
اخیستي دي پخپل صندوقچه کښې دي پخپل صندوق کښې بي ایښې دي او صندوق بې مونږ
دي او دي د اکبر دوی سره دي د اکبر دوی سره ازادي علاقې ته تبستېدلي و مونږ ته بې
زما په صندوق کښې د افغانستان صندوق کښې د افغانستان اخبارونه دي . کله چه پولیس زمونږ
له راغلي دي دا صندوق قبلي دي دا صندوق قبلي خواته کوټه کښې پروت وچه پولیس دې کو
ماله هسې فکر راغې ورته مې وسې فکر راغې ورته مې وویل چه دا کوټه خو زما د ډاکټر زوی ده او
کښې کپتان دی ددې کوټه کپتان دی ددې کوټې تالاشي ولې اخلئ زما ددې زوی کوټه
نو دخدای بنه وپولیسو د دخدای بنه وپولیسو ددې کوټې تالاشي وانه خیستله بلې کوټې ته و
چه مونږ د بابي جان ملا صندوق د بابي جان ملا صندوق پرانیسته دا اخبارونه ورنه راووتل
بي دلته مونده لې وای زمونږ نه موندلی وای زمونږ د جرم د اثبات دپاره کافي وبیا چا دا ثابتول
چه دا صندوق د بابي جان صندوق د بابي جان دی . په دې ورځو کښې په هندوستان کښې
شوی و ولی مونږ خپل قوم ته و ولی مونږ خپل قوم ته په جلسو کښې هر وخت ویلې وو چه تشدد و
قوم هیڅ قسم تشدد ونه کړئ هیڅ قسم تشدد ونه کړو .

په مونږ نور هیڅ ثبوت په مونږ نور هیڅ ثبوت نه و صرف جلسې موکړې دې او جلسې ح
جلسو کښې هم مونږ داسې کار لیکښې هم مونږ داسې کار یا خبره نه وه کړې چه د قانون په وړاندې

دوی درې میاشتي کوښښ وکړ و خو څه دلیل یې لاس ورنغی نو بیا یې په مونږ کښې کوښښ شروع کړ و احمد استاذ یې دې ته تیار کړ و چې ته سرکاري ګواه شه مونږ د سزا د معافولو وعده کوو. احمد استاذ پسې یې جمعدار راغی دفتر ته یې بوتلو مونږ په شکمن شو تحقیق مو ورپسې شروع کړو معلومه شوه چې دا معامله ده. د فیض محمد خان د پراشنا و هغه ته مو ووې چې خبره داسې ده ستا دوست دی ته یې پوه کړه چې دا مناسب نه دی چې دی یوازې د ځان بچ کولو د پاره ټول ملګري او رته وغورځوي هغه ورته د پر منت او زاری وکړه مونږ هم ورته منتونه وکړل خو هغه زړه غور ځېدلی و په جېل کښې د پر تنګ شوی و زمونږ خبره یې ونه منله پولیس دده نه بیانونه لاپخوا اخیستي وو او لېږلي وو د مارشل لا انچارج پخپله سر جارج روس کیپل و دی زمونږ چیف کمشنر هم و د هغه لېښتنو سره مینه وه او د لېښتنو خیر خواو، هغه ووېل چې زه په دوی مقدمه نه چلوم د مقدمې چلولو اجازت یې ورنکړو ځکه د پر وخت پکښې تېر شوی و او حالات بدل شوي وو. یو خان راته قصه کوله چې مونږ جرګه ورغلي وو چې دا سپین بږیري سپین بږیري کسان پرېږده هغه راته ووې چې ځئ ستاسو هغه باچا مې هم پرېښودو او نور مې هم ټول کسان پرېښودل.

## دجیلخانې حالت:

د هغه وخت جیلخانې ډېرې سختي وې او خلک به له قیده ډېر زیات وېرېدل خوراک یې د خوراک په شان نه و، جامې یې د جامو په شان نه وې او ژوند یې د انسان غوندې نه و، د قیدي نه د سپي ژوند بهتر وو، هیڅ یې هیڅه وهل ټکول، شرم وو، او د قیدي دومره قدرت نه وو چې پوښتنه یې کړې وې چې دا په څه؟ د ننګړو کا

ې کول چکنی پړی او ره کول (مچین پړی کړځوی) او ارت پړې کړ ځول.
ږ سیاسی قیدیان وو مونږ له بهرني چه کوم ساک را کولو هغه ته به یې سورساک ویلو.
ورځ می جمعدار صاحب ته په توقو کښې وویل چه جمعدار صاحب دا خو په ښه ساک
ددې تخم به راله پیدا نه کړې چه زه رهاشم خان ته یې بیا کرم هغه را ته وویل
ساک په ښه والی کښې څه شک نشته تاسو یې لا د پوره خونده خبر شوی نه یې دا
ل د جیلخانې غوا یا نو ته وا چوي چه د هغوی نه پاتې شی بیا یې تاسو له درکوی او
ل په پېښور غونډ ی سره سبزه علاقه کښې نه پیدا کېږی. داد پوره اسماعیل خان
ی هلته هر ځنګلی بوټی له ساک وایې په کوم لو ښو کښې به چه دا پخېدل که هغه چا
وای سره د ډېری لوږې به یې هم دا ساک نه ؤ خوړلی د دوی داحال و چه
به هم نه خوړه. د دا نو پا کول خو پرېږده کوم قیدی چه چکی ره اوره کوي هغه وږی
غلې میده کولو په وخت کښې اومه اوره خوري او د وزن پوره کولو د پاره پکښې
انداز ه خاوره ګډوی چه ځو مره اوره دوی خوړلی وي. بله دا چه جیل والا پوره
ی نه ورکوی نو د دوی د تول برابر ساتلو د پاره د دوی ښه نه پخوی. مونږ
ی د جیل د دوی خوره بیا را ته د خپلی د دوی اجازت و شو خو د دوی به مونږ
رازه کښې خوره په بارک کښې اجازت نه و ځکه چه په دروازه کښې یې را نه پیسې
ی شوی. جیل والا و مونږ ته دا لو به یې شرمی جوړه کړې وه چه څه وخت به مو په
ه کښې د دوی و خوره چه جیل ته به یې را د ننه کولو تالاشی به یې اخیسته
هم صرف زمونږ د سپکولو د پاره او په دې طریقه به یې را نه رشوت اخیسته
دا د روغه امیر چند و هغه بلهای خورنه و د پېتی دا د روغه ګنګا رام و هغه بلکې خوړه

او مونږ د ده ته په حواله وو. زه پخپله د بلو و ورکولو خلاف وم او زما نور ملګري
نه وو خصوصاً حاجي محمد اکرم خان او هغه کسان چه هغوی ته پان، نسوار
ګزاری کول. آخر کښې د حاجي محمد اکرم خان او جېل والا و په کشمکش زمونږ د
بنده شوه کشمکش یوازې هغه وکړو او دوه دې په کښې د ټولو بنده شوه. مو
په هفته کښې یو ځل د ملاقات کولو اجازه وه ملاقات نه هم عجیبه وو او لو
به وه هر څومره ملاقاتیان، قیدیان چه به وو راټول به یې کړو، دروازې ته
راوستلو دروازې نه به یې لږ شانته قت په قت ودرولو، زمونږ ملاقات له
څوک راغلي وو هغه به یې د دروازې نه بهر لږ بېرته ودرول یو بل سره به مو په چغ
کولې ځکه چه ورو به ورو به اوریدل کېده مونږ له به هغوی د باهر حال راوړو، ویل
چه په خلکو ډېر ظلم او زیاتي دی خلک تنګ شوي دي تاسو په جېل کښې باچایا
دا د جېل ژوند د بهر له ژوند نه ډېر غوره دی د جرمانې نه کونډې او یتیما
دي خو عمر خان او پولیس یو شوي دي، هیڅوک یې په حیا کښې پرې نه
دوی د کونډو او یتیمانو نه جرمانې اخیستلې دا لا څه کوې چه نمبردارانو
ځله د خلکو نه د جرمانې پیسې وصول کړې او چه څوک لږ څه ووایي پولیس
وې د خلکو په کورونو ورو خېږي وهي یې، ټکوي او شرموي یې، نو خلک د
هر څو ځله چه ترې جرمانه غواړي ورکوي یې. چه څه وخت د ډېرښو زرو
یو لک جرمانه وصول شوه نو هغه سل کسان یې پرې ښودل نور مونږ پاتې
یې هم چارسدې ته بوتللو. د چارسدې د تللو نه مونږ خبر نه وو. جېل
خپله دوه دې بنده کړې وه او هماغه د جېل سور ساګ او د جوارو تر څه دوه د

ولہ دچا زړه ته کېده اوکه نه کېده . که چا خوړه اوکه نه خوړه ، چه په دی کښی خبر
ی چه لاټ صاحب حکم کړی دی چه دا خلک می دهغوی دباچا سره تول پرېښودل
ینږ ډېر خوشاله شو . بله ورځ حکم راغی چه تیار شئ ستاسو چارسدی ته چالان
ں ) دی . مونږ یې دوه په یو ځنځیر وتړلو او یو سپاهی ته به یې حواله کړ د ځنځیر یو
ں به د پولیس سپاهی سره و په ټم ټمونو کښی یې کښېښولو سپاهی مخکښی او مونږ
وروسته ناست وو چارسدی ته یې بوتللو هلته یې په حوالات کښی واچولو . په دی
ل کښی ما ته دټولو نه زیات تکلیف زما دپښو و . ولې چه دتنګو بېړیو په وجه می
ې زخمی شوې وې جامی بدلول راته تکلیف و لمبل راته تکلیف و ګرځېدل
ل په تکلیف و ملاسته می په تکلیف وه ، په ډډه اوړېدل داوړېدل او نمونځ
ل راته په تکلیف و په ګرمی کښی به ګرمې شوې او په یخنی کښی به یخې شوی سره
ی دوه تکلیفونو یې زما دپښو نه دا بېړی ونه ایستلې ، زمونږ ډاکټر یو انګریز
او ښه سړی و خو معلومېده داچه دحکومت نه مجبور و ځکه یې زما دپښو نه
یړیو ایستلو جرئت نه کولو . بی له مانه ، چه د «دولت اکټ» په ایجی ټیشن
رکت ، کښی څومره کسان بندیان وو هغوی ته یې بېړی نه وې لګولې اوکه
نورو سیاسی قیدیانو سره کوم سلوک کېده و مونږ سره یې هغه نه کولو بلکه د
لاقی مجرمانو هسی یې سلوک راسره کولو .

کوم کسان چه یې زما سره نیولی وو د ږې نیمی میاشتی پس یې دهغا
ل یوازی زه یې پرې نه ښودم . بابا می زما په پاتې کېدو ډېر خپه و زما نه یې
اکېدل نه غوښتل خو مجبور و دبل واک و . دجدایی په وخت کښی راته غا

شوا و په ستړګو کښې یې اوښکې راغلې مور مې چه خبره شوه دېره خپه شوې
خودې خپګان او مخکښې خپګان کښې ډېر فرق و مخکښې خود پاڅسې او
وېره وه او داځل خو که قید وم خو دخلاصېد و امید مې هم و. ډوډۍ به
مور رالېږله. ماسره به دا ډوډۍ د سپاهیانو او حوالاتیانو هم کېده خو
شوم چه دا ډوډۍ په بله ورانه د سبېږې اول خو مې جېل والا او پولیس والا
وویل چه ما خو څه داکه کړې نه ده زه خو سیاسي قیدي یم د قام او ملک په
کښې بندي شوې یم ما ته ددې ډوډۍ سرکاري طور اجازت دی پېښور
کښې یې راکوله تا سو ته په کار دی زما ډوډۍ ما ته بې قید او شرطه پرېږ
قام، وطن او سیاست څه کولو اخر زه مجبور شوم او مور ته مې جواب ولېږ
له ډوډۍ مه رالېږه ځکه چه په بله ور کولو د ډوډۍ خوراک ما ته ګناه د
هغې زما خبره ومنله او ډوډۍ یې بنده کړه ما به هماغه د جېلخانې ډوډۍ
خوړه څو ورځې پس یې پېښور جېلخانې ته بدل کړم د تللو په وخت کښې ماسره په
کښې نور اخلاقي قیدیان هم وو چالان خو پېښور ته په خپلو پښو ځي ما پولیس
وویل که چېرې ستا سو خوښه وي په ټمټمو کښې به لاړ شو ستا سو او د
قیدیانو کرایه به هم زه ورکوم هغوی ونه منله دوی د کرایې د پاسه نغد
هم غوښته ما وې ښه ده په خپلو پښو ځو. زما خپلوانو او دوستانو ډېر راته
چه ولې پیاده ځې داخلک به څه وایي؟ مونږ د خلکو د پېغورونو له کبله ډېر
کارونه کوو. ما ورته وویل چه زه د خلکو خبرو ته نه ګورم کار ته ګورم که کار د
وي خلک چه هر څه وایي زه به یې کوم او که کار غلط وي نو که خلک هر څه وایي

نه کوم. لنډه دا چه په ډېرو خوارو مې رضا کړل او رخصت مې کړل چه د سپاهیانو باور راغی چه زه پیاده تللو ته تیار یم پخپله خبره پښېمان وو خو بیا کله کېده. مور خویندې او خپلوانو چه زما د تللو نه خبرې شوې وې قاضي خېلو ته راغلې وې او د سمې په غاړه په یو کور کښې زما د لیدلو د پاره ناستې وې. د لیدلو، کتلو په دوران کښې زه پوه شوم چه دوی پولیس والا وته بلهاې ورکړې دي. که زه مخکښې خبر وای ما به د دې لیدلو نه انکار کړې وای. د میان ګوجرو لاره لنډه وه په دې روان شو چه اکوډې ته ورسېدو. میر قادر خان چه ور روسته بیا خلکو نواب صاحب بللو او د هغه پلار راغلل او مونږ یې خپلې حجرې ته بوتللو د ډوډۍ انتظام یې راله وکړو ما ډېر انکار وکړو خو هغوی پرې نه ښودم او مونږ تولو ته یې ښه ډوډۍ راکړه بیا یې رخصت کړو. کوز میانګې پېښور ته ورسېدو د چارسدې ته پېښور اته لس میله دي دا تول لاره مونږ پخپلو پښو وهله. سعد الله دوی په دې ورځو کښې په ښار کښې سبق ویلو زمونږ نه خبر شوې وو مخې له راغلي وو او ماله یې ډوډۍ راوړې وه شاهي باغ سره مو ډوډۍ وخوړه وخت ناوخته و جیلخانې په داسې وخت کښې قیدیان نه اخلي زه یې کوتوالۍ ته بوتللم او یو ډېر ګنده ځای کښې مې شپه تېره کړه سباله یې جیل ته بوتللم او ور داخل یې کړم جیل والا وزه د نورو قیدیانو سره په یو بارک کښې بند کړم ډوډۍ بېرې هم د جیلخانې راکوله په دې ورځو کښې انس صاحب ډپټي کمشنر و زما د بابا سره ښه بلد و بابا مې ورته ورغی او ورته یې وویل نو زما د خپل خوراک او څښاک اجازه یې راکړه چه د خپلې ډوډۍ اجازه یې راکړه زه یې د دې بارک نه د جیلخانې د دروازې د خولې سره هغه بخوانې حوالات ته بدل کړم ایکې یوازې یې

په یوه بارک کښې بند کړم ځانله وم خو ډوډۍ مې خپله خوړه ډوډۍ به یې د حوالات
د دروازې خولې ته راوړه کښېښوده ما ته به یې اواز وکړو زه به راغلم او هغه غلته
به مې خوړه زه په بارک څه چه په دې ټول حوالات کښې یوازې وم خو ډوډۍ به یې
هلته نه راپورته کښېښوده. په دې ورځو کښې د لوند خوړ ریډی خان هم قید و بروس
صاحب قید کړی و. دی یو پړنګی و چه د خانانو او پولیس برخلاف واو د دوی په
ایمان ډېر ښه پوهېده. د جېلخانې داروغه هم د بلې خوارو خانانو تا کوو بلې
خوړ نه و رشوت ورکوونکو پیسې به کړځېدو او په کار به یې لګولو. د ریډی خان هم
حال بد و د حوالات په ختو یې لګولی و ټول به په ختو لړلی و د خوراک حال یې هم
ښه نه و. ورځ یې ډېره بده وه تر څو چه زه هلته وم ما د خپلې ډوډۍ نه په ډېره
یوه څه برخه ورکوله. شپږ میاشتې پس زه د دېرش زرو روپو په ضمانت رها
کړی شوم.

## د قید نه خلاصېدل:

چه کلی ته راغلم خلک زما لیدو او په خیر راغلی ته راتلل او په ډېره مینه
محبت به را سره یو ځای کېدل. د دولت اکټ ایجی ټېشن د خلکو نه ډېره ته
واخیسته او د پر ځانی او مالی نقصانو نه یې خلکو ته ورواړول خو دومره
وشو چه په خلکو کښې یې څه احساس راپیدا کړو په پښتنو کښې د سیاسی
شعور آغاز وشو زه چه د کلی د حالاتو نه خبر شوم زه په جېلخانه کښې دومره
نه وم ربړول شوی څومره چه زمونږ د کلی خلک ربړول شوي وو. مو
را ته قصه کوله چه ته ونیول شوې ډېر ورځ را باندې تیاره شوه په ځان نه یو

چاواته وويې چه هرڅه خدای کوی هغه کېږی او ورپسې پولیسي کپتان صاحب چه څه کوی هغه کېږي کور کښې نغدې روپۍ نه وې کالی (زیورات) ډېر وه ستاکالي وو، د ډاکټر صاحب کالی وو، زما کالي وو، داټول مې راغونډ کړل خدمتګاره مې د ځان سره واخیسته، چادسدې له د پولیس کپتان صاحب کورته لاړمه او پخپل لاس مې هغه ټول کالی ورکړه مازره ډېر ټینګولوخونه ټینګښت وژړل مې. پولیسي کپتان ښه سړی و ماله یې ډېره تسلي راکړه راته یې وې چه موږې خپه کېږه مه زوی به دې خدای راخلاص کړی.

## د دوهم واده تیاری او بیا ګرفتاری:

ماله مور او پلار هماغه د ځواني ته ډېر په کلي او هماغه خاندان کښې کوژده کړې وه اوله ښځه مې د مشر خان خور زه وه او دایې لور وه مور او پلار مې د واده په بند و بست کښې وو د واده نېټه یې ایښې وه. زما او عباس خان په ذمه جوړه اخیستل وو عباس خان زما د ورکوټوالي دوست او زما ډېره ته ډېر نژدې و. موږ اول نوښار ته لاړو هلته زموږ د کلي هلکانو تعلیم کولو او بابو سلطان محمد سره مو ولید و. بابو سلطان محمد یو پنجابي و د ډېر ښه سړی دا و ډېر قوم پرست و زما ډېر اشنا و. زما د هغه اشنایي په دې وه چه هغه هم د پښتنو بچو له په ډېره مینه تعلیم ورکولو. زه هم د دې عقیدې سړی وم چه د پښتنو بچي تعلیمیافته شي د پرنګیانو نوکرو. استعفایي ورکړې وه او په نوښار کښې یې یوه یتیم خانه او یو سکول جوړ کړی و. زه او بابو صاحب ناست وو خبرې مو کولې یو سړی دا غې موږ سره نژدې په لمانځه ودرېدو ماته شک شو بابو صاحب ته مې وویل چه دا سړی

خوک دی په ده خو زما شک پیدا شو هغه ډېر خوش اعتقاده سړی و ویل یې دا خو
ډېر ښه سړی دی لمونځونه کوی زمونږ خپل سړی دی ما ورته وویل چه هلته خو
دوه کمرې خالي پرتې دي. دی دا لمونځ هلته ولې نه کوی چه دلته مونږ ته نژدې
ولاړ دی بیا زه په جیلخانه کښې وم چه خبر شوم چه بابو صاحب گرفتار شو. هغه
سړی د سی. آی. ډي انسپکټر و ده پسې د پنجاب نه راليږل شوی و.
د حکومت په بابو صاحب دا شک و چه دی لوټونه جوړوی. چه د دې تحقیق یې
وکړو بابو صاحب یې سره د ساتنځي گرفتار کړو.

مونږ د هغه ځایه پېښور ته لاړو چوره مو واخیسته کلي ته راروان شو چه
سو دریاب ته راورسېدو او له پله نه پوري وتو چه تم تم ته ختلو د پولیس تانړه
دار مو د سپاهیانو سره ولیده چه په تم تم کښې ناست او د پله خوا ته راروان دی.
چه مونږ ورنه تېر شو دوی هم راپسې راوګرځېدل مونږ مخکښې دوی راپسې
دي په دې مونږ شکمن شو چه څه چل خو دی چه تانړې ته راورسېدو مونږ ته یې
اشاره وکړه مونږ ودرېدو تانړه د سړک په غاړه وه مونږ یې تانړې ته بوتللو
هلته نور افسران زمونږ په انتظار کښې ناست وو چه مونږ یې ولیدو پخپلو کښې
بېل شو او څه پس پسې یې سره وکړو بیا مونږ ته راغلل راته یې وویل چه تاسو پسې
د پوره ته نه حکم راغلی دی مونږ تاسو بېرته ښار ته بیایو. مونږ ورته ووې چه د څه
حکم دی مونږ خو پوه کړئ هغوی جواب راکړو چه مونږ هم خبر نه یو. مونږ سره
چه کوم سامان وو هغه مو هغوی ته حواله کړو او مونږ د پولیس سره واپس ښار ته
روان شو ماښام تیاره ښار ته ورسېدو نیغ یې د ښارت صاحب بنګلي ته بوتلو.
مصیبه دغه زمانه کښې نوابزاده [illegible] خان صاحب [illegible]
کپتان شو ده د [illegible] گرفتار شو [illegible] السلام [illegible]

دی دپېښور دضلعې د سی . آی . ډی لوی کپتان و ښکلېږي مشن کالج ته مخامخ
ود موږ يې په سړک و دروليو و دپوما مياشت وه ډېر ساړه وو ماخوستن شو
په ولاړه نور ستړي شو نه زموږ دپاره دناستې څه انتظام وا و نه دپوليس دپاره.
موږ پوليسانو ته ډېر وويل موږ به تر کومې پورې په دې يخنۍ کښې په سړک دلته
ولاړ يو لاړ شئ څه تلوار يې وکړئ چه زر پېښ شو . دپوليس افسرانو کښې داجرئت
چېرته و هغوی موږ ته بهادران وو پرنګي ته يې ايمان نه و . دمسلمانانو لوی افسر
به دومره دخدای نه نه وېرېدل څومره چه به د پرنګي نه وېرېده . دخدای دومره تابعدار
و وفادار نه و څومره چه د پرنګي و . موږ دا خبرې کولې چه دښکلې نه يو پوليس افسر
راووت او د دوی سره وپسپسېدو بيا يې زه او عباس خان يو د بله بېل کړو دجدا کېدلو
په وخت کښې ما ته عباس خان ووې چه څه به وايو . ماوې چه رښتيا د رښتيا به وايو
معلومېدله چه دغه پوليس افسر دا حکم راوړی و چه ما او عباس خان بېل کړي هغه
مشن کالج طرف ته روان کړو او زه يې دې خوا ستېشن ته چه کوم سړک تللی
هغه ته راوستلم . زه په ولاړه ډېر ستړی شوی وم يخني مي هم کېده . يو پل و د
هغه دپاسه کښېناستم دعباس خان نه خبر نه شوم خو زه يې ماسخوتن تېر شارټ
صاحب ته مخکښې کړم . شارټ صاحب په يوه کوټه کښې دانګېټهی خوا ته ناست وو
انګېټهی کښې ښې د ډېر پرتې وې . کوټه ښه توده وه . زما د يخنۍ نه ژامې کړېدلې
هم تود شوم طبيعت مې ښه شو انګېټهی سره يو بله کوسی وه د شارټ صاحب را ته اشاره
وه په هغه کوسی کښېناستم . شارټ ډېر قارجن سړی و په ښتنې يې را ته
کې ما ورته چه څه رښتيا او حقيقت و بيان کړل . ما چه څه وخت خبرې نه وې کړي

نو ده راته ووې چه ورو ورو وایه بیا می چه رو رو خبری کولی هغه راته ویل په زوره
وایه ماورته ووې چه ورو وایم نو والي په زوره وایه . چه په زوره وایم نو ته وایي چه
ورو ورو وایه ، ته راته یوه طریقه وښیه چه زه هغسی ووایم . زما په خبره خوقار ده
ودغی خوسړی چپ شو . چه بیان می ختم شو دکوتهی نه راووتم پولیس راته منتظر ولاړ و
زه بیا هغه زوړ اشنا زوړ ځای د حملاً کوتوالی ته بوتللم . په حوالات یې ورد ننه کړ
یو غوزړې د سپنږ و دکي شړې پرتې وې هغه می واغوستی او د سیمټو په یخ فرش
څملاستم په بله شپه سید اکبر خان زاړه اشنا د ډپټی کمشنر بنګلی ته بوتلم هغ
ته یې وړاندې کړم ، ډپټی کمشنر انسن صاحب و د پرښه سړی و . ماورته د خپل
بې ګناهی خبره وکړه هغه ډېره تسلی راکړه او سید اکبر خان ته یې ووې چه د
ښه سلوک کوئ او ښه ډوډی ورکوئ د صاحب حکم وچه بېرته راغلو هغه د سپ
شړې یې راته بدلې کړې او ډوډۍ یې هم راته ښه شروع کړه . اته نهه شپې زه
دې حوالات کښې بندی وم چه یوه ورځ پولیس راغی او زه یې د پولیس لوی افسر
ورو ستم . شارټ صاحب ته یې بیا مخکښې کولم . د هغه د دفتر سره یو وړوکی غو
خای و زه یې هلته کښېنولم زه خپل فکر کښې ډوب تللی وم چه یو سړی می تر نظره شو
چه کوټه ی راغی او د دفتر چک یې وچت کړو په منډه ورننووت ماخو ښه ونه لید
ولی شک می پیدا شو راغی چه قاضی شاکرالله و . ار دلي نه می پوښتنه وکړه چه دا سړ
څوک و ؟ هغه راته وویل چه زه یې نه پېژنم دوی که څوک پېژنی هم په اسانی یې نه
ماورته ووې چه ولی قاضی شاکرالله نه و ؟ ده راته وویل چه ؤ . ما نور تول فکرونه
بس د دفتر دروازی ته می سترګی ونیولې چه قاضی صاحب به کله راوځی چه ورس

سلام علیک وکړم چه بلې ورځ بیا منکر نه شي . شارټ د صوبې د مخبرانو لوی مشر
او د ټولو مخبرانو تعلق ده سره ؤ . زه په دې وپوهېدم هسې نه چه په بله لار دا نه
لاړ نه شي ځکه چه دوي هم احتیاط کوي په یوه لار چه لاړ شي بیا په هغې نه راځي . خدای
ته زاري کوم چه خدایه قاضي صاحب په همدې لار ده واپس راولې چه سترګې موسره
مخامخ شي ده خو عوام پرېږده چه ملایان هم دوکه کول ماوې چه حقیقت یې خلکو ته
ښکاره کړم . قاضي صاحب ډېر ساعت وروسته راووت چه ما له نږدې راغی زه ور
پاڅېدم سلام مې ورواچاوه چه زه یې ولیدم رنګ یې تک زېړ شو او ورته مې وویل چه
قاضي صاحب ته خو مسلمان شوی وې دا بیا کله کاپر شوې سترګې یې ښکته کړې هیڅ یې
ونه ویل چابک رانه لاړ .

## رهایي او دوهم واده :

لږ ساعت وروسته زه پولیس د مخبرانو کشر کپتان ته چه د جهانګیري کلي
و مخکښې کړم هغه راته ووې چه ته ازاد یې . ما ورته ووې چه زه تاسو نیولی په څه وم
او اوس مې پرېږدئ ولې ؟ هغه راته وویل چه مونږ نوکران یو ، مونږ څه ویلی نه شو
زمونږ واکدار د ښه ناست دی ته دا پوښتنه د هغه نه کولی شې په دې وخت کښې
د پرنګیانو ډېر رعب داب وا او بیا د شارټ صاحب چه قهرجن هم و . چا ورته خبره
نه شوه کولی خو چه څوک په اخلاقي جرم کښې نه بلکه په سیاسي جرم کښې جېلخانه
ووینې وېره یې د زړه لېرې شي . زه نېغ شارټ صاحب ته ورغلم هغه ماته ووې
چه څه وایې ماوې چه دا زه دې په څه نیولی وم او اوس مې ولې پرېږدی ؟ هغه راته
وویل چه په نوښار کښې چا بم غورځولی و زمونږ دا شک وچه دا کار تا کړی دی خو د تحقیق

په نتيجه کښې معلومه شوه چه ته بې ګناه یې نو خکه مو اوس پرېښووی. نو ما ورته ووې چه
دا تحقيق خو زما د نيولو نه مخکښې هم کېدی شو زه خو دې ملک سړی وم که مجرم
وای نو زما نيول خو څه ګران کار نه و نه ګوره دا لس دولس ورځې موږ ه وکړولم زه
انسان يم. حيثيت لرم، هر څه مو راته پايمال کړل. ده راته ووېل چه تاسو د څه
حيثيت لوئ دا ز مونږ خوښه ده که مو نيسو، که مو پرېږدو ما وې ښه چه داسې
ده. نو د خدای پامان. زه ترې راووتم ورو رسته يې راپسې د پېږې چغې وهلې
خو زه ورو نه ګرځېدم. له هغه ځايه پياده ښار ته راغلم. زما د خلاصېدو نه خوک
نه و خبر. د چينې حکيم صاحب دکان ته ورغلم چه ګورم قاضي شاکرالله ګرم تقرير
شروع کړی دی چه خدای داسې ويلي او رسول الله (ص)، داسې فرمايلي چه زه
يې وليدم سپک پاڅېده او هغه ځای يې پرېښوده. زه له هغه ځايه کلي ته راغلم
د عباس خان پوښتنه مې چه وکړه هغه زما نه مخکښې رها شوی و او کلي ته تللی و.
زه دا منم چه بدلېښې حکومتونه بغير تشدد او د خلکو د وېرولو نه چلېدی نه شی
خو دا څيزونه په حاکم او محکوم کښې نفرت هم پيدا کوی. که په دغه وخت کښې پرنګی
د زور او ظلم په ځای مونږ سره نرمی کړې وای د دوی په ضد به دومره تحريکونه نه
شروع کېدل او نه به د هغوی رعب او داب دومره زر کم او ختم شوی وای ځکه چه
هغوی به د خپل رعب د ساتلو د پاره په ښتنو خومره ظلم کولو هماغومره به د خلکو د مقاومت
په وجه د دوی رعب او داب ته نقصان رسېدو.

لکه چه ما وړاندې ذکر کړی دی زما لومړنی تبر دغنی او ول دوی مور په
وباکښې مړ شوې وه په دې ورځو کښې زما د ابل واده تيار و. په ۱۹۱۹ع کال کښې

مې واده وشو. دپښتنو ودونه له رواجونو ډک وو ما دهغو اصلاح غوښتله
نو ځکه مې دځان نه شروع وکړه او دشریعت مطابق مې اول ډولۍ راوړه
په سباله مې ولیمه وکړه او یو وخت مې ښه ډوډۍ دکلي خلکو، دوستانو او
خپلوانو ته ورکړه. خلکو راته دښتنهاې په دود روپۍ راچولې خوما ونه منلې:
که څه هم په ډېرو زمونږ پورې دي. په ډوډۍ کښې مو درسم و رواج داصلاح
کولو په باره کښې تبادل خیال دخلکو سره وکړو. په هغه وخت کښې دا دود وچه
په واده کښې به ټولو کسبګروته واده ته راغلو مېلمنو پیسې ورکولې چا به آئینه
ښودو چا به سپېلني لوګی کولو، چا به ډول واهه چا به ګلونه راوړي وو، چا به
رباب کښې چاربیته ویله، په مېلمنو به یو لوټ مار ؤ که دچا زړه به و او که به
نه و خو دخپله شرمه به یې دا حساب کسبګروته اداکولو. زما په واده کښې د اول
ځل دپاره دا کار ونه مابند کړل او کسبګروته مې دا وویل چه تاسو به مېلمنو له
تکلیف نه ورکوئ ستاسو دټولو حق به زه ورکوم ولې چه تاسو زما کسبګرېئ
دغه شان ډمې به ګلې بدې مېلمنو به که دچا زړه و
او که نه و پیسې ورکولې.

سازیان به وو.

ځنجونه به وو

ټوپکي اوغر بینوونه

به خلاصیدل

لنډه داچه

ډېر فضول خرڅونه به وو . زما په وا ده کښې دا ټول ما بند کړل او
دا مې ددې دپاره وکړل چه د قام او ملک د پاره ډېر نقص دی او دا خلک
ترې تنګ و خوشحاله ددې د پېښېدو اخلاقي جرئت نه و . ما ددې
شیانو د مخنیوی ابتدا د خپل واده نه وکړه او خلکو ته مې هم وویل
چه تاسو هم دا بې ځایه رواجونه پرېږدئ .



# خلافت تحریک او هجرت

دخلافت کمیټي، جلسه په دهلي کښې

هجرت، مونږه په کابل کښې

باجوړ ته واپسي، دیر کښې اودخالونو

ملړ سه

په دې وخت کښې د ترکانو په ټول وطن د اتحاد یانو قبضه وه ، مصطفی کمال
د هغه ملګرو د دوی برخلاف جنګ شروع کړی و . په هندوستان کښې د خلا
د پاره مسلمانانو لویه ایجی ټیشن (تحریک) شروع کړی و ځای په ځای کې
جوړې کړې وې . جلسې او جلوسونه به کېدل ، د هندوستان مسلمانان
خلک وو . په جنګ کښې د ټولو نه زیات د پرنګیانو امداد دوی کړی و . د دوی
مشرانو ور له برقیه ورکړې وې ، ملایانو ، زبرګانو او مذهبي پیشوایانو د پرنګ
په طرفداری او د ترکو برخلاف فتوی ورکړې وې . خلافت دوی تباه کړ
که دوی دا فکر مخکښې کړی وای ، ډېره فایده به یې رسولې وه ، خو نشت نه دا
شته و .

## د هلی کښې د خلافت کمیټي جلسه :

د ۱۹۲۰ع کال په نیمائي د خلافت کمیټي له طرفه په دهلی کښې د یوې لوئ
اعلان وشو او ورسره د دې خبرې اعلان هم وشو چه هغه خلک به په دې جلس
شریکیږي چه کفن به یې په سر تړلې وي . زه هم په دې جلسه کښې شریک ش
ډېره لویه جلسه وه د هندوستان د هرې برخې مسلمانان ور له راغلي وو .
هندي یو جذباتي نوجوان هلک وهغه په جلسه کښې د هجرت ګولو تجویز وړاند

غالباً دا لفظ آفندي دے (عزیز هندي)

ول غوښتل داکترو مشرانو دا رایه نه وه . هغوی د پرپوه کړو چه اوس د دی تجویز
وړاندی کېدو موقع نه ده خو هغه منع نه شوا و خپل تجویز یې وړاندی کړو . مسلمانان
وی جذ باتی قام دی . دې ته یې ونه کتل چه ددې نتیجه به څه وي د وړاندی کېدو
یې تجویز پاس کړو . د هجرت خبر چه په ملک کښې خور شو ، پېښور ته ورو ورو
ی وړی قافلې رارواني شوې په پېښور کښې د دوی د امداد او ارام د پاره د
رت کمیټې جوړه شوه ، دا قافلې چه به له هندوستانه راتللې په سټېشنونو به یې خلکو
ر تاو ده استقبالونه کول او په پېښور کښې به یې جلوسونه وتل . پرنګیانو خو اول د
رت سخت مخالفت وکړو ځکه چه هغه خان د پاره دا یو خطرناک کار ګڼلو ولې چه پوه
چه خلک به هیڅ شان نه منع کېږی نو بیا یې دا کوښښ وچه څومره کېدی شی
موسوډ د یر خلک په هجرت لاړ شی . پښتانه خو د نورو خلکو په شان نه وو هغوی
دا تماشا لیده د یرا ترلي پرې وکړو . ملایانو به هم وعظونه کول چه هجرت فرض دی
چا هجرت ونه کړو ښځه یې طلاقېږی . دا سی حالت په ملک کښې پیدا شو چه بې له
رته بلې خبری او رېدو ته څوک تیار نه وو . د حکومت له خوا به هم قسم قسم اوازی خورېدلې
ښځی هجرت ته تیار شول .

## هجرت :

چه چا به هجرت نه کولو خلکو به ورته په بد نظر کتل . نو ما دیوی جلسی انتظام وکړو
ز په کلی کښې لویه جلسه جوړه شوه . ډیر خلک پکښې راجمع شوی وو . په جلسه کښې می
ی چه تاسو لږ صبر وکړی . زه به یو څو کسان کابل ته ولیږم چه هغوی مونږ ته ځیل
دیل حالات را دېری او مونږ په حالاتو خبر او پوه شو نو بیا به د هجرت په باره کښې

فیصله کوو. ما چه دا تجویز پیش کړو زمونږ د کلي عادلشاه پیر نومی یو پیر د هغه

مخالفت وکړو وې ویل چه مونږ خپلې ښځې کوږه کانو ته نه شو پرېښودلی که ت

هجرت ته تیار دنه یې مه څه خونو رمه منع کوه مونږ که خدای ته منظوره وی سبا د

روانیږو. اور په هندوستان کښې ولګېد او وسوځېد له پکښې پښتونخوا که

وه که کوزه تالا ولا شوه او کور ورونه روې نقصان وشو. خصوصاً چه د سنده د خلک

قافله چه د جونیجو صاحب په مشرۍ کښې پېښور ته راورسېده په پښتنو کښې اور د

نو، ښځې په هجرت روان شول. دې خلکو کښې پرنګیانو هم خپل ډېر مخبران ولېږل

هلته په مهاجرو کښې پراګنده وکړې چه دا خلک هلته پاتې نه شي او بېرته خپل ملک

واشي. هجرت هجرت نه و. یوه هنګامه وه، تش جذبات وو، هیڅ سوچ فکر نه

هجرت په اصل مطلب څوک پوه نه و، دا خو محمد علی او شوکت علی امان الله خان ته د

لیږلی و چه ته د هجرت د منلو اعلان وکړه چه په پرنګیانو باندې د دې خبرې اثر پریوځي

زمونږ د خلافت تحریک ته پکښې فایده ورسېږي.

اخوزه هم مجبور شوم د قوم په ملګرتیا د یوې وړوکې قافلې سره چه تقول خ

وو د شوقله او مومند و په لار پیاده افغانستان ته روان شو. اوله شپه موږ

راغله مونږ چه روان شو او د ول غرېږو نو ډېر خلک راسره وو، خو چه د شو

د کړپې په لار روانېدو او د ول سرنا رانه پاتې شو نو بیا ډېر کم خلک مونږ سر

ته ورسېدل او چه په کړپه کښې په مونږ په کانو لوتو شپه راغله نو بیخي

پاتې شو. خیر په کړپه کښې په تیږ وکښې مو شپه تېره کړه، سحر چه پاڅېدو

یو څو ملګرو سره د ترنګزو د حاجي صاحب لید لو ته د هغه ځای ته روان شوم ا

قافله د ماسل خان ځای ته روانه شوه . د حاجي صاحب د لیدلو نه پس مونږ هم
د ماسل خان ځای کو د اخیلو ته راغلو او په بله ورځ له هغه ځایه راروان شو د کامې
کرداو ته راغلو سردار خان د مومند وخان د خپل قام سره زمونږ مخې ته راغلی
و زمونږ یې ډیر ښه استقبال او کړو کلي ته یې بوتلو ، زمونږ یې ډیر دار مدار وکړو
سبا له جلال آباد ته روانیدو سردار خان مونږ ته ډیر وویل چه هلته پاتې شئ تاسو
مهاجر او مونږ انصار یو ، مونږ به د اخپل جایداد و نه تاسو سره نیم کړو . د کابل خلک ستاسو
دومره امداد نه کوي ، دا زمونږ خبره د ستاسو ته ښه ده . د هغه مو ډیره شکریه وکړه ، مونږ
ورته ویل چه مونږ خو ځمکو پسې نه وو راغلي نو د هغه نه را رخصت شو ، جلال آباد ته راغلو
په جلال اباد کښې سردار هاشم خان ګورنر و هغه سره مو ولیدل ، خبرې اترې مو سره
وشوې هغه زه د ځان سره په جلال اباد کښې پاتې کړم او نوره قافله رخصت شوه .
هاشم خان سره د مهاجرینو د دې لویو لویو قافلو ډیره سوداوه ، ډیر پریشانه و او
په دې کوښښ کښې و چه څه تدبیر وشي چه دا هجرت نور بند شي ځکه چه په افغانستان
کښې دومره خلک کله ځائیدای شی . د پرنګیانو هم ده ډیرو خلکو په هجرت کولو کښې
هدا مطلب و چه په افغانستان کښې به هم دوی ته د استوګنې مشکلات پیدا شي او
هم افغانستان ته خو ورځې وروسته هاشم خان کابل ته د زما د تللو بند وبست وکړو د
مونږ د جلال اباد نه کابل ته د خوګیانو د ګملې په لاره روان شو ، په ګندمک کښې
عادلشاه پیر د خپلو ښځو ، نرو ملګرو سره په مخه راغلل چه واپس وطن ته را روان وو
ما ورته ووې چه پیر صاحب دا ښځې مو بیرته کوره کانو ته روانې کړې ؟ ده راته وویل چه
نه وکړو هلته هم د ښځو له لاسه تنګ وو چه ځو ، هجرت وکړو او دلته هم ښځو تنګ کړو

چه په دې ملک کښې کوزاره کوانه ده بیرته یې روان کړی یو.

## مونږ کابل کښې :

مونږ چه کابل ته راورسېدو د لاهوری دروازی سره د یوې ونې ولاندې و
مهاجرینو دلته اړولي وو، مونږ هم د دوی سره یو ځای واړه ول زمونږ د پاره حکوم
ښه انتظام کړی و، خوزه د عامو مهاجرینو نه بېلېدم . په کابل کښې د ټول هندوس
د مهاجرینو یوه شپاړس کسیزه کمیټي وه چه زه او رضا خان ارباب هم د هغې ممبرا
وو. د دې کمیټي په ذریعه به د مهاجرینو ارتباط د افغانستان د حکومت سره و
څه وخت چه د مهاجرینو د قافلو تعداد شلو دیرشو زرو ته ورسېدو نو حکومت کمیټ
ویل چه افغانستان غریب او وړوکی ملک دی دا دومره خلک پکښې ځاییدې نشي
مهربانی وکړئ - دا هجرت بند کړی . نو مونږ عباس خان ولېږو چه دا خبره هلت
پېښور ته ورسوی. هغه تر جلال اباده پورې لاړ او دا خبر یې پېښور ته ورسولو.

امان الله خان مونږ ته وویل چه زه د پرنګي د جنګ زور نه لوم که تاسو د
په کومه طریقه جنګ کولای شئ او خپل ملک ازاده ولی شئ زه ستاسو مرسته ضرو ک
ځکه پرنګی تور مار دی، هیڅ اعتبار یې نشته چه زما خوا کښې پروت وی زه تر
په داډه زړه خوب نه شم کولی. دا وېره راسره وی چه اوس به مې خوری. هغه مونږ
دوه لارې مخکښې کړې ویل که نوکری کوئ مونږ به ستاسو ځوانان بهرتی کړو بیل
پلټنې به درته جوړې کړو تربیت به درکړو که بیا مو د انګریز سره جنګ کولی شو ویا
کړئ که ځمکې غواړئ نو په کندز او مزار شریف کښې مونږ ځمکې لرو هغه به در ک
تاسو خپله یوه کالونې جوړه کړئ او خپل انتظام په خپله ځان له وکړئ په کومه سیمه کښ

...مونږ يي تاسوته در کوو په هغې کښې به ټول واک اختيار ستاسو خپل وي او
... د بيرون حکومتونو سره تعلقات ساتئ هم ته ساتلی شئ. مهاجرينوته يي وويل
... که تاسو نوکري غواړئ هم اوکه ځمکې غواړئ هم اوکه تجارت غواړئ هم در سره
... ادکوم. مونږ به داغلو خپلو ملګرو سره به موسلا مشوره وکړه د ټولو مهاجرينو
اتفاق به مودا خبره غوره کړه چه لبس مونږ ته دې عسکرې ټريننګ راکړل شي
... برتی کېږو، مونږ به د پلټنو تشکيل هم جوړ کړو، مونږ به دا پاڅېد وچه دحکومت
... خبره فيصله کړو چه زمونږ د پاره انتظام وکړي، نود پرنګيانو مخبرانو ته چه
... هجرت کښې راغلي وو، موقع په لاس ورغله، يو مخبر به پکښې پاڅېد واو ويل به
چه مونږ خو په ځمکو پسې نه وو راغلي، نه نوکرو پسې راغلي وو، مونږ په جهاد پسې
... لي و وچه زمونږ د هجرت غرض نه ترسره کېږي او افغانستان د پرنګي سره
... نه کوي نو نور مونږ دلته څه کوو زه خو بېرته ځم. هغه پسې به يو بل مخبر پاڅېد
... به ووې چه بالکل ټيک خبره ده زه هم ځم چه دی به پاڅېد و يوه ډله به ورو
... پاڅېده، دغسې به په ډله کښې ماتي کړه شوه، يو کس به ما پسې رامنده کړه
... د حکومت سره خبرې مه کوه يو ځل راشه چه بېرته به راغلم، ټول به تللي وو.
... دوی ته دا خبره ورانده کړه چه راځئ چه دا ځمکې واخلو، او زه هم در سره ځم
... دوی دې ته هم تيار نه شول.

... څه رنګه چه لېښتانه په راتلو کښې ګړندي وو، دغسې په واپس تلو کښې هم ګړندي
... دغه شان ورو ورو مهاجرين بېرته ستنېدل د ډېرلږ کسان پاتې شو هغوی
... غانستان کښې استوګنه غوره کړه چانوکري واخيستې، چا ځمکې.

دغه شان هجرت ناکام شو د هندوستان مسلمانانو خصوصاً پښتنو
ددې هجرت ډېر تاوان ورسېده ، افغانستان ته يې هم نقصان ورشو.
امان الله خان په ورکولو پيسو پرنګيانو له همدې وخت نه ملا وترله فايده
يوازې انګرېزانو ته ورسېده.

زما خه ملګري تاشکند ته لاړل چه روس به مونږ سره د هند په ازادو
مرسته وکړي . زه په کابل کښې د يو څو ملګرو سره پاتې شوم . يوه ورځ زه د امان
خان ملاقات له تللې وم ډېرې خبرې مې ورسره وشوې ، په خبرو خبرو کښې مې ور
ووې . تا له ترکي درځي ، فارسي درځي او نورې ژبې هم درځي ، خو خپله ژبه نه درځي
خبرې په هغه باندې ډېر اثر وکړو او وعده يې راسره وکړه چه زه ده کوم به يې . کله
افغانستانه واپس تلل شو زه بمبئي ته د ده ليدلو ته ورغلم نو هلته يې ما سره پښتو
خبرې وکړې .

په کابل کښې زمونږ تعلقات د نادر خان او د ده د کورنۍ سره ډېر وو دى
وزير دفاع و او ورور يې سردار عبدالعزيز خان د معارف وزير و . يوه ورځ يې
څه ورشه د حبيبيې کالج وکوره . چه کالج ته ورغلم نو ديو جماعت له هلکانو نه مې
وکړو چه : « شما کيستيد ؟ » دوى به راته ووېل چه « افغان هستم » بيا به مې ورته ووې
ملک شما ؟ دوى به ووې : افغانستان . بيا مې ورته ووې : « د افغاني ميداني که افغان هست
به شو غرونږ به يې نه کاوه . نو ما به ورته او وئيل چه څنګه افغان يئ او څنګه د افغانستان
يئ چه خپله ژبه نه درځي . دغه شان مې محمود طرزي صاحب سره چه د افغانس
وزير خارجه او ډېر لايق او عالم سړى و په يوه لويه ميلمستيا چه ده د مهاجرينو د پار

ژبې بحث واغې یو سړی ورته پوښتنه وکړه داځنګه افغانستان دی چه افغانانو کښې
ســته. طوزی صاحب وویل چه پارسي هم زمونږ د ملک ژبه ده. نو ما ورته وویل چه
ژی صاحب پښتو خو د افغانستان ملي ژبه ده او د اکثریت ژبه ده، پښتوله دنیا کښې د
ریت ژبه هم سرکاري وی، هم دفتری، هم تعلیمی دی.

## باجوړته واپسی:

د مهاجرینو د تللو نه وروسته مونږ په یوسړای کښې یوه کوټه په کرایه ونیوله
ته به او سید و خوړو، څو ورځې پس زه نادرخان ته ورغلم ورته مې دوې د هجرت معامله
ی وړه شوه دلته خو نور زمونږ د مقصد د پاره څه نه کیږي. زما اراده ده چه د باجوړ
د و قبایلو ته لاړ شم او هلته د تعلیم کار شروع کړم او د پښتنو د بچو د روزلو د پاره
ی مدرسې جوړې کړم، ستا سلا ومشوره څه ده؟ هغه زما دا رایه خوښه کړه ما
ایې په دې خبره اتفاق وکړو. زه د یو څو ورځو پاتې ملګرو سره د کابل نه جلال اباد ته راغلم
جلال اباد کښې مې د هاشم خان سره هم سلا او مشوره وکړه، هغه هم زما د دې کار
په ډېر خوشحالی اتفاق وکړو او باجوړ ته یې زمونږ د تګ انتظام هم وکړ یو اس
اکو. موتږ او له شپې د جلال اباد نه سلام پور ته وروسته هلته مو د سلام پور د باچا
سره شپه تیره کړه، د سلام پور نه مو بله شپه د مومند و په علاقه کښې کابره پاڼ ته
سوله. د کابره پاڼ ملا صاحب ځای ته چه زمونږ پخوانی تعلقدار و لاړو له هغه
چمرکنډ ته لاړو په چمرکنډ کښې د هندوستان د مجاهدینو هغه ډله ډېره وه
سید احمد بریلوی صاحب او اسماعیل شهید صاحب د شهادت نه وروسته
ر ته تللی وو هلته یې مرکز نیولی و. دوی په بونیر کښې په دې خبره پوه شوی وو

چه د دوی امیر نعمت الله د پرنګیانو سره راز و باز لری نو خپل امیري وژلی و
دوه ډلې شو، یوه د پنجابیانو او بله د بنګالیانو. د پنجابیانو ډله چمرکنډ ته راغلی
په چمرکنډ کښې دوی بیکاره پراته وو او د هندوستان امداد ته یې سترګې نیولې و
دوی ډېر بې وار په وار نجوله او دې ته دوی مساوات وې هم دا د هندوستان امد
د دوی د تباهۍ باعث شو. قصه به یې وروسته په خپل ځای کښې راشي ماورته و
چه تاسو دوه کچرې لرئ او د مومندو په دې علاقه میوه دانه نشته د دې کنډ و
کونړ دی، هلته میوې ډېرې دي که تاسو په دې کچرو میوه راوړئ او دلته یې خ
ستاسو خرڅ به ترې ووځي او د هندوستان د امداد له احتیاجه به خلاص ش
د چمرکنډ نه کوټکي ته لاړو، د کوټکي خانان «یوځکو ورخان او بل زړه ور خان»
ډېر ښه سړي وو، او ښه پښتانه وو، چیرته چه به د پرنګي خلاف غزاوه دوی به پکښ
شریکېدل، د دوی سره مو خبرې وشوې. له دې ځایه بیا شینکرګل ته لاړو
شینکرګل مولانا امیرالدین زمونږ مهربان او قوم پرست سړی و. هلته
خلکو سره ولیدل بیا په سالارزو او ماموندو وګرځېدو.

دیر کښې د خالونو مدرسه:

د هغې نه پس د دیر علاقې ته لاړو خالونو مې کلي ته راغلو، د خالونو په کلي
اخونزادګان او پراچګان اباد دي دا دواړه کورنۍ ډېر روښنفکره او ښه خ
دي، دواړه قوم پرست او دولتمند وو، د دوی په مرسته مونږ دلته
مدرسه جوړه کړه او دوی ته مو وویل چه د دې مدرسې د انتظام د پاره
صاحب راوغواړئ او مونږ ترې دیر ته لاړو. د دې مدرسې ډېر زر ترقي

و په لږ موده کښې یې شاګردان څلور سوو ته ورسېدل د ملکنډ پولټیکل ایجنټ
ښتنو د بیدارۍ سخت مخالف وه هغه د دیر نواب وغوښت ورته یې وویل چه
ې ملا سوات تعلیم مونږ ته څو مره مشکلات پیدا کړل ته ځان ته دا مشکلات
ه پیدا کوه د املا سره ورانه کړه. د دیر نواب راغی ملا سره یې ورانه کسره
ورې یې ورته کړو.

مونږ چه دیر ته ورسېدو نو شاهو بابا د زوی سره چه د ترنګزو د حاجي
احب ماذون وه او په ترنګزو کښې مونږ سره اشنا شوی وه دیره مشوره ملته موږ څو
سپې وکړې یوه شپه د نواب صاحب استاذی صنفل رخان راغی راته یې وویل چه نواب
احب غوښتي یې ماوې اوس شپه ده ناوخته دې سبا به لاړ شو، هغه ووې چه
لا د شپې یې غوښتي یې، زه ورسره روان شوم چه ورغلو نواب صاحب زما په
نتظار کښې یوازې ناست وه هیڅوک ورسره نه وه په خبرو کښې یې راته وویل چه پټ په
ره کښې مې انګریز ډیر بلا ایشي ته چه څه غواړې زما هم دغه ارزو ده خو زه څه وکړم
یا ګلی (د سوات باچا) یې راته کښېنولې دې چه ایله حرکت وکړم دا بانډې راچوي
که سبا د قام او خلکو په مخکښې ما ستا د خبرو مخالفت وکړو چه ته خپه نه شې.
لاذ پره میینه او پته مرستنه به تا سره وې. سبا له چه خلک راغونډ شو خبرې وشوې
نواب صاحب د ناستې ځای ته نژدې په یوه بالاخانه کښې عبدالمتین خان او د تور
ان مې له ورایه ولیدل او له لیرې مو سلام علیک وکړل. د وي نواب بندیان کوي وو.
نواب د ځایه مونږ د شپې برول بانډې ته لاړو هغه وخت دلته د دیر د نواب ولیعهد
اوسېدو مونږ غوښتل چه هغه وګورو خو مونږ لید له هغه ځایه بارې ته لاړو ملته

مود « تاپتی » خان ولید . دی زموږ دکلي د غلام حیدر خان کلي ته د پیر دا تلو د
اشنا و هلته زما هم ور سره تعلق پیدا شوی و . هغه ته مو وویل چه موږ د نواب کشر ز
لیده غواړو هغه را ته دا خبره وکړه چه هغه خوا وس و یده دی ځکه چه د شپې و بینې
او خوګی کوي . زموږ د هغه سره هم لیدل ونه شو او بیا « تور » ته لاړو . د هغې نه پس
« جار » ته راغلو د « جار » خان د پښتنه سره و پخپله په کور کښې نه و د کلا دروازه
وتکوله وري راته بېرته کړو بی بی را ته د ډوډی انتظام وکړو . د جار خان زما د تر
د زوی سربلند خان سره ډېر تعلق و هغه به همیشه ما مند نا ډی ته راتلو او هغه سره
یې ډېرې ورځې تېرولې . سهار خار ته لاړو . د خار خان ډېر پوه ، بهادر او پښتنه پسند
سړی و . د هغه سره مو خو شپې وکړې . یوه ورځ زه بهر و تلی وم چه بېرته راغلم د خ
خان ته می وویل چه خان تاسو خو لا بیا هم زموږ نه پښتنه یې چه د قرآن نه خو څه فایده
هغه وې څنګه ؟ ما وې که عمل پرې نه کوئ بوساری خو پرې ساتئ . په هره بوساره ق
شایف پروت وي چه څوک ورته بوس پټ نه کړي تا سي خو پرې څوکیداری کوئ موږ ځ
پرې نه عمل وکړو او نه څوکی . له خاره موږ « ناوه ګی » ته لاړو ، د ناوه ګی خان ډېر پښتنه
و ، خوساده و ، له هغه ځایه « غازی اباد » ته لاړو ، د تونګزو حاجی صاحب سره مو ولید
دلته ما سره یو ملګری چه فقیر نو مېده او اصلاً تزکان و ، ما دلته غازی اباد کښې پرېښی
نور نو ل ملګری را نه په لاره کښې یو یو خپلو کورونو ته تللي وو موږ دواړه یې یوازې پرې
ایښي وو . زه خو د افغانستان نه په دې اراده راغلی وم چه دلته په ازادو قبایلو کښې
مدرسې جوړې کړم او د قوم تربیت وکړو . دا کار و نه خو یو سړی نشي کولی په دله کېږ
او زموږ هغه دله خوره شوې وه .

دافغانستان اوازادو قبايلو حالت چه مي وليد واو پنځلس کاله مي په هند
اوقبايلو او افغانستان کښي غرزي پرزي وکړي نو په دي نتيجه ورسيدم چه انق
دمنلاي کار او دومره اسان څيز نه دی. انقلاب دسړي مينی کار دی. انقلا
علم او پوهه غواړی، انقلاب عالمان او پوهان غواړی، چه د پوهي س
قام ورووزی او انقلاب ته يي اماده کړي دانقلاب دپاره داشخاص
دی. ته ګوره چه زمونږ جذباتي ملګري په څومره جوش راوتلي وو تول لا ر
خواره شول نو کښيناستم دځان سره مي ښه فکر وکړو په دي نتيجه ورسيا
چه زمونږ دقام نه دتجارت خواته توجه شته نه دصنعت خواته نه دزراعه
خواته او نه دتعليم خواته. دبلي خوانه په رسمونو، رواجونو کښي تر غوږه ډوبي دي دود
دي. په خانه جنګيو اخته دي داسي قام انقلاب نه شي کولی او داقام ددی بلاکا
خلاصولی په کار دي چه سياسي شعور پکښي پيدا شي او دا کار به په امنه ف
غواړی. تردغه وخته پوري زه په دي عقيده وم چه دا ټول کار د ونه انقلاب غو
تشدد داته دانقلاب نژدي او دکاميابي لار ښکاريده خو د تجربي نه وروس
داته معلومه شوه چه دجنګ په وخت کښي اسونه نه تياريږي نو ځکه مي ارا
وکړه چه خپل کلي ته واپس کيږم او دعدم تشدد داصولو په بنا به کار کوم ا

د انقلابي اشخاصو د تعلیم او تربیت د پاره قومي مدرسې جوړوم نو ځکه اتمانزو
داغلم. زه چه له هجرته بېرته راغلم د هغو مدرسو د بېرته جاري کولو کوښښ مې
ولو چه پرنګیانو د جنګ په زمانه کښې بندې کړې وې.

د ۱۹۲۰ع کال اخري میاشتي وې چه په علیګړ کښې په مسلم یونیورسټي
ښې څه تقریب وو. زه او زما دوست قاضي عطاؤالله خان هم بللي وو، مونږ
واړه علیګړ ته لاړو، په دې وختونو کښې به کانګرس او خلافت یو ځای جلسې کولې
مونږ خیال وچه د علیګړ نه وروسته به مونږ د خلافت په جلسه کښې شریکېږو
د مصروفیت له کبله د خلافت جلسې نه پاتې شو واپس کلي ته راغلو. په علیګړ
ښې زمونږ د صوبې د ډېرو هلکانو تعلیم کولو د هغوی سره مونږ تبادل خیالات وشو
دوي کښې ډېر داسې کسان وو چه د ترک موالات او حکومت سره د عدم
عاون د پروګرام لاندې یې کالج پرېښې و. په دې ورځو کښې زما مشر ورور ډاکټر
ن صاحب تقریباً پنځلس کاله پس د انګلینډ نه واپس راغی ده چه څه وخت
اکټري پاس کړې وه جنګ نښتې ؤ، په هماغه وخت کښې په فوځ کښې برتي
سوی ؤ او اوس کپتان ؤ او د مردان په کاټیډ کښې لګېدلی و.

## د اتمانزو آزاد سکول ۱۹۲۱ع او انجمن:

مونږ په ۱۹۲۱ع کال کښې د دوستانو په امداد په اتمانزو کښې د ازاد سکول
یاد کښېښوده چه په دې سکول کښې قاضي عطاؤالله، میا احمد شاه، حاجي.
عبدالغفار خان، محمد عباس خان، عبدالاکبر خان اکبر، تاج محمد خان
عبدالله شاه او خادم محمد اکبر زما ملګري وو. د مدرسې تر څنګه مونږ د پښتنو

دغلطو رسمونو او رواجونو د اصلاح کولو د تشدد نه د منع کولو او پکښې د قامولي د مين
او محبت د پيدا کولو په غرض د اصلاح الافاغنه په نامه يو انجمن جوړ کړو، د دې انجم
ممبران دا کسان وو : ۱- محمد عباس خان - ۲- صلاح عبد الغفار خان (د دواړه د اتمان
۳- حاجي محمد اکرم خان دخان ماڼۍ - ۴- جمعدار نور محمد خان د تنګزو - ۵- محم
خان د تنګزو - ۶- عبد الاکبر خان د عمرزو - ۷- غلام محي الدين خان د تنګي - ۸- فخر
مياصاحب - ۹- مياجعفرشاه د زيارت - ۱۰- فضل اکرم د نوي تلا - ۱۱- فضل ربي د بډ
۱۲- ميان احمد شاه د قاضي خيلو - ۱۳- مياعبدالله شاه - ۱۴- خادم محمد اکبر د چارس
۱۵- تاج محمد خان د چارسدې - ۱۶- مولانا شاررسول د امازو ګړۍ - ۱۷- شاد محمد
د ميرزو - ۱۸- شيربهادرخان د کوتوپاڼ - ۱۹- جليل خان د جليل - ۲۰- خوشحال خا
د باريکاب - ۲۱- شاپسند خان د چارغلي - ۲۲- امير ممتاز خان - ۲۳- بہبود محمد
د بنو - ۲۴- محمد رمضان د ديرو - ۲۵- حکيم عبد السلام د هري پور - ۲۶- مياه
د يکلي ۲۷- قاضي عطاؤالله د مردان - ۲۸- ثمين جانخان د محب بانډې - ۲۹- علي
خان وکيل د هزارې - ۳۰- افندي صاحب د ملاکنډ - ۳۱- يو ملکرې ډګله حمزه خان

زمونږ په سکول کښې استاذان کم وو، نو ما به پخپله هم هلکانو ته درس ورکو
بله داوه چه مونږ د وه سوه روپۍ نه لوړې چه استاذانو ته مو د بلې تنخواګانې ورکړې
په لاهور کښې د خلافت کانفرنس و، مونږ ورغلي وو د بنو د ميراخيل کلي امير مخ
هم دې کانفرنس ته راغلی و، د هغه سره مو ملاقات وشو، هغه چيل دوه زامن
اسلاميه کالج کښې لي په بي. اې کښې تعليم کولو او د ترک موالات په وجه لي پرېښې
زمونږ سکول ته د استاذۍ د پاره راوغښتل د مشر نوم امير ممتاز خان ؤ او د ک

نوم مقصود جان و . مقصود جان زمونږ دسکول اول هیډ ماسټر و اوکله چه دی
دوباره تعلیم دپاره کالج ته لاړ امیر ممتاز دده په ځای هیډ ماسټر شو. ډیر نکیانو
زمونږ ملګرو سره نه خوښیدل ځکه چه کوم استاذ به ورله راته نو اول به یې وویل وکړه په ډیره
به اونښو نو بیا به یې دډیرې تنخوا لالچ ورکړو او دغسې مونږ ته یې استاذان نه پیدا کول
مقصود جان چه اتمانزو ته راتلو نو پولیس ډیر کړولی ؤ په دې وخت نو کښې مونږ دخلکو
دپوهولو او یکښې دمینې محبت، ورورۍ او قامولۍ دپیدا کولو دتعلیم دشوق دپیدا کولو
او دقام نه دغلطو رسمونو او رواجونو دورکولو او دقامې ملګرو دپاره دمرستې جاصلولو
په غرض کلي په کلي، کور په کور دورې شروع کړې او په خلکو کښې مونږ ژوندا احساس
راپیدا کړ . زما د دورو نه پرنګې سره ویره پیدا شوه. سره هملته ګرانت زمونږ دصوبې
چیف کمشنر و، هغه زما باباخان ته وغوښت ورته یې وویل چه دا زوی دې څه کار ورته
کوی ؟ ته ول خلک غلي ناست دي او دی لګیا دی ملګري جوړوي او دورې کوی زمونږ
بر خلاف خلک لمسوی منع یې کړه ! دده سکرټر سعدالله خان دعمرزیو خان و. هغه
مې بابا ته ویلي وو چه ته کوره چیف کمشنر ستا څومره احترام کوی ؟ څومره چه ستا مني
هغومره دچانه مني ته دده دخوشالۍ دپاره خپل زوی منع کولی قلاری نه شي؛ بابا مې
راغی زه یې کښېنولم راته یې وویل چه زوی دې کار ونو نه لاس واخله ځان دې په مصیبت
اخته کړی دی؟ سرکار هم خپه کیږی چه نور څوک یې نه کوی ته یې څه کوی ؟ ما ورته وویل
چه ښه ده بابا چه ته وایې مه یې کوه نه به یې کوم دډیر دخلکو خو لمونځ پرلښې دی ،زه به
یې هم پرېږدم خو ته به بیا ما ته نه وایې چه لمونځ ولی نه کوې ؟ بابا مې راته وویل لمونځ
خو فرض دی ما ووی بابا دا علم خو هم فرض دی . بابا مې وویل ښه نو څه کوه او بیا

چیف کمشنر ته ودغی ورته یې وویل چه صاحب مونږ ستاسو ترخوشالی دپاره خپل دین نه شو پرېښودلی .

## دخلافت کمیټی صدارت :

په پېښور کښې دخلافت په کارکنانو کښې اختلاف پیدا شوی و ، دوه ډلې جوړې شوې وې یوه ورځ به دحاجی جانمحمد صاحب ملګرو په شاهی باغ کښې عام جلسه جوړه کړه ، په جلسه کښې به یې تجویز وړاندې کړ چه حاجی جانمحمد صاحب دخلافت کمیټی دصدارت دپاره ډېر موزون دی تاسو ته منظور دی خلکو به چغې کړې چه منظور دی . حاجی صاحب دقام او ملک دپاره ډېر خدمتونه کړي او قید یې هم تېر کړی وو . دپېښور بوسعید وو سبا له به دهغه ملګرو جلسه جوړه کړه او تجویز به یې مخکښې کړو چه سید صاحب اهل رسول دی او ډېر خدمتونه یې کړي دي دخلافت کمیټی دصدارت دپاره دده نه مناسب سړی نشته تاسو ته منظور دی ؟ خلکو به چغې کړې چه هو ! منظور دی .

دغه شان دا قصه روانه وه یوه ورځ به یو صدر و بله ورځ به بل صدر او ورځ په ورځ دا کشمکش زیاتېده په مینځ کښې هیڅ قسم جوړه نه کېده او دخلافت تحریک ته نقصان رسېده په یو سړی یې اتفاق نه برابرېده دپېښور دخلک دکار ډېر ټکر خلک وو خو دی اختلاف دکاره ایستلی وو او هغه رنګه چه په ډلو کښې اختلاف پیدا شی که ډېر ښه او زورور خلک وی هم بی کاره شی او دهغوی طاقت د بل په غورځولو کښې صرف شی . په خدمت کښې اختلاف نه راځی ، اختلاف دخودغرضی نه پیدا کیږی . زه چه به کله ناکله پېښور ته دخلافت دفتر ته ورغلم نو دواړه ډلو

را نه قصې کولی د دوا پو دلو ز ماسره مینه وه ما ته به بي ویل چه زمونږ د دوا پو دلو اتفاق په تا دائل شی را شه ته زمونږ دا صدارت واخله. زما په صدارت کښې څه د لچسپي نه وه د صدارت نو او عهد و شوقي نه وم د دی شیانو نه به لیرې تښتیدم اخر هغوی مجبور کړم او ما د هغوی صدارت په دې شرط ومنلو چه په صوبه سرحد کښې خو مره چنده تولیږې نو هغه به هم لته د دې ځای د خلکو په تعلیم لګیږي. پنجاب ته به بي نه لیږي. خکه په هغه وخت کښې به زمونږ په صوبه کښې به ز ګونو روپي تولیدې او پنجاب ته به تلې د پنجاب لیډرانو به پرې مزې کولې. هغوی دا شرط ومنلو او زه د خلافت کمیټي صدر شوم. عبدالقیوم خان سواتي بي سکرټري شو. مونږ چه د سکول له کاره فارغ شو نو ما او میا احمد شاه په ملک کښې دوره شروع کړه. پښتنو ته زراعت سپک کار ښکاریده و تجارت هم ورته سپک کار ښکاریده او ویل به بي دا د بنیا. بقال او هندو کار دی. د خان تعریف به دا و چه پره فلاني د پېرلوی خان دی د خیل پېتي بوله ورته معلومه نه ده. ما به وې هلکو تاسې فکر وکړئ دا خان دی که دا خردی چه خپل پېتي نه پیژني مونږ دیوی خوانه په دوره ګرځید و او د پښتنو د ذهنیت اصلاح مو کوله. د بلی خوانه مو خپلي متي را ونغښتي په خپل پېتي کښې به مو پخپله کار کولو. زما د تعلیم ملګری عبدالحلیم د هغه وخت د زراعت په محکمه کښې مقرر شوی و. د هغه په کمک ما یو د میوی باغ جوړ که. تر دغه وخته پوری سبزی او ترکاري له بنبا ره کلو ته راتلله ما چه باغ جوړ کړو سبزی او ترکاري به می هم کرله او خلکو ته به می ښودله چه ګوری د خپل لاس کار څو مره برکتي وني او تا سو خولئ ورته حیر شئ د پښتنو په خاوره کښې هر قسم میوه، ترکاري او غله کیږي. چه زراعت ته

دخلکو مخه شوه ما په اتمانزو کښی دکوږی منډه یی پوانسته نورو خانانو او نوبورا
به داپوری ملنډی وهلی چه ته کوده د بنیا گانو کاري شروع کړ. زمونږ تجارت دغ
وخت تول دهندوانو او پراچکانو په لاس کښی وه مسلمانان به په تجارت شرمیدل
زمونږ کټه وته به تول هندوانو او پراچکانو وره ما دچا دپیغورونو پروا نه کوله هر
میاشت به می یو ځل خانانو ته چای ورکړې راجمع به می کړل او ورته به می وویل چه
دځکی چه څومره قیمت دې مادهغی په لسمه برخه سرمایه په منډه یی کښی بنده کړې
ده تاته چه هغومره سرمایه په کال کښی کټه کوی ماته یی په میاشت کښی کوی بیا به
دمنډه یی حساب کتاب ورو ښودلو دا به می هم ورته ووې چه مونږ سرمایه په منډه یی کښی
منشیان، دروا یان او پانډیان هم کارکوی او ځان ته نفقه گټی او دا به می هم ورته ویل
چه وگوره دا تجارت څومره د ارام کار دی او څومره پکښی فایده هم ده، زمیندار
کښی څومره نا ارامی ده، دپټواری احتیاج دی، د تحصیلدار مټازی ده، تول
عمر مو اسمان ته سترگی نیولی دی، کله وایو چه خدایه باران وکړی او کله وایو چه
خدایه شین یی کړی. دوی به می دغه شان د تجارت په گټه پوه کول په لږه موده
د پښتنو تجارت ته میلان پیدا شو او زمونږ تجارت زمونږ په لاس راغی. پښتانه
د پیرښنه قام دی. دوی په افسانو او قصو دیر نه پوهیږی که هر څه کار چه په دوی کوی نو ځان ورته
کوره: چه ته روان شوې دوی هم در پسې روانیږی. په دې طریقه زمونږ په ملک کښی زراعتی او تجارتی ترقی
دې کوښښونو او عملي نمونو کړیلو په نتیجه کښی په خلکو کښی د زراعت او تجارت شوق زیات شو او د دوړه انقلا
راغی چه نن زمونږ علاقه کښی زراعت دومره مخکښی دی او تجارت دومره ترقی کړې ده چه د
دپیرمعمولی کسان او سرلوی کسان دي او لوی لوی زراعتی فارمونه، تجارتخانې او کارخانې یی جوړې کړې دي

# جیل او د جیلخانې قصه

## درېیکاله قید

دفعه چالیس کښې ګرفتاري ۱۹۲۱ع، د چمرکنډ مجاهدین، ډیره اسماعیل خان۔

جیل ته بدلي، د جیل بد معاشي، زما مشقت، جیل کښې پرې۔

جنبې، جیل کښې زما ګناه، ډیره غازي خان۔

جیل ته، د جیل ژوند، د پښتنو

په هکله غلط پراپیګنډه، زما د غاښونو مرض، سیاسي قیدیان۔

احتجاج لاهور جیل ته د علاج د پاره، د جیل سلوک، ډیره غازي خان ته واپسي،

د کورنه خط، مذهبي تعصب، بیا د علاج د پاره لاهور جیل ته، مطالعه

ډیره غازي خان جیل ته واپسي، د یو پیر صاحب قصه

د مور مرګ، د سیاسي قیدیانو جنګونه، میانوالي۔

جیل ته بدلي، رهایي

## دفعه ۴م کښنی گرفتاری:

د ۱۹۲۱ع کال د دسمبر په اوولسم تاریخ مونږ لکیا وو، په مدرسه کښنی مو دفت
میدان جوړولو چه پولیس راغی او زه یې په دفعه ۴۰ (اف - سی - آر) کښنی ونیولم او د
جیل ته یې بوتلم. د حوالات په ځای یې جیلخانه کښنی واچولم، زما د نیولو نه وروسته
زما نور ملگری هم نیولی وو. زه یې په هغه چکی کښنی بند کړم، چه هلته به یې د جیل
بد معاشان اچول، چه چکی ته ورننوتم سخا او گنده بوی می ترسپیږ. مو شو
چه کتل می د بولو دک ښانک پکښنی پروت وو. زه بېرته راووتم، د جیلخانې افس
می ووی چه دا چکی ډېره گنده ده. پاکه یې کړئ. هغه راته ووېل چه دا جیلخ
ده ننو ځه چکی ته. چکی ته ننوتم وریې راپسې بند کړو. شپه او ورځ به د
چکی کښنی وم ډوډی به یې هم په جنگله کښنی راکوله. صرف د جیلخانې بنگ
د چوړی، به د صفایي د پاره راغی نو مونږ ته به ورلوټی شو، او چه صفا
به یې وکړه نو ور به یې راپسې بند کړو. د صفایي په وخت کښنی به هم سپاهي
د چوړی په سر ولاړ و. په سبا راته معلومه شوه چه زمونږ نور ملگری هم
دی چکو کښنی بند دی په دې چکو کښنی مونږ لس کسان قیدیان وو. زه عبدالاکبر

اکبر ، عبدالقیوم خان سواتی موږ نه غیر نور او وه واره پېښور یان وو. عبدالاکبر خان
اکبر يې په دی تور نیولی وچه نه ملبشویک یې او دا باقی نور موږ خلافتیان وو. په
جیل کښې ظالانه رویې په وجه زموږ ملګو ضمانتونه ورکړل او دهاشول. عبدالاکبر
خان اکبر ته ما اجازه ورکړه چه ته خو خلافتی نه یې ته هم ضمانت ورکړه، یوازې ما او
عبدالقیوم خان سواتی د ضمانت ورکولو نه انکار وکړو او پاتې شو. چه دوی پوه
شو چه موږ ضمانت نه ورکوو نو لس ورځې پس یې نه دې چلی ر نه وایستلو
او د پېښې کمشنر ته یې مخکښې کړو. د پېښې کمشنر هم عجیبه سړې و او زما مقدمه
هم عجیبه غوندې وه. د پېښې کمشنر چه زما د جرم پوښتنه وکړه پولیس ورته
وویل چه ده خو پوهجرت کړی و او بل اوس از ادی ملخامی جوړ وی
د پېښې کمشنر ورته وویل چه پوځل یې هجرت کړی دی نو بیا مو ولې پرېښوده؟
ما ورته ووې چه د افسوس ځای دی چه ملک خو مو رانه واخیسته اوس
مو پخپل ملک کښې استوګنې ته نه پرېږدئ ، په دې باندې ( صاحب بهادر)
نور هم عصه شو پولیس ته یې وویل وی باسئ جیلخانې ته یې بوځئ. دری کاله
می قید کړو. پولیس را وستم او جیل والا و ته یې حواله کړم ، عبدالقیوم سواتی یې هم
زما غوندې دری کاله بامشقته قید کړی و. د جیل د خوراک قصه خو مې د رته
کړې ده. د جیلخانې داروغه امیر چند هندو و. بدې خو نه و دیانتدار و او
قام پرستو سره یې مینه وه ، په چکۍ کښې خرې واچولم خو مچین یې را باندې
او ره نه کړه او نه یې راته په پښو کښې بېړی ر واچولې، د جیلخانې نو ودی خوبې
راکوله خولږ به پاکه وه. زموږ د چکۍ مخه قطب ( شمال ) ته وه نمر کښې بالکل

نه لګېدو، ډېره سړه چکې وه، مالګې ډرې زړې کمبلې او یو تړپړی راکړی و چه پکښې ګوزاره ډېره ګرانه وه. ډېر سخت ساړه وو. یوه پوه ماه او بل بادانونه وو. او شپه، ورځ به په چکې کښې بند وو. خو زما خوش قسمتي دا وه چه زما په چکې کښې یو اخوروُ په هغې کښې بلالړ پرته وه. ما به تړپړی پکښې واچولو او په هغې به ځملاستم که څله به یو ښه جمعدار راغی نو د ورځې به یې دیوی ګنټې نیمې د پاره نمر ته ایستلو. د شپې به مونږ په ارام ویده کېدلی نه شوو لې چه ډرې ډرې ګنټې ودروستو به پېره بدلېده نو پېره دار به راغی جنډه به یې وکړنګوله بیا به یې چغه کړه چه بول بحالی (وابه ورو ره!) تو خو چه به دې اواز نه ووکړی نه به تلو او که اواز به دې لږ وروسته ورکړو نو سبا له به یې سزا درکوله. د جېل جامو قصه مې هم درته کړې ده چه ما ته یې کومې جامې راکړې وې کمیس مې د بلهاړ پورې نه رسېده او په مانځه کښې چه به په سجده پریوتم نو کمیس به مې پښتیو ته راورسېده او د پرتوګ پینځې به مې ایله د زنګانه سټوګی ته را رسېدې. د جېل والاوو دویه خود عذاب د ملایکو نه کم نه دې یو نیم پکښې چېر ته سم سړی پیدا شي.

په هغو ورځو کښې په جېلخانه کښې د خوراک څیز هم جرم د زمونږ د کلي یو نمبر دار یوه ورځ ما ته یوه چکې ګوره راکوله، ما د هغه نه نه اخیسته، هغه را ته په چکې کښې یوه چکې ګوره کېښوده دی لاړ لږ ساعت پس را ته پېره دار ووې چه جېلر صاحب راروان دی، د دې خبر په اورېدو ما سره د ګوړې فکر شو چه په دې څه وکړم؟ کله به مې وې چه د شړی لاندې یې پټه کړه کله به مې وې چه د تړپړی لاندې یې کړه بیا به سودا واخیستم چه ښه که دا تړپړی پوړ ته کړي؟ خیر خو هغه ګوره ما په دېړشوا خون پټه کړه

داروغه صاحب وانې تالاشي يي ونه کړه بېرته لاړ. هغو وختونو کښې به دقيديانو روزانه تالاشي کېدله چه داروغه لاړ ما هغه کوټه بله ګوزاره کړه او اراده مې وکړه چه جېلخانه کښې به دجېلخانې د اصولو پابندي کوم چه کوم کار پکښې منع وي هغه به نه کوم ځکه چه داخيز دسړي په زړه کښې وېره راولي. ماخېل سياسي قيديان وروڼه لدې چه داکارونه به يي کول نو دجېل والاوو به يي ډېر ي خوشامند ي کولې، او بډاي به يي هم ورکولې.

## دچمرکنډ مجاهدين:

ډاکټر صاحب اوځيني نور کسان زما ملاقات ته راغلي وو هغوي دحکومت پيغام راوړي وچه ملارسه دې چلوي خودورې دې نه کوې که دد ووړونه لاس اخلې مونږ يي پرېږدو خوما دحکومت دا شرط ونه منلو. په چکو کښې ما سره نور قيديان هم ووچه په هغو کښې دچمرکنډ مجاهدين هم وو. زه چه دکابل نه راتللم ما هغوي ته ډېر نصيحت کړي و دامې هم ورته ويلي ووچه سرحد اوپنجاب ته به نه ښکته کېږي. هغوي زما نصيحت ونه مانه دغه لي حال و زما دبندي کېد و نه مخکښې يې ډېر وهل او ټکول چه زه ورسره بندي شوم نو د وهلو، ټکولو نه خلاص شو. دامجاهدين چه په بونير کښې وو هلته پکښې اکثريت د بنګاليانو و دغه بنګاليان ډېر شريف او مينه ناک خلک وو ډېره ښه ګوزاره يي کوله او چه پکښې پنجابيان وو هغوي ډېر ډله باز خلک وو. دوي چه ورننوتل پېړي او جنبې لي پکښې جوړې کړلي: اخر يي خپل امير نعمت الله وواژه. د بونير خلکو له هغه ځايه راو شړل او چمرکنډ ته راغلل، دوي يو مشر مولوي فضل الهي ډېر پاڅلي بازاو خطرناک

سړی و ما په کابل کښې لیدلی و، ډېر نصیحت می ورته وکړ خو هغه د خپل
طبیعت نه مجبوره و او د دې پرو جنبو په وجه یې یو ډېر ښه کارکن، نیک او مخلص
سړی مولوی بشیر وژلی و. بیا وروسته چه پاکستان جوړ شو فضل الهی پنجاب ته
راغی زه هغه وخت په جیلخانې کښې وم. مولوی فضل الهی د حکومت په لمسه د حکومت
د خوشحالو د پاره ما پسې سختی پرو پاګنډې وکړې او ډېر د ساوغ یې و دیل
پولیسو دی له ځانه سره ملګری کړی و او چه مجاهدینو کښې به کوم د کار سړی
و پولیسو به ورته وویل هغه راوله. د دوی یو ملګری چه د قرآن شریف حافظ
هم و پولیس په لاس کښې اخیستی و. پولیسو به چه د کوم سړی د نیولو اراده کړه
ده ته به یې وښوده دی به ورپسې لاړ هغه به یې د چندې په بهانه سرحد ته راګوز
کړو او د پولیس په حواله به یې کړو. ما ته دې قیدیانو مجاهدینو وویل چه دی یې
اوس بیا زمونږ د یو ډېر لوی کارکن پسې لېږلی که د هغوی د خبرو لوخه نېد و بست
وشي. دا یې هم راته وویل چه په جیلخانه کښې یو مینډ دی او سبا بل سبا رها کیږي
که ته یوه چیټی ور کړې دده کود حمېر کنډه ته لنډ دی هغوی ته به یې ورسوي او زمونږ
نور ملګری به د دې مصیبت نه بچ شي. ما اول خو دی کار ته غاړه نه ایښوده
ځکه چه دا خو په جیلخانه کښې جرم دی خو چه فکر می وکړ چه دا خو دې خلکو ته لوی
مصیبت دی نو بیا می خط ولیکه او چه په سبا له به هغه مومند رها کیده په نو
بشپه می ورکړو. هغه چه رها کیده نو هغه کاغذ یې د خپل د یو دې سره دویږی غور ز ول
دی بیا هغه کاغذ اتفاقاً زمونږ د کلی نمبردار مومند لی دی هغه بیا به راوړ. ما هغه ته اوو
چه دا کاغذ چېرته وو هغه او وئیل چه زما پهره وه او ده یو دی سره می بیا موند

که داکاغذ حکومت ته په لاس ورغلی وی نو لس کاله قید و . زمونږ دهزاری یو ملکوی یې دغه شال په یوکاغذ لس کاله قید کړی وو .

زه په جیلخانه کښې وم چه دکوهاټ ځوتنه یې جیل ته راوستل یو یې تره او نورې ورېرونه وو دپرنګی او بناپیسته ځلمیان وو هغه یې هم زمونږ سره په دې چکوکښې بند کړل . دجیلخانې داقاعده ده چه سهار وختی ملازم راشی قید یا نوېښې ورلیږی کړی راوي باسی جاړوګانې یې په لاس کښې ورکړي ځای جاړو کوی . دوی به یې وختی سهار دپوما په میاشت کښې راوبنکل ، دوی چه به جاړو وهلو ته ميت شو یو پنجابی سپاهی وهغه به په کونه لته وکړه بوک به یې راوارول اوکنځل به یې ورته کول نوما ترې پوه ودځ پو بښتنه وکړه چه تاسو په څه کښې بندیان یئ دویل چه صاحب څه ووایو ما وي هر څه چه و ی ووایه راته دویل چه په « غول مه خوره » موجنګ کړی دی اوس دغه دی بندیان یو د شیطان لمسه ده اوپښتوه . ما ورته ووې چه هغه پښتو او شیطان موځان سره جیلخانی ته راوستی دی اوکه موخپل ورور عزیز دپاره هلته پرېښی ؟ کوم دا تورمخی سپاهی درسره څه سلوک کوي ؟ ده ته موهغه پښتو او شیطان نه لمسولی دخپل ورور عزیز هغه خبره زعمل به به وه اوکه دا ستومول ؟

نور سیاسی قیدیان د دیرهٔ اسماعیل خان جیل نه په چالان کښې راغلل ، یو ملک خدابخش وو او بل رمضان خان وو ، نور ورسره یو څو ملکوی وو . نور سیاسی قیدیان په بارک کښې وو اوزه یې په چکی کښې بندای کړی وم دهغوی سره یې یو ځای کیدو ته پرېښودم . عام قیدیان هم ترپوی هفتې پوری په چکی کښې بندوی ، بیایې ترنه راوباسی خوزه یې پکښې دوه میاشتی وساتلم .

سه د ده فیډ مګیلان زمانه وه . ده قیوم وزارت وو . او پاکستان جوړ شو
ده مونږ ته جیل کی ده سخا جوړ مړوکی به مونګ له راکوله څنګه او ده
ورسره ګډ نو دوا ده ده لاځی به سخا و . د عذر وټی ده در نوی



زیاته نشوه خوځه + +

## ډیره اسماعیل خان جیل ته بدلي :

دوه میاشتی پسی زه ډیرا اسماعیل خان ته چه د دوباره یانو جیلخانه ده بدلی کړم . د تللو په وخت کښ
راته بجیُ (زنولانی) ولګولی چه د ډیره جیل ته ورسیدم بیا یې هم رانه ونه ایستلی ، هلته یې چکی کښی بند کړم او
لری واله شل سیرُ دانی راوړی چه داوړه کړه ، خو دا ښه وه چه هغه چنجو هلی وې . نو او ړه ولو کښی یې تکلیف نه وو

## دجیلخانی قصه :

تاسو ته به یاد وی چه به «پښتون» کښی د جیلخانی په باره کښی یو مضمون
« دشلمی پیړی تهذیب او زه په جیلخانه کښی » تر عنوان لاندی شایع کیده لیکن زما
د بیا بیا ګرفتار ولو او ناوز کاری په وجه هغه مضمون سر ته د رسیدلی نه و په مینځ کښی پاتی
شوی و . چونکه زه اوس د هزاری باغ په جیلخانه کښی یم او ما سره څه کتاب د لوستلو
د پاره نشته څکه د کوم کتاب چه زه نوم اخلم نو حکومت دا جواب راکوی چه د دی اجازت
د لوستو تا ته نشته ، نو ما خیال وکه چه د دی وخت نه څه فایده اخیستل په کار دی
نو په دی وجه زه بیا هغه قصه هغی پسی د پوره کولو او سر ته د رسولو د پاره شروع کوم
او ورسره دا تجویز هم کوم چه د دی نوم به اینده د پاره « د جیلخانی قصه » وی ( ۱۵ - اکتوبر ۱۹۳۲ ع )

د دې جیلخانی حالت ډیر زیات خراب و قیدیان ، غریبان پکښی ډیر په کړاو
اخته وو ، د بلهو بازار پکښی ګرم و چا به چه پیسی لرلی د هغه به پکښی څه ګوزاره کیده
د بی پیسو بند یانو حال بد و ، عجیبه خبره داوه چه د دې جیلخانی یوازی داروغه
مشر نه و بلکه هر یو ملازم د لته کل اختیار و او هر چا به خپل حکم چلوو د داروغه
هیڅ رعب نه ؤ د هغه حکم چا نه مانه د دې وجه داوه چه داروغه یو بوډا ؤ په
پنشن روان و پیسی به یې اخیستی چه د نوکری په اخر عمر کښی پینځه پیسی پیدا کړی

بله داوه چه دی به انګریزی نه پوهېږه ، دی د سپاهی ګوری نه دا روغه شوی و
وسپرنټنډنټ د انګریزی نه بغیر په بله ژبه نه پوهېږه نو د جېلخانی کاروبار ورته نائب
اروغه ګنګارام مخکښی کاوه نو د نائب داروغه رعب په جېلخانه کښی د داروغه نه
یات و نو په دې وجه او د جېلخانی انتظام ګډ وډ و . زه چه یې په حکی کښی بند
رم نو یو څو تنه پېښور یان قیدیان ماته د اغلل را ته یې وویل چه مونږ به داروغه ته پیسی
رکړو چه تا د چکو نه را وباسی خو ما ورته وویل چه زه بلهای نه ورکوم ، چه بلهای ورکوم
ضمانت ولی نه ورکوم . زه خو قیدی نه یم ، زه ضمانت کښی قید یم .

د دې جېلخانی خوراک هم خراب و . هسی خو د ټولو جېلخانو خوراک خراب وی ځکه
په حکومت د ښی غلی د اخیستلو اجازه نه ورکوی خو د لته یکښی داروغه هم و هغه کوله
ئب داروغه او نورو هم پکښی کانه وا نه کوله . ما به خپله حکی ، اوده کوله . کومی چنهی چه به
دمیده کولو د پاره ماته را وړی هغه به ټولی چینجو خوړلی وې . د قسم د پاره به پکښی
وغه دانه موندی کېدی نه شوه پاکولی به یې نه هم ځکه چه پاکېدی نه شوی که پاکولی
لش بخوکی پاتی کېدلی دا د چنهو د دی قسم اوړه د وډی به یې پخوله هم نه ځکه چه وزن
کمېده په دی کښی به هم د قیدی غریب نه غلا کېده . دا ډوډی به په یو لاس کښی
ول کېده نه ځکه چه ټوکړی ټوکړی کېده او پریوته نو په د داړو لاسونو کښی به ذېی اخیسته
چری د چنهو ډوډی خوړلی نه وه په خوب کښی می لالیدلی نه وه بیا داسی ډوډی چه
یمی نه زیاته پکښی خاوره وې شغوند پری نشی وهلی . ما به په ډېر کو ښښ ایله
ه ټوکره وخوره اخر پری نا جوړه شوم ، د دال او ساګ به یې څه ذکر کوم . په جېلخانه کښی
خوړک نا جوړه شی هسپتال ته یې بیا یې خو زه سیاسی قیدی وم ، زما د پاره هسپتال

نه و، زما په نصیب دا یوه توره کوټه رسېدلې وه چه شپه او ورځ به پکښې یوازې پرو
وم. ډاکټر به راله دارو درمل راوړل او سپرنټنډنټ به مې په ورځ کښې یو ځل خبر اخیسته،
ورځې پس جوړ شوم. زه په دې جېلخانه کښې یوه نیمه میاشت پاتې شوم په دې یوه نیمه
کښې زما خلوښت پونډه وزن کم شو. غاښونه مې خراب شو، ورې مې وتښتېدې، و
به تورې جارې وې. د خراب خوراک او د سبزې د نشتوالي په وجه مې په ورېو پایوریا
ولګېده. د خراب خوراک په وجه په ټولو قیدیانو یو قسم مرض لګېدلی وچه هره ورځ به څه
پخه مړه کېدل چا یې پوښتنه هم نه کوله ځکه چه قیدیان د پرنګیانو په حکومت کښې انسان نه ګڼ
کېږي او د دې ګنګور غوندې سلوک ورسره کوي که د سړي سپي مړ شي څه نه څه هلته دي
ورسره ښکاره کړي لیکن د قیدیانو د خوار مړه د هیچا هلته دی نه وي. چه مرض زور شو نو د
سپرنټنډنټ سره فکر پیدا شو او د مرض د مخنیوي د پاره به یې کله ناکله دوه، دوه
پرنګیان هم مشورې له راغوښتل، لیکن مرض په مشورو نه کمېده او نه به چېرې کم شي،
ټول د خوراک د خرابوالي نه پیدا شوي او هغې خوا ته چا توجه نه کوله. توجه ورته چا کو
وای. "جېل والا"، کار خو ټول د دوي د بې دیانتۍ نه خراب و. سرکار چه کوم مع
خوراک د دوي د پاره منظور کړی و هغه به یې هم دې غریبانو له نه ورکول سپرنټنډ
هم عجیبه دې او بیا چه انګریز وی هغه خو بېخي ناخبره وي چه کوم طرف ته یې "جېل
بیا یې په پټو سترګو روان وی او بیا داسې سپرنټنډنټ لګه دا چه و. د قیدیانو او
خاص د پښتنو قیدیانو د سرټکو. سپرنټنډنټ ته پښتو ټکې نه ورتله حتی اردو هم
فش به یوه انګریزي پوهېده او پښتنو غریبانو له اردو نه ورتله پاتې خو انګریزي.
ورځ عجیبه قصه وشوه څوک چه جېلخانې ته تللي دي هغوی ته معلومه ده او چه څ

نه دي تللی هغوی ته به معلومه بشی چه دهرکل ( دوشنبی ) په ورځ سهار وختی قیدیان پچپلو بار کوټو کښی په لین کښېنوي سپرنټنډنټ او نور جېل والا پری کرځی صحت ، جامې ، صفایي او نور حالت یې ګوری که د چا عرض وي هغه هم اوری . په دغسی یوه موقع یو قیدی پاڅېدلی دی او د جېل والاو د لا سه شکایت کړی دی چه وهي مي ټکوی مې شرموی مې ، کنځي مې رشوت رانه غواړي زه غریب سړی یم زه روپۍ له کومه راوړم چه دوي ته یې ورکړم ؟ نو سپرنټنډنټ خپلی عملی ته وکتل چه څه وایي ؛ هغوی ورته وویل چه صاحب دی دغمو دوه دی غواړی اوکوره غواړی نو سپرنټنډنټ قیدی ته ووی « نونو » قیدی غریب بیاورته خپله قصه تېره کړه هغه بیا د خپلی عملی نه پوښتنه وکړه دوی بیاورته ووې چه صاحب کوره او غوږي غواړي نو سپرنټنډنټ قیدی ته لبنسته خوځوی او ورته « نونو » وایي . قیدی د ډېر کوښښ وکړو چه سپرنټنډنټ پخپل مطلب پوه کړي خو هغه پوه نه شو نو اخر یې حکم وکړو چه دا بد معاش دی ، بوځئ په چکی کښی یې بند کړئ هوسی رښکر کاته غوږ یې بایلود .

د سپرنټنډنټ د راتلو په ورځ سپرنټنډنټ په خصوصیت سره د ټټیو معاینه کوي نو په دغه ورځ د قیدیانو د ډېره بده دي د چا چه معده کمزوری وی هغوی ته ډېر کړاو وي ځکه چه یو ځل د ټټیو صفایي وشی تر څو چه یې معاینه شوی نه وي څوک پکښی نه پرېږدي چه پکښی کښېنی نو که په دغسی وخت کښی قیدی ته حاجت پېښ شی که جرئت ولری خود چا نه پوښتنه نه کوی منډه کړی ټټی ته ننوځی خودی لا ناست نه وي چه نمبر داري په خټ سور وي اوکه یې جرأته وي

یوځل دوه خواجازه وغواړی خو علاوه پر دی چه اجازه نه ورکوی ښه یې سپک هم کړی. ماپخپله د پر غریبانان لیدلي وی چه هرڅه تری پرتوک کښتی تللی دي ویل، ښه سکځل اوراښکل خو پرېږده دا هغه د بې شرمی ساعت وي چه خدای دی چا ته نه ښیي. انګریزانو چه مونږ له کوم قانون خو جوړکړی دی د ظاهرداری د پاره یې جوړ کړی دی او د نیا ته د دوکې د پاره. په دې قوانینو نه پخپله پرنګیان پابند دی او نه یې ملازمین.

زه چه څه وخت ناجوړه وم نو ماله به یې پې او وریجې د خوراک له پاره راکولی یوه هفته پس چه زه جوړ شوم او د هسپتال نه د سې چارج شوم (دوتم)، نو بیا زه وم او د جیلخانی هغه پخوانی خوراک خو د اکتر چه زما حالت او کمزوری تیا ته کتلی د هسپتال نمبردار ته یې حکم کړی وچه ده له هر ما ښام لږ قدری د هسپتال دېپوټه ورکوه. زه د ما ښام د لمانځه ورو سته وظیفه کوم په وظیفه ناست وم چه یو سړي راته اواز وکړو چه ورو سته می وکتل نو د کوټکی د جنګلې سره نمبردار ولاړ دی راته یې ووې چه بالټی دې راکړه چه پې می درته راوړی دی زه د خپلې کاړی نه راپاڅیدم او پوښتنه می تری وکړه چه داپې دې له کومه راوړی؟ هغه جواب راکړو چه بابو صاحب حکم کړی چه هر ما ښام څه قدری پې تاته راوړم ځکه چه ته کمزوری یې ما ورته ووې چه دا سرکاری مقرری شوي دي که د اکتر صاحب له خپله طرفه مهربانی کړی ده هغه ووې چه دا د بابو صاحب مهربانی ده ما ووې د اکتر صاحب له خپله کوټه راليږلی دی که د هسپتال نه یې راليږلی دی؟ ويې ویل چه د هسپتال نه ما ورته ووې چه ته خپه کېږه مه، د اکتر صاحب ته می هم ډیر ډیر سلام وایه او ورته وایه

ستاد دې ښېنې، محبت او مهربانۍ زه ډېر مشکور یم خو زه دا چه اخیستلی
نه شم. د دې خبرې په اوریدو نمبردار ډېر حیران شو او ویې ویل چه ولې؟ ماورته
وویل ځکه چه دا زما حق نه دی پردی حق دی او پردی حق خوړل خو حرام دي
هغه وویل چه دا څنګه پردی حق دی؟ ماورته وویل چه دا چې په هسپتال کښې د
کمزورو او مریضانو د پاره مقرر شوی دی، د هر مریض برخه مقرره ده، زما
د پاره مقرره برخه نشته نو ته به یاد دې په ځای د نورو مریضانو په پیو کښې اوبه
لهوی چه د پیو اندازه پوره کړی یا به د هر مریض نه یو یو کوټ کموې دا د اداره
طریقې ښې نه دي. نمبردار چه دا واوریدل غلی شو او لاړ. یوه ورځ دا نړۍ صاحب
راغی او ما ته یې وویل چه ورځ په ورځ کمزوری کیږې پس د دې ستا د دوډۍ
انتظام زه کوم زما له طرفه به زما له کوره تا ته دوډۍ راځي، ما د هغه ډېره شکریه
ادا کړه او ... اخبره مې ورسره ونه منله ما هغه ته وویل ستا دوډۍ زما خپله دوډۍ
ه خو که سبا ته د دې جیل نه بدل شي یا زه بدل شم نو بیا به څوک د ښې دوډۍ
انتظام راته کوي؟ خو زه یم او دا د جیل دوډۍ به وی او س خولا ښه دی ورسره
ولېږ اموخته شوی یم او بله دا چه هغه کار چه سړی یې په ښکاره نه شي کولی او
ت یې کوي، سړی کمزوری کوی او د خپلو اصولو نه یې باسی او په سړی کښې وېره
ردلی پیدا کوي نو ما ورته ووې چه زه ستا د مهربانۍ قدر کوم خو دا څیز و نه زما
عملی مقصد ته نقصان رسوي. نو معافي غواړم په جیلخانه کښې په دغسې کارونو
سړی ډېر کمزوری کیږي څومره چه یو سړی خپل خواهشات او ضروریات کمولی
ی هغومره به آرام او خوشحاله وي هیچا ته به محتاج نه وي، دغه شان یو ځل دا ...

صاحب راغی او ماچکی او وړوله نو هغه ماته او وئیل چه دا چکی مه اوړوه په دې جیلخا
کښنې دوه ویشت سوه قیدیان دي، زه به خدای له څه جواب ورکوم چه دا یو سیاسي
قیدي چه زما په لاره روان وو په هغه دې هم چکی (میچن) او وړوله، ما ورته او وئیل چ
دغه مخانځ چکې کښنې دغه قیدي ته ورکوه، دې دقتل داکو مجرم دي. په دې کښنې
جیل ته راغلی دي او دلته د داسې ناپاک مقصد د پاره چکی اوړوي، او زه چه په دوه
نیک مقصد راغلی یم نو زه دې نه اوړوم. چه داروغه صاحب پوه شو چه دې خرچکي او
وي نو بله ورځ یې ماله اوړه راولیږل او لیږل اولوږي غونډي داني هم ورسره وي، او ویې ویل
چه صیب (سپرنټنډنټ) راځي نو دا اوړه وه. ما ورته وویل چه زه داسې نه کوم که صیب
زما نه تپوس وکړي چه تا له څه درکوي نو زه دروغ نه وایم نو زه به وایم اوړه. دد
جواب کښنې را ته جمعدار وویل چه بیا خو به زه مات شم. ما ورته وویل چه ځکه خو درته
وایم چه دا مه راکوه او بله داچه دا دسړي زړه کښنې وپره پیدا کوي.

## دجیل بد معاشي:

د دې جیلخانې اخلاقي حالت د هر پرپوتي و نه د هلک، نه د ځوان، او نه د بو
عزت پکښنې ساتلی و. هر سړی به په ویره کښنې و ځکه چا چه به ګنګارام او د چکې جمعد
راضي کړل په هر چا چه به یې هر څه زړه غوښتل هغه به یې پرې کول. زما په مخکښ
ځینو کسانو پرې په دوه روپۍ خپل دښمنان شهولی دي په دوه روپۍ یې هلکان
شپې تېرولو د پاره خپلو کوټو ته بیولي دي حال داچه د جیل په قانون کښنې د هلکانو
سړو سره یوځای بندول منع دي. ما یوه ورځ داروغه صیب ته او وئیل چه ته خوس
يي. د هر نیک سړي یې، بانګونه وایي او امامت هم کوي، لیکن ستا په جیلخانه کښنې دبنګ

دبچو عزت محفوظ نه دی ، او زه چه په پېښور جېل کښې وم ، هلته دا دروغ هند و دی
لیکن هلته د ښځو د بچو عزت محفوظ ؤ . په دې جېلخانه کښې ما پخپلو سترګو داسې
واقعات لیدلی دی چه لیکل یې شرم ښکاري . شراب و کباب به پکښې عام وو . د پېسو
والاو پکښې بزې چرچې وې او څه چه به یې غوښتل هغه به یې کول چا سره چه به پېسې
نه وې د هغوی د حاله خبر مه شئ ، د و هلو ټکولو او شرمولو نه علاوه چېرته به چه
سخت کار هغه به یې په دوی کولو جېل والاو د پېسو حصولو لو د پاره عجیبه عجیبه
طریقې جوړې کړې وې یوه ورځ یو ښو ځي راغی ما ته یې وې چه زه کلي ته چهټی لېږم
راته ولیکه زما ورته ووې چه چهټی د څه د پاره لېږې زړه غونی شو وېلی دیل چه پلار
ته چهټی الیکم ، ما ته معلومه ده چه زما پلار غریب دی هغه سره څه نشته خو زما
ښځه والا هغه دې خرڅه کړي ما ته دې روپۍ راولېږي . زه ورته په قار شوم ما
وې نه شرمېږې نه چه دا خبره کوې هغه راته ووې چه خانه ته څه خبر یې زه چه جېل ته
راغلم او په چکۍ کښې یې بند کړم شل سیره دانې یې راکړې چه دا اوړه کړه هغه ما
ښې اوړه کړې چه جمعدار راغی وېل یې دا خو دل دي را ایسار یې کړم او تر هغه یې
وهلم چه دی را باندې ستړی شو هره ورځ راته وایي چه پېسې راوړه که نه تول
عمر به دې دا حال وي زه دومره نامرده نه یم چه مشقت نه شم کولی هر کار چه
را وسپارې په ډېره ښه طریقه یې کوم خو دوی د پېسو د پاره څه نه څه بهانه کړي په
وهلو وهلو یې راته سر ګنجی کړو د جېلخانې تول سخت کار ونه زما په نصیب دی
سره د دې هره ورځ وهل خورم اوس راته وایي چه صاحب ته دې پیش کوو او
په بېتونو دې وهو داد بېتونو وهل راته شرم ښکاري ځکه تا ته راغلم چه پلار ته می

خط ولیکه که خه داشی او ددې بلانه خلاص شم . دېر کسان جبل والا وو د پیسو د پاره په دی طریقه مره کړی دی داکوم کسان چه له جیلخانو نه تښتي يا بد معاش شي د دې وجه هم دا د جیل والا وو سلوک دی چه دې کار و نو ته تیار شي . په جیل کښې د دوه دلومړي وي يو د پیسه دار او بل د بد معاشانو . بله دا چه د قیدی د خوراک حال هغه وی چه مخکښې مې د ر ته بیان کړو او کار يې د غوایانو په شان کوي کولو کان ( د تیلو کانی ) ارټ ، هیچن او نور د پر داسی سخت کارونه چه د انسان د توان او شان مناسب نه وی پرې کوي . خو مره ذلت او سپکاوی چه ما په جیلخانو کښې لیدلی دی زه په دعوه سره ویلی شم چه داسی سلوک به په دنیا کښې هیڅ وحشی نه وحشی قوم خدای د مخلوق سره کړی نه وي .

قانون . قانون نشته د هر یرنګی او حاکم چه خه زړه وی هغه کوی او ددې ته قانون وایی ، نور ملکو نه یو قانون لري . زمونږ په ملک کښې د یرنګی د پاره بېل قانون و او د ډیپي د پاره بیل د سرکاری ملازم د پاره بېل قانون و او د رعیت د پاره بېل د مالدار د پاره بېل قانون و او د غریب د پاره بېل . د انګریزانو قانونت داسی دی لکه د موموپوزه چه په کومه خوایی اړوی ، هغه خوا اوړی .

په یوه وړوکی کوټنۍ کښې د شپې ورځې د تنهایي قید په وجه زما وزن ورو ورو کمېد و او صحت مې خرابېد وچه اخر جیل والا مجبور شول چه ددی پردہ نشینۍ نه لږ ژوند ه مې را وباسی . یوه ورځ سپرنټنډنټ صاحب راغی او راته یې وویل چه اینده ته په کارخانه کښې د ورځې کار کوه او د شپې دې خپلې کوټنۍ کښې اوده کېږه امید دی چه د ځانه د و بیستلو د پاره به دی هم د پر زر انتظام وکرم .

## زما مشقت :

د دې پردہ نشينئ ( کوټه قلفئ ) نه چه راووتم کارخانې ته ئې بوتلم دا يوه لويه
کارخانه وه په سوونو قيديانو به پکښې کارکولو او قسم قسم څيزونه پکښې جوړيدل
زما کار لفافې ( پاکټونه ) جوړول وو خو ما به وورسره دکډې کار هم کولو ځکه چه زما
ورسره شوق و او دامې خيال وچه سړې ته يو کسب زده کول په کار دې چه ځان ته پرې
معمولى نفقه گټلې شي او د احتياجه خلاص وي زما استاذ د بنو يو ملک و د پير شريف
او بنه سړې و، بنه خوړونه او شرافت پرې ختم و او پچپل کار کښې هم د پير ماهر ؤ ماسره
ې د پير زيار راليسته، په څو ورځو کښې خامتا او د بورد دارې توليئ ( رومالونه ) او دل
زده کول که چيرې زه د دې جيلخانې نه بدل شوې نه واى او پکښې پاتې شوې واى
نو ما به په دې کار کښې مهارت حاصل کړې واى . زه چه څه وخت د دې جيل نه
بدل شوم نو زما په زړه کښې لس دا يو ارمان پاتې شو چه دا کسب را نه نيمگړې پاتې
شو او کمال ته مې ونه رسولو .

زما بل استاذ د بها درکلي يو ملا صاحب وچه دلفافو سکښتلو او جوړ ولو چل
ې راته ښودلې ؤ ، دې هم د پير ښه سړې و . کله کله به ئې په کارخانه کښې گوپي پخولو
يوه ورځ ئې گوپي باندې کړې وسپين تيتلنه نت داغى ، په کارخانه کښې بوې و ، د پير ئې اخوا
دې خوا وکتل خو بالتهې ئې پيدا نه کړو چه سپين تيتلنه نت لاړو گوپي تول سوزېدلې واستانې
ې د پير خپه شو خو څه ئې کولې شول ؛

ورو ورو د جيلخانې د خلکو تلل راتلل راسره پيدا شو او په لږو ورځو کښې
راسره د پير کسان بلد شول . په جيلخانه کښې هر قسم خلک موندې شي که بلد کسان

پکښې وي نو د پړښه کسان هم پکښې وي بلکه اکثر يې ښه خلک وي، که جېل والا يې
خراب نه کړي. زه د خپلې تنهايي قيد په وجه هم پوه شوم، جېل والا تل دا کوښښ
کوي چه سياسي قيديان د اخلاقي قيديانو نه بېل وساتي ځکه چه د دوی سره دا وېره
وي چه سياسي قيديان زموږ د بد عملۍ نه خبر نه شي او ملبه دا چه اخلاقي قيديان پوه
نه کړي ځکه که دوی پوه شي بيا خود جېل والا و ودکان سړېږي. په دې جېلخانه کښې د
رشوت بازار ډېر تود و او په رشوت هر شی کېدی شو د ساده او خوش باوره پښتنو
د حصولي يوه ذريعه نه وه، دی چالاکو جېل والا وود روپو راټولولو د پاره قسم قسم ذريعې
او طريقې را ايستلي وې په ټولو کښې ذليله او مکروه طريقه ديو شريف او عزتمند سړي
بې عزته کول وو لس روپۍ به دې چه ګنګارام له ورکړي چه څوک به دې خوښ و هغه به
يې پرې شرمولی شو. يو سړي به ګنګارام له ورغی لس روپۍ به يې ګنګارام ته په کوټو کښې ورکړې
او ورته به يې وويل چه فلانی شرمول غواړم هغه به روپۍ په جيب کښې واچولې او د
يو څو نمبردارو سره به راروان شو هغه سړي ته به يې څه بهانه جوړه کړه او نمبردار
ته به يې حکم وکړو چه پرتوګ يې ونه وباسه، د غه شان به يې هغه خوار بې عزته کړو
د روپو ګټلو دا طريقه ډېره کامیابه وه ځکه چه نن به تا زه په ګنګارام بې عزته کړې
سبا به ما کور ته چېټهي ليږله او روپۍ به مې را غوښتي يا به مې ملاقات غوښتی
بيا به ما ګنګارام ته روپۍ ورکړې او د خپل بدل اخيستو په غرض به مې ته
پرې بې عزته کړې. کله کله به په دې د پښتنو په مينځ کښې جنګونه هم کېدل.

## جېل کښې پرې جنبې:

د بد قسمتۍ نه په دې جېل کښې د پښتنو په مينځ کښې پرې او جنبې وې

او دوه ډلې وې یوه ډله د پېښور و او بله د کوهاټ، بنو او ډېره والو وه، د دې ډل بازیو نه به هم جېل والا وو هم ناجایزه فایده اخیسته او په معمولي خبره به یې دواړو ته اشتعال ورکولو او په کور کښې به یې جنګول، د جنګ نه پس به یوه عجیبه تماشه جوړه شوه، هغه کسان چه څه بود به پرې کېده هغه به یې په چکو کښې بند کړل پېرې به یې پرې ودرول چه یو د بل له حاله خبر نه شي او تنګ دا تنګ به یې پرې بند کړو هسې نه چه څوک یې له حاله باهر خبر و نه لېږي. دلالان به یې ورپسې کړل په ورځ کښې به یو ځل دوه ورتلل او قسم قسم خبرې به یې ورته کولې او هر یو یې ویرولو چه بس مقدمه په تا جوړه ده یا به پهانسي کېږې او که نه عمري خو شوې. د ډېر قیدیان در باندې دلیدلو شهادت ورکوي فلاني مړ شو د فلاني هم حالت ښه نه دی مړګوني دی که څه کوې شي دا دې وخت دی که نه لاړې غرق و ډوب شوې. په قیدي غریب به هیبت راغی کورته به یې خپلو خپلوانو ته تار ورکړو چه هلې روپۍ راوړئ د چا خپلوان چه به زر راغلل او روپۍ به یې راوړې که هر څومره به ګنهګار و هغه به خلاص شو لیکن خواره خواري د هغه چا وه چه پیسې به یې نه لرلې، اکثر به د پیسو ګنهګار خلاص شو او بې ګناه، بې پیسو کسان به چالان شول. څومره به چه زه د جېلخانې د حاله خبرېدم هومره به مې د پښتنو مظلومانو په حال زړه بدېدو. ما به شپه او ورځ دا فکر کولو چه د دوی د بچ کولو د پاره کومه لاره او طریقه اختیار کړم اخر مې د ځان سره دا فیصله وکړه چه د دې دواړو ډلو مشران لیدل په کار دي او دا کوښښ په کار دی چه د هغوی سره خبرې وکړم او هغوی د دې بدو کارونو او د هغو د نتایجو نه خبردار کړم.

زما دا ابتدا نه دا عقیده وه چه پښتون د ډېر ښه قام دی د ډېر زړېي اصلاح
کېدی شی په شرط ددی چه څوک یي پوه کړی. دا ئن چه دی په داسې بد حال کښې
دی ددی وجه دا ده چه څوک یي غم نه خوری او نه یي پوهوی. په دی جېلخانه کښې
درانیز و یو بوډا کاکا و نوم یي نصیر و. هغه زه یوه ورځ چایو ته و بللم زه ددی
قسم دعوتونو طرف دار نه یم ځکه چه سړی کمزوری کوی لیکن د هغه د سپینې ږیری
له خاطره ما دده بلنه و منله دی هم په دې کارخانه کښې و. د دیوالو نو اروپه کار
ښه پوهېده زه یي پخپله کارخانه کښې وګرځولم او خپل کسب او هنر یي راته وښوده
چه په لیدو یي زه حیران شوم ما ورته ووې چه کاکا افسوس دی چه مونږ پښتانه
د بل د پاره ځنګه ښه ښه کارونه کوو خو ځان له هیڅ نه کوو د اکوم کسب او هنر چه
تازه کړی دی که چېری یي بهر هم جاری وساتی نو ډېره فایده به تاته او قام ته
ورسوی هغه ما سره وعده وکړه چه بهر به یي هم جاری وساتم اخو کله چه ۱۹۲۹ ع
کال کښې زه د رانیز و په دوره تللی وم کا کا می ولیده و چه کار یي لا شروع کړی نه دی
په دې کښې چای راغله چای مو وڅکله. زه د دوی بې باکۍ ته حیران وم ورو غونډی
می نصیر کاکا ته ووېل تا سو چه ښکاره د اکارونه کوئ د جېل والا دو نه ډېرېږئ نه
نو هغه په خندا شو راته یي ووې چه خانه ته لا نوی یي د جېلخانې په حالت خبر دار
نه یي په جېلخانه کښې چه پیسې ورکوې څه چه دې زړه غواړی هغه کولی شی زه
خو غریب سړی یم چا ته پیسې ورکولی نه شم دا ته چه څه وینې دا د جېل والا دو مهربانی
ده چه سږ کال یي ماته د نسوار او تماکو ټیکه راکړې ده زما کوزاره هم پرې کېږی
دوی ته هم څه ورکوم او زما ددې ورونو هم را سره وخت تېرېږی. زه ددې خبری

اوریدو حیران شوم او ورته می وویل چه کاکا ! جیلخانه او تهیکه داری ؟
ـه راته وویل چه دلته دهر څیز تهیکه داری وی او داتهیکي هر کال باقاعده
لیږ ی او ټولی پری کیږي . دلته د ګوړو ، غوړو ، وریجو ، تماکو ، نګزارو ، پیو ، غوښو
وروشیانو د پاره بیله بیله تهیکه ده . دچای څکلونه وروسته ماهغوی سره د
ستنو په بی اتفاقی خبری وکړې ، دپرو جنبو او جنګونو نقصان می ورو ښود ه .
وی پوه شول چه بی شکه داډېر خراب کارونه دي ماورته ووې چه خراب دي
اسوله په کار دي چه خپل نور پښتانه وروڼه پری پوه کړئ او ددې کارونه لې
ـع کړئ . زه چه تری راوخصتیدلم ماته یې دګزارو او تماکو ستور وښوده ماته
یو ډډی ته یو ځای وښوده چه دلته څه شی شته که نه ؟ هلته هیڅ نه معلومیده
ره ځمکه وه هغه ځای یی لږ وکنستلو یو بړغولی راڅرګند شو لاندی تری لویه چاټی
په چاټی کښی د ګزارو قسم قسم پوډری وې د دوه انو نه تراتو انو پوری به لې
ـولې . ماورو وزو پخپله کارخانه کښی کارشروع کړو او هرپښتون سره چه به می
ـات کیده و ضرور به می دپرو جنبو ذکر ورسره کولو . د څو مره کسانو سره چه ما داخبره
ده په هغوی کښی یو هم داسی نه و چه ددې خبری اثر ورباندې نه کیده و هغوی
ورو داخبری محسوسولې او یکښی خوریدلې . یوه ورځ د بنو یو خان چه ماسره
ـې کارخانه کښی وزه یې میلمه کړم او یو لوی بنانک شیره یې راله بخه کړه په جیلخانه
ـي د بنو والو شیره ډېره خوښه وه او ګران میلمه ته به یې پخوله ماسره یې څو کسان
ـم میلمانه کړی وو ، داکسان راته اکثر د رسوخ خاوندان او د ډېلی د سرهمهري
ـبدل ، د ډوډی خوړلو نه پس ما هغوی ته وویل چه زه تاسو سره یو ضروری

خبره کول غواړم چه ښه شان یې واورئ او چه څه درته مناسب ښکاري هغه جوا
به راکړئ. ما ورته وویل زه چه له کوم وخته دې جېلخانې ته راغلی یم او ما ته کوم حالا
معلوم شوي دي نو زه په دې نتیجه رسېدلی یم چه دلته د پښتنو ډېر بد حال دی د
قسم ظلمونو او رشوت نه علاوه د یو پښتون عزت محفوظ نه دی، ما اورېدلي دي چه
پښتون د بل د شهولو د پاره جېل والا له بډې ورکوي او جېل والا د پښتون پرې شه
لیکن دا هم اورم چه سبا هغه پښتون بیا د بل اخیستلو د پاره همدا کار کوي او دا سلسله
د ډېرې مودې دلته جاري ده تاسو ورته لږ ښه غور شئ په دې کار کښې زمونږ د د
او اخرت څومره زیان دی؟ که جېل والا دا کار و نه کوي خود خپلو بډو او پیسو د پاره کو
او که ته یې پکښې ده او زمونږ خو پکښې سراسر زیان دی، مالونه را نه لاړل، عزت را
لاړ نو ته زما په بې عزتۍ مال ورکوې سبا زه ستا په بې عزتۍ مال ورکوم، په دې طر
په یو پښتون یو دی هم حیا پاتې نه شوه. بله خبره چه ما ته معلومه شوې ده دلته پښت
په دوه ډلو تقسیم شوي دي، یوه ډله د پېښوریانو او مردان والا وو ده او بله ډله د
تهیانو، بنو والو او ډیره والو ده. او اکثر په وړو وړو خبرو په خپلو کښې جنګونه کوي او
جنګونه یې په هلکانو وي. زه به تاسو ته یوه خبره وکړم که فکر مو ورته وکړو او زده
پر یو ته مونږ او تاسو به د دې ذلت نه خلاص شو مونږ ټول پښتانه یو قام او یو
یو د یو بابا اولاد یو، زمونږ عزت او ذلت یو دی. که چېرې مونږ د رسول الله ص
علیه وسلم په دې حدیث عمل وکړو: «چه په ځان دې څه پېرزو نه وې په بل یې هم
پېرزو کوه». نو ډېر زر به کامیاب شو. مونږ چه د جېل پښتون ورور سره د هر
اراده وکړه په کار دی چه د لږ ساعت د پاره په هغې غور وکړو او جېل کړیوان کښې وک

ری دا کار بل څوک ماسره وکړی نو زه به پرې خوشحاله شم که خپه؟ که چېرې زه پرې
شحالېږم نو هغه کار کول په کار دی او که زه پرې خپه کېږم نو په کار دی چه د هغه کار
نږ و نه کړو. بلکه دا چه مونږ پښتنو کښې که یو سړی بد کار و کړی نو په دې وجه د هغه
رتیا په کار نه ده چه دی پېښور ی دی یا بنو وال دی، یا کوهاټی دی، یا ډېره وال
، او زما د علاقې دی. د بد کارو او بد چلند و خلکو ملګرتیا نه ده په کار که په ځان
ونږ ورور هم وی ځکه چه د دی د لاسه قوم او سوسایټی ته نقصان رسېږی او
خلک تمام تباه کوی.

مونږ ته په کار دی چه همېشه د حق او ښو خلکو ملګرتیا وکړو که په مونږ کښې یو سړی
کار وکړی مونږ ټولو له په کار دی چه د خپلې ورورولۍ او عزیز ولۍ نه یې و باسو که هغه
وال وی، که پېښوری وی، که کوهاټی وی، که ډېره وال وی، که مونږ په رښتیا په
لاره روان شو نو زر به هغه کسان چه په بد ولاړ و روان دي او د چا له لاسه چه پښتانه
ی مصیبت اخته دی د خپلو بد وکارونو نه به واوړي. دا چه پښتانه په بد ولاړ
ن دی د دې وجه دا ده چه مونږ د ښو او بد و فرق نه کوو او نه څوک شته چه د ښو
بدو په فرق موپوه کړی. یو بد عمله سړی چه وینی چه زما په بد عملی کښې ملا تړ کېږی
هغه به ولې د خپلې بد عملۍ نه لاس اخلی او که مونږ د ښو بد و فرق وکړو او لکه چه
ماخوستن په لمانځه کښې د خدای سره دعا کوو چه: «وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ»
څوک چه ستا نافرمانی کوی مونږ به هغوی پرېږدو کوز کلی به ور سره نه کوو. که دا دعا
ای کړو پښتون به یکدم بدل شی. نو مونږ ته په کار دي چه په دې خبر و هر پښتون
رو او دا خبرې د هر پښتون غوږ ته ورسوو. په دې مو دعا د خیر وکړه او د یو بل

نه رخصت شو.

په دی مینځ کښی بنو خیو د مردان دیو هلک په سر ګنکارام ته یللی ورکړی
او هغه یی بی عزته کړی و، په دی خبره پښتوریان ډیر خپه شول او جرګه یی وکړه چه
خپله بدل اخلو او د جنګ د پاره یی ورځ مقرره کړه چه خبر شوم ور غلم منت زا
می ورته وکړی چه مونږ ته دا کار کول نه دی په کار. په ډیرو خوا ردمی هغوی له
منع کړل هغه هلک له می هم ډیر تسلی ورکړه او په کور کښی مو دا فیصله وکړه چه په
جیل کښی خو پوښتنه نشته او سپینږ ټتله نت د دی خبری پوښتنه نه کوی، ښه به د
چه په انګریزی کښی یو درخواست ولیکلی شی او د ګنکارام په سر ډیپټی کمشنر ته شکا
وشی. درخواست تیاره او ډیپټی کمشنر ته ورکړی شو، لیکن د پرنګی په حکومت کښی
مظلوم د پاره انصاف نشته، بلکه داچه داسی واقعات پیدا شی نو بیا پرنګیان پر
دخپلی محکمی د بد نامی له خاطره پرده اچوی د انصاف فکر لا نه شی او په اتفاق س
دخپلی محکمی د صفایی کوښښونه او تجویزونه شروع کړی او س هم داحال د
حقیقت دادی چه پرنګیان خود لته په دی ملک کښی د اصلاح ترقی او انصاف
د پاره نه دي راغلی دوی خو دلته تباهی او بربادی د پاره راغلی دی ولی
په ټولو محکمو کښی د وړوکی نه تر لوی پوری ټول افسران غله او بلوی خواره د
بی د بلو او ډالی نه پری څه کار کیږی نه شی. دا ټولی خبری پرنګیانو ته ښی معل
وی. معلومی څه پخپله یکښی شریک وو نو اصلاح به یی څنګه کیدی شي؟

ګنکارام ته چه څه وخت دا معلومه شوه چه دی خوښتانه په سمه لار
روانوي او زما د کانداری کښی فرق راولي نو فوراً یی زما په سر سپینږ ټتله نت

حکایت وکړو او زما برخلاف یې لویه قصه له ځانه جوړه کړه او زه یې بیا په
سپړنتهلنټ په هغه توره او تنګه کوټنۍ کښې واچولم . د ماشوله لاسه می خوب
ی نه شو د اسې څه ښیز راسره نه وچه ځان پکښې د ماشونه پټ کړم کمبل راسره
خو کمبل په ګرمۍ کښې اغوستل ګران کاروي . دشپې به همیشه تیاره کښې کښېناستم
څېلم ، دلوم دچیچلو وېره به راسره وه دشپې به مې د روند په شان پنهه را
خیسته دې خوا اخوا به مې وهله سحر چه به راپاڅېلم یو دوه لومان به مړه
نه وو ، قید یان غریبانان خدای پاک پخپل فضل له دې بلا کانو نه ساتی .

## جیل کښې زما ګناه :

سبا وختی سپړنتهلنټ داروغه اوګنکا رام د ننه زما چکی ته راننوتل
سپرنتهلنټ سترګی بدلې وی او دخبری نه یې داسې معلومېده چه سړی ډېر په
ردی په لاس کښې یې یو لویه پرپره وه هغه یې ماته واوروله بیا یې راته وویل
د جیلخانې په قانون کښې داسخت جرمونه دې زه ستا برخلاف مقدمه چلول
ارم ، زما برخلاف یې دا الزامونه لګولي وو .

ته یو سخت باغی یې او په جیلخانه کښې بغاوت کوې ، ته دجیل ملازمانو ته
یغ کوې چه سرکاری ملازمت کفر دی ، ستا ددې تبلیغ په وجه ددې چکو جمعدار
متعفا ورکړې ده ، ته به قید یانو کښې پراپګنډه کوی او په جیلخانه کښې د بغاوت
وکو ښښښ کوې .

ددې خبرو په اورېدو ما هغه له جواب ورکړو چه د مقدمې په باره کښې
هیڅ نه وایم تاته چه څه مناسب او انصاف ښکاری هغه وکړه لیکن داخبري

چه چانانه رسولي دي رښتیا نه دی بلکه بالکل غلطي دی. زه دا خبره منم
یو جمعدار زما په وینا استعفا ورکړې ده، لیکن دا معامله داسې نه ده څنګه
در رسول شوې ده. درسته خبره داده چه یوه شپه دغه جمعدار په ما
پېړه وه هغه ما سره په خبرو خبرو کښې داووېل چه زه بال بچ دار یم او
تنخوا لږه ده ګوزاره مې پوره نه کېږي، کله نا کله قیدیان په خپله خوښه لې زما
نه څه نه څه راکوي، زور زیاتي پوره نه کوم د اسلام په موجب د دې پیسو اخی
څنګه دي؟ ما ورته ووې چه دا پیسې روا نه دي ځکه چه هغوی تلانه حاجتمند
رضا او رغبت خو به هله وی چه بهر وي او تا ته لي حاجت نه وي بیا یې تا له د
ښه به داوی چه په دی خپله تنخوا ګوزاره وکړې. ده راته ووې چه په تنخ
مې ګوزاره نه کېږي نو ما ورته بیا ووې چه د نوکرۍ په ځای څه روزګار شروع
شاید چه په هغې کښې دې ګوزاره روانه شي که زما او س هم څوک دغه شان پو
وکړي، زه به دغه جواب ورکوم پاتې شول نور الزامونه بالکل بې بنیاده دي بې
ما قیدیانو ته تبلیغ کړې دی لیکن ددې د پاره نه چه د جېل د قانون خلاف و
وکړي یادې بغاوت وکړي بلکه ما هغوی تل مجبور کړي دی چه جګړه او فساد
مه کوئ خپل مشقت کوئ او چا له رشوت مه ورکوئ هر کله چه دا خبرې س
جېل دا افسرانو په جیبونو کښې فرق او امدني کښې کموالی راولی نوزه باغي یم او
سړی نه یم بیا مې ورته ووېل دا جېلخانه په یوه ډېر خراب حالت کښې ده هیڅ
نه يي او نه خبر بدې شي که خبر هم شي ته يې اصلاح نه شي کولي ته په هغه بله ش
په ګشت راغلي وې په یو بارک کښې مشورې ته ودرغلې، ته پوه شوې چه دا شورې

نه چه دوی هرڅه ویلي وی ویلي به یې وی خو هغه شود په شرابو او کبابو بوه. په دې
جېلخانه کښې د غریبانو بده ورځ ده د دولتمند ومزې دي. په دې جېل کښې د هیڅا
عزت محفوظ نه دی کوم رشوت خواره او بد چلنده افسران چه زه ستا په جېلخانه
کښې وینم ما په بله جېلخانه کښې لیدلي نه دي. زما په دې خبرو سړی لږ غونډې
یخ شو سترګې یې پرانستې شوې او ما ته یې ووې نن به داوی چه ما ته لیکلې جواب
واکړې او بیا باهرته زوان شو ما لیکلې بیان ورولېږو. وبیا وروسته معلومه شوه
چه ګنګارام دغیره یې خپلې بنګلې ته غوښتي وو او ښه یې دباو کړي وو، چه تاسو به
ما باندې یو بې ګناه سړی په جېلې کښې بند کړو. لیکن باوجود د دې علم نه یې زه د جېله
نه وننه ښکلم ځکه چه هغوی به ده دباو کړي وو چه که دی له جېلې نه بهر کړو نو به پرسټنهڅ
کښې به فرق راشي د دې جېلخانې نظام به ګډوډ شي. د پرسټنهڅ په نوم چه دې څه
زره غواړي هغه به پرنګیانو کولې شي ځکه چه په داسې وخت کښې دوی په ظلم او
انصاف کښې هیڅ تمیز نه کوی.

زما په جېلې کښې د بند بند ونه چه څه وخت نور قیدیان خبر شول نو یو اشتعال
پکښې پیدا شو. په مایې سختنه پیره لګولې وه خو ما به قیدیانو له جواب ورلېږلو چه
پام وکړئ ځکه چه ما ته خو معلومه ده چه هیڅ بې هڅه به قیدیانو څومره ظلمونه
کېږي هسې نه چه څه بانه یې هم کوتوله ورشي نو بیا دې یې خدای مل شي. په دې
جېلخانه کښې یو خو هندوستانې فوجي افسران او سپایان وو چه د خپلو ښو خیالاتو
په وجه قید شوي وو یو په څه چل ما ته ځان را ورسولو او را ته یې وویل چه مونږ فیصله
کړې ده چه د دوی د نه خوړلو هړتال وکړو لیکن ستا نه اجازت غواړو ما د هغوی

شکریه اداکړه او ددې کارنه مې منع کړل ځکه چه زه د جېلخانې د ایجی ټیشن برخلا
وم . په دې ورځو کښې د نوښار د بابو سلطان محمد زما پوښتنې ته راغلی و او زما د ملا
درخواست یې ورکړی و خو دغه درخواست منظور نه شو او ما سره یې ملاقات ته یو
نه ښود و . ملاقات زما حق وخو جېل والاؤ د واقعاتو د پټ ساتلو په غرض د ملاقات ا
نه وه ورکړې . چه سیاسي قید یا نو سړه د اسلوک کېږي د نورو د ېې خدای مل
شي . د سیاسي قیدي له حاله بهر څوک نه شي خبرېدلی ، د اخلاقي قیدي
حاله به څه خبر شي ؟ هر څه چه ورسره کولی شي په اورکښې د سوز ولو یې
خو زه په خپله خبریم د انګریز انصاف او تهذیب که څوک کوري نو جېلخانو ته
دې لاړ شي چونکه زما صحت خراب و بله ورځ سپرنټنډنټ ما ته راغلی ز
یې وکتلم او زما په تکټ یې ولیکل چه یوه ګینټه یې سهار او یوه ګینټه یې ما
له چکي نه وباسئ او د تازه هوا اخیستلو د پاره یې بهر کړه ځوئ . د تسپې
ورځې تنهایي قید نه بیا مې کله کله زړه ډېر تنګ شو او چه خپله بې ګناهي به را
شوه نو به ډېر په قار شوم لیکن بیا به مې زړه له تسلي ورکړه . د قام او ملک د
خدمت د پاره خلکو قسم قسم تکلیفونه وچت کړي دي او د خدای یوا
او تور ینګ دی د خدای کار و نه تول د خیر دي ما له صبر کول په کار دي ځکه
چه خدای د صبر ناکو ملګري دی اخر به یې نتیجه په خیر وي تول عمر به داکړا و
نه وي اخر به راحت راشي .

## ډیره غازي خان جېل :

یوه ورځ سهار وختي سپرنټنډنټ په تا دی زما چکي ته راننوت راته

ې ووې چه ته ما د دې جېل نه بدل کړې بهر پولیس ستاد بېولو د پاره ولاړ دی
ځان سمبال کړه. زما څه سمبالی وه یو قرآن شریف وه هغه می غاړې کښې واچولو او
روان شوم. چه د جېلخانې دروازې ته ور سېدم پولیس راته په لاسونو کښې اتکړې
واچولې په پښو کښې خومې بېړې. او په غاړه کښې می د اوسپنې کړۍ او له پخوانه موجودې
ډې بهر موټر د سنګین چړاو سپاهیانو په مېنځ کښې ولاړ و. پولیس کپتان زه یو
پښتون تانېدار ته په حواله کړم او پخپله رانه پاتې شو. تانه دار زه په ټانګه کښې سور
کړم په ټانګه کښې دننه چه څومره پولیس ځائېدې شول، هغه یې دننه کښېنول او چه
دننه نه ځائېدل هغه یې بهر د ډول او مونږ روان شو، مونږ چه څه وخت د دریاخان
ته ورسېدو د ریل رانه تللې وه ستېشن ماسټر ووې چه نیمه ګېنټه مې ریل هتاسو
د پاره لېټ کړو خو تاسو راونه رسېدئ مانور نه شو لیټ کولې ددې په وجه په
تانه دار صاحب ډېره وېره او هیبت راغی خو څه یې کولی شول، زمونږ دننه
چه داده چه د ابا سینډ اوبه ډاګرځه له کبله ډېرې شوې وې پل یې شلولې
هغه یې جوړېدو ډېر ساعت تېر شوی و. زمونږ په ستېشن کښې شپه شوه
نه چه په دې لاین په شپه اوروز کښې یو ګاډې ځی او راځی.

تانه دار صاحب فوراً په وېټنګ روم (انتظار خانه) کښې بند کړم او په بله
ره یې را باندې ولګوله حال دا دی که چا د دریاخان ستېشن لیدلی وی
به ورته معلومه وی چه په یوه د بنتر بیابان کښې پروت دی هلته خلک
ورته وو چه ماته راغلی وای بله دا چه زه چا پېژندم؟ خو پولیس ډېر احتیاط
و. ددې ځای نه چه په څه فاصله یو پیر صاحب اوسېدو زمانه خبر شوی و.

ماسره يي يوځل په ډيره اسماعيل خان کښې ملاقات شوی ؤ. دی زما ليد وا
داغی شايد چه د ده ليده کاته هم ماسره شوی نه وای خو ده يو ډېر ډهونبياد
کارکړی وچه ځان سره يي يوه ډکه توکوره داوړې وه چه پکښې قسم قسم او ډېر
ميټهياني وې چه زړه تېنګول ورته ګران و. چه سپاهيانو دا ميټهياني وليد لې نو
سره ډهغه ملاقات وشو او سره سم مشغول شو. دتللو په وخت کښې پير صاح
ماته ډډوډی ست وکړو ليکن ما ورته ووې چه ستاشکريه داوخت ستاس
ډډوډی ډپاره موزون نه دی زه سرکاري ميلمه يم پير صاحب په خندا شو
خوشالی سره رخصت شو. ماښام شو ليکن زه پوليس والا وود کوټهی نه بهر نه کو
او نه يي زما دلاسونو اتکړی وښکلې. ماته ډډې نه په جيلخانه کښې ارام
ولې چه هلته خومی لاسونه خلاص وو دلته می لاسونه تړلي وو. تانه دار صاحب
خبرو ډېر تکړه وخو دعمل نه و په خبرو خبرو کښې به يي ځان قومی سړی ښو
ليکن ويل به يي چه زه څه وکړم کپتان صاحب داسره خپل منشی راليږلی د
چه زه ستاسره څه مهرباني ونه کړم خو منشی دتللو نه پس هم ډده په رو
کښې ما څه فرق ونه ليدو.

تانه دار صاحب ما په رموز رموز کښې ډېر پوه کړ چه اوس تياره شو
هيڅوک نشته لږ به بهر وګرځو تازه هوا به واخلو تولله ورځ په ناسته تنګ ش
يم ليکن دهغه غوږ په دې خبرو نه ګرځيده، زه مجبور شوم چه پوه يي کړم چه د
په وجه زما صحت خراب شوی دی د ډاکټر داهدايت دی چه زه يوه ګينټه
سهار او يوه ګينټه ماز يګر په تازه هوا کښې وګرځم او ته اوس ما د دې ګو

بصورته و باسي که زما صحت ته څه نقصان ورسيږي و دغه ذمه وار به ته يې. ددې خبرې پېړه تانه دار صاحب څه اثر وشو او سپاهيانو له يې حکم ورکړو چه بهرې وباسئ او په پليټ فارم يې وکرځوئ.

د پرنګيانو او دهغوی د نوکرانو دا خصلت دی چه تر کومې دې ورته نېغه خبره نه ده کړې په غوږ يې نه لګي. دخوب وخت شوی ده شوم په خوب کښې هم پوليس والاو زما د لاس نه اتکړی ونه وليستې خو دومره يې وکړل چه د دوا پرو. لاسونو نه يې يو لاس ته کړی او څنځير يې کټ پورې وتړلو. خوب مې ارام ونه کړی شو چه ريل راغی څو کسه پوليسان مخکښې ورغلي وو او يوه کوټه يې زمونږ د پاره خالي کړې وه زمونږ پکښې سواره شو او ريل روان شو. زه نه پوهيږم چه کومې جيلخانې ته مې بيايي پوليس والا وو دا خبره زما نه پېره پټه ساتله نه پوهيږم چه ولې؟ ما هم زيږ پرو دا نه کوله ما وې څکه نن نه وی نو سبا به معلومه شي چه ما چېرته بيايي. زمونږ کاډی چه به هر سټېشن ته ورسيږي و پوليسانو به زما د کوټې ور اوکړکۍ بندې کړې او دوه کسه توپک والا به بهر دوره خوړلې ته وو دريږل څوک به يې نژدې نه راپرېښودل. دا دوی ددې د پياره کول چه ما څوک ونه وينې او دا نه خبر نه شي چه زه يې چېرته بوتلم خو ددوی دا طريقه غلطه وه څکه خلکو به د پوليسو سنګينونه او توپک وليدل که فکر به يې نه وهم به يې فکر شو او سود به يې شوه راتلل به چه وګوری چه څه چل دی او په دغه شان به په هر سټېشن کښې د پر خلک زما د کوټې نه ګيرچاپېر راجمع کېدل ما چه کومه پراپېګنډه هېچېرې نه شوه کولی حکومت پخپله نا پوهې راته پخپله وکړه. زمونږ کاډی اخر د غازي. ګات پسټېشن و دريږو دريل پټلۍ د دی نه مخکښې نه ده تللې مونږ د ريل

نه کوزشو . په سټیشن راته یو جمعدار او دوه پولیس سپاهیان ولاړ وو چه مونږ یې ولیدلو راغلل او د پولیس والاوو نه یې زما پوښتنه وکړه معلومه دا شوه چه هغوی زما د اخیستو ( تسلیمی ) د پاره راغلي وو . سپاهیانو ته یې وویل چه انګریزې وس نه لیږي کړي هغوی زما د لاسونو نه انګړی وښکلې او دوی ته یې په حواله کړم. مونږ مسلمان پښتون تانه دار صاحب ته چه نادرخان یې نوم وا وپه د یکایت مشهور و زمونږ نه په څه وجه وروسته پاتې شوی وُ چه راغی او ویې لیدل چه زما په لاسونو کښې انګړی نښته نو وار خطایی پرې راغله او ویې وې چه دده نه انګړې چ وپستلی دي هغه جمعدار چه یو هندو و ورته یې وویل چه زه د پیړه غازی خان د سرکار له طرفه دده د پاره مقرر شوی یم دی اوس زما ذمه واری کښې دی دا زما باور دی چه داسی خلک تښتی نه دوی خو پخپله خوښه او رضا جیل ته راغلي دي څه د اکو خونه دی د دې دومره پولیسو ، توبکو او سنګینونو څه ضرورت وما ورته وو چه داسره حکومت دخپل رعب او داب قایمولو د پاره راسره کړي دی. تانه دار صاحب لږ غوندې بچه شو لیکن د سرکار عجیبه نوکران دي د هغوی غوږ په د خبرو نه ګوږیږی مونږ لا دا خبرې کولې چه په دې کښې یو هندو راغی په لاس کښې د پیو دک ګیلاس و راسپد وسره یې ماته ونیوه. زما دځکلو ارا ده نه وه خود هغ سره مینی او اخلاص زه د هغو سپو په څکلو مجبور کړم: رښتیا خبره داده چه د هند او مسلمان سوال خو پرنګی او غرضیانو خلکو راپیدا کړي دی که هند وسره په ښت د هند واو مسلمان سره د مسلمان غم وی نو نن به زمونږ د ملک او قام دا حالت نه وای . زما چه څومره یاد دی او تجربې می ده نو ما سره یو هند و ملا نام د یو مسلما

ملازم نه تل ښه سلوک کړی دی . دغه وخت زه یوه شوم چه زه یې د ډیره غازي خان جیل ته را بدل کړی یم .. مونږ د سټیشن نه را روان شو او د ډیره غازي خان د تللونیت موو کړو ، ډیره غازي خان د اباسیند نه دولس میله لیرې دی ، د لته یکې چلیږی هغه قسم یکې چه پخوا به زمونږ ملک کښې چلیدې ، مونږ یوه یکه کرایه کړه او په ډېر کو ښښ ایله په دې ګنټو کښې جیلخانې ته ورسید و . چه څه وخت مونږ ته د جیلخانې د دروازه ښکاره شوه نو جمعدار صاحب ما ته داووې که چیرې ته خفه کیږې نه نو اوس به مونږ تا ته انکړې واچو . ولې چه جیلخانه راغله ما وې ستا د امهربانی او شریفانه سلوک به زما هیر نه شی او لاسونه مې ور ته ونیول انکړې یې را ته واچولې . زمونږ یکه (ګاډی) د دروازی سره ودریده مونږ کوز شو د کوزیدو سره د جیلخانی د دروازی کړکۍ لیری شوه مونږ ورننوتو او د ورننوتو سره دروازه راپسې بنده شوه .

د دروازه د خلکو نه د که وه هغوی تول زما په ننداره شول شاید چه زه ور ته عجیبه غوندې ښکاریدم . هغوی کوم نه وو زما حالت ډېر عجیبه وو ما چه پخپله خپلې ډنګې ونې لنډ کميس او لنډ پرتوګ د غوږ ونو توپي د غاړې غاړکه په پښو کښې بېړۍ او په لاسونو کښې انکړو ته کتل ځان به راته تماشا ښکاریده ، د جیلخانی خوراک ، پوښاک قانون او قاعدې په داسې طریقه جوړ شوي دي چه په یو قیدي کښې خود داري پاتې پیدې نه شی .

په دې ورځو کښې د سیاسی قید یانو ملاقا تونه وو او د جیل خپلوان یې د لیدلو د پاره راغلي وو او په دې وجه د دروازه د که وه پولیس زه د دفتر ته بوتللم او جیل والا ته یې حواله کړم او هغوی را نه رخصت شو څه وخت چه جیل والا و زما تکټ او وارنټ

وکتلو او ورته معلومه شوه چه زه سیاسی قیدی یم نو هلته دی لی راسره پیل اشوه او داد کیږنه یی راکړه چه دلته ډېر سیاسی قیدیان دي ورسره خوشحاله شه یي امید دی چه هیڅ تکلیف به درته نه وی. زمانوم یي د جیل په کتاب کښي ولیکلو نو داروغه صاحب حکم وکړو چه دی فلانی بارک ته بوځئ اودا انکړي او بېړی وغیره تري لیري کړئ. څه وخت یي چه زه جیلخانی ته دننه کړم نو زما د راتللو نه سیاسی قیدیان خبر شوي وو اکثر زما لیدلو له راغلل او ډېره مینه او محبت یی راسره ښکاره کړو. زما د بېړو په ماتولو کښي هم ډېر کوښښ وکړو. د بېړو په لیری کېدو ما ته ځان بل شان معلوم شو. اول بندی وم اوس ازاد شوم.

د بدلیدو په وخت کښي د خپلی صوبی نه د وتو په وجه خپه وم ځکه چه زما دي خپلی صوبی او پښتنو سره ډېره مینه ده چه زه یي بیان نه شم کولی خپل ملک کښي، خپل قام سره وږی تږی او په تکلیف کښي خوښ یم نه په بل ملک کښي په عیش او عشرت کښي لیکن زما واک او اختیار خپل نه وو زه په هغه ځا او بدلی وم چه زما ارام یي غرض نه و بلکه زما تکلیف یي مطلب وخو د بېړو په وتلو بیا هم زما څه نه څه سود وشو ځکه چه د بېړو سره می گرځېدل په تکلیف وُ لمبل می په تکلیف و، په ودو او بدلول می په تکلیف و په کومی کښي به را باندی گرمي او په یخنی کښي به را باندي یخنی لگېدی.

د جیل په ډیوډی کښي په ملاقاتیانو کښي لاله دوی چند او د خاتون امة السلام ورور چه بیرستر وهم موجود و دوی بیا ما ته خبره کوله چه څه وخت مونږ بېړی په پښو کښي او انکړی نه په دوارو لاسو کښي د پولیس سره ولیدي نو مونږ ډېر گښیدو چه دا به زور ور ډاکووی.

دلته په اخلاقي قیدیانو کښې هم نه پېږي وی نه غاړکی او نه پکښې د لرګي تختې وی . سیاسي قیدیان به پرېږدو . د اخلاقي قیدیانو سره هغسې سلوک نه کیږ چې کوم مونږ سره د سرحد په جیلخانو کښې شوی و ، ددې نه پس مې ولمبل او ډوډۍ تیاره وه . ومې خوړه او د خدای شکر مې ادا کړ چې له هغې جیلخانې نه یې په خیر را ووېستلم . که څیری په هغه جیلخانه کښې وی نو ژوندی ترې راوتی نه شوم . ددې ځای ډوډۍ کښې او د سرحد د جیلونو په ډوډۍ کښې فرق و . د سرحد د جیلونو خوراک د خوراک په تعریف کښې نه راځي او ددې ځای ډوډۍ خو کم نه کم د خوراک په تعریف کښې راځي . یو ترپړی او یوه کمبله یې راکړله خپل بارک ته لاړم بستره مې وغوړوله او ویده شوم .

## دجېل ژوند :

دا یوه وړوکې دمزي او ډېره صفا جیلخانه وه په دې کښې ټول ټال درې بارکه وو او په مېنځ کښې یو وړوکی هسپتال و . د ټولو نه لوی بارک کښې هغه سیاسي قیدیان وو چې سپېشل کلاس ورکړ شوی و ، ورپسې هسپتال و او بیا زمونږ بارک و . په دې کښې مونږ هغه سیاسي قیدیان او سپېل وچه کوم (C) کلاس کښې وو او هغه دریم بارک کښې اخلاقي قیدیان وچه بهر په باغ کښې به یې هم کار کولو او دننه به یې هم صفایي کوله ، ولې چې سیاسي قیدیانو ته بهر د کار کولو اجازت نه و . په دې جیلخانه کښې د سیاسي قیدیانو د پاره یو قسم مشقت ، څرخه کول او منج غنبتل وو . څرخه د سپېشل کلاس د قیدیانو د پاره وه او منج او میچنی د (C) کلاس قیدیانو د پاره وو . سباله چې سپرنټنډنټ صاحب راغی او زه یې ورته پېش کړم نو چونکه زه په (C) کلاس کښې وم نو زما د پاره هم د منجو غنبتلو مشقت ولیکه . ما چېری دا کار کړی نه و او نه د منجو غنبتلو چل راتلو زما هغه نو د ملګري

تکړه وو هغوی به ما سره ډېر ناکام او کوشش کولو او دغښتلو چل به یې راته ښودلو
ما به هم ورته ډېر فکر کولو او د زده کولو کوشش به مې کاوه خو زده کولی مې نه شو. ما د
خبره ډېره محسوسوله لیکن مجبوره وم بله ورځ مې سپرنټنډنټ ته ووې چه د اکار خو
زه کولی نه شم دا به ښه وي چه تا سو ما له د میچین کار راکړئ ځکه چه دا ما ته بد ښکاري
چه زه خپل مشقت پوره کولی نه شم. بله دا چه سپرنټنډنټ او داروغه دواړه ښه سړي
وو، ما سره به دوی ډېره مهربانی کوله او زما په مشقت نه پوره کولو یې څه نوقس نه
اخیستلو. لیکن ما ته به دا خبره بده ښکارېده او ځان به راته ښه نه ښکارېده و بیا یې
له د څرخې مشقت راکړو. جیل والا مونږ د (C) کلاس قید یا نوله بېل د پخلي د پاره لنګر
(باورچي خانه) راکړې و او دهغه تول واک اختیار زمونږ په لاس کښې و او د پخلي د پاره
به یې هر څیز چه راکولو پوره صاف او ښه او زمونږ د خوښې به یې راکولو. بل د پخلي وغیره
انتظام به زمونږه سیاسي ورونو پخپله کولو. په دې وجه زمونږ خوراک ښه و او مونږ
ته ارام و او کله ناکله به د سپیشل کلاس والو هم د خپل خوراک نه څه حصه موږ ته له رالېږله
لیکن د دی سره د (C) کلاس او سپیشل کلاس قید یانو تعلقات پخپلو کښې ښه نه وو او
د دی مقوله وجه دغه امتیاز او فرق وُ چه کوم پرنګیانو قایم کړی وُ. زه یو پردیسي سړی
وم د هغوی د اندرونی حالاتو نه خبر نه وم لیکن زه د هغوی په بې اتفاقي ډېر
خپه وم ما به همیشه دا کوښښ کاوه چه د دوی د زړونو نه دا خفګان وباسم.
لیکن زما خبرو په چا ډېر اثر نه کاوه بلکه دا بې اتفاقي او نفرت ورځ په ورځ
زیاتېدو. اخر د دی حد ته ورسېده چه (C) کلاس والو د سپیشل کلاس والو
د تولو څیزونو د اخیستو نه انکار وکړو اصولاً خو زه د دی خبری نه خلاف وم

و زما مدار دا دی وه چه په سیاسی قید یانو کښې دې فرق نه وي او د ټولو سره
دی یو شان سلوک کیږی. ما چه کوم وخت سپرنټنډنټ صاحب ته ووې چه زه د
منجو کار نه شم کولی، مهربانی وکړه زما دا مشقت بدل کړه او داسی مشقت را کړه
چه زه خپل مشقت پوره کولی شم نو ددې نه پس یې دغه خرخی هغه مشقت را کړو چه
سپیشل کلاس والو به کولو او جامې یې هم راله زما په کچ جوړی کړی او سپیشل
کلاس تیریل بدل کړم. پرنګیانو چه کوم امتیاز قایم کړی دی دا په نیک نیتی نه دی
ایې په دې غرض قایم کړی دی چه په مونږ کښې همداسی بې اتفاقی او کوبړی وي
نو زه ددې په حق کښې هم نه یم چه دې خبرو له دې مونږ دومره اهمیت ورکړو چه
مونږه تعلقاتو او تحریک ته پرې نقصان ورسی، ځکه مونږ چه څه کوو نو د ځان د پاره
بلکه د خپل قام او خپل ملک د پاره یې کوو د بل د پاره خو یې نه کوو او بله دا چه تاسو ته
معلومه وی چه دا نن مونږ حکومت سره په جنګ یو دا خو د دی د پاره دی چه مونږه
امتیاز لیرې کول غواړو او د دی په ځای مساوات قایمول غواړو او تر هغه وخته
پورې دا امتیاز لیرې کیدی نه شي چه تر کومه پورې مونږه کامیابه شوی نه یو
او واک اختیار زمونږ په لاس کښې راغلی نه وي. [ مونږه له چه کله د معمولی اختیارات
وزارت په کوتو راغلی ؤ قانون موجود که چه ټولو سیاسی قید یانو سره دې یو شان او ښه
سلوک کیږی. امتیاز مو ختم کړی وخو د هغی نه پس چه د مسلم لیګ حکومت جوړ شو
او مونږ جیلخانه کښې واچولی شو نو هغه مساوات ختم شو هغه قانون یې مات کړی او
مونږ سره یې هغه بد سلوکی وکړه چه پرنګی را سره کړي نه وه حالانکه مسلم لیګیان
به کوم وخت زمونږ په حکومت کښې جیل له راغلی وو نو مونږ ورسره د هغه قانون

مطابق سلوک کړی و ] .

مونږ په دې د ( ح ) کلاس بارک کښې تقریباً شل کسان وو . په دې کښې یوز
دوه هندوان او نور ټول سکهان وو ما سره د ټولو تعلقات ښه وو او اکثر دا باندې ډیر
مهربان وو . زه د دوی سره ډیر خوشحال وم . زه د دوی منځګړی وم ، د دوی په
کور کښې چه به د څه قسم جګړه پیښه شوه نو په ما به یې فیصله کوله لیکن ما ته یو تکلیف
و او هغه د خوب وچه ما د شپې پوره خوب کولی نه شو او د دې وجه دا وه چه زمونږ
اکثر سکهان ورونه به غوټه نیمه شپه پاڅیدل او په بارک کښې به یې د ننه لمبل او
بیا به یې خپل پوجا پاټ ( عبادت او وظیفه ) کوله یوازې لمبل نه وو بلکه هغې سره به یې
په زوره زوره د خپلې عقیدې مطابق ذکرهم کولو چه مونږ ټول به یې د خوب نه راویښ
کړو . افسوس چه مونږ خلک د بل د ارام او تکلیف خیال نه ساتو کټی هم غ
ذکر مونږ ورو او پټ هم کولی شو لیکن د دې خبرې کمی هم زمونږ په عامو مسلمان
او هندوانو کښې موجود دی . مونږ همیشه یخپل خیال پسې ځو او د بل فکر نه کوو دا ی
لوی کمی دی . مونږ له په کار دی چه همیشه د خدای د مخلوق د تکلیف او ارا
فکر او خیال وساتو او څه چه کوو نو چه اول یې په ځان وګورو که چیرې ځان له یې خو
ښبوو بیا په کار دی چه بل له یې هم خوښ کړو او که چیرې ځان له یې نه خوښبوو نو چ
بل ورور له یې هم خوښ نه کړو .

جیل والا په دې خبره راضي وو چه ما هغه بارک ته بدل کړي لیکن د دې و
یې بدلولی نه شوم چه هسې نه دا نور سیاسي قیدیان څه اعتراض پورته نه کړي ، دا
دوني چند امبالوی او د بعضې نورو ملګرو دا رایه وه چه ما هغه بارک ته بدل کړي ا

صغوی سره یو ځای شیم. د صغوی د کوششونو او وینا په وجه سپین تنی نن زه هغه بارک ته بدل کړم او زما به ورتلو سره تولو وروڼو خوشحالی ظاهره کړه. په دې بارک کښې مونږ، شپږ شپیته کسان وو چه په دې کښې شپږ مسلمانان او باقی نیم په نیمه هندوان او سیکهان وو. دا بارک نه پرلوی ولو په دریې خانو باندې تقسیم و په یوه خانه کښې تقریباً هندوان او مسلمانان وو او په دوهمه کښې سکهان وو او دریمه حصه کښې زمونږ باورچي خانه وه او د سامان ایښودلو ځای ؤ. لنګر زمونږ د تولو یو و هندوانو، سیکهانو او مسلمانانو به په یو ځای او په یو دسترخوان د ودی خوړه ولې چه دا خلک پوه او اکثر تعلیمیافته وو. دلته ماخوب په ښه شان سره کولی شو او ماته هیڅ قسم شکایت نه ؤ ځکه چه دې خلکو به د ملګرو د ارام خیال ساتلو صرف دا خبره چه هغه د ځلاستوکلای ره په مالنهې وې نو دوه کړی یی ځای کړې دې چه دوه ته تکلیف نه وي او که چیری یو کس نیم به د شپې د لمبلو قصه هم کوله نو هغه دوم ولی بارک وچه چانه به تکلیف نه رسید او اکثرو کسانو به بهر لمبل او ښه کار خود او شو چه دلته زه د مونږو غښتلو نه خلاص شوم. دلته زما کار رو رېشل و او هغه ما په ښه شان سره کولی شو اول خو پری ښه نه پوهېدم لیکن بیا خو پری داسي پوه شوم چه خپل شفقت بهرمی په دریو کښتو کښې ختم کړو. خپل والاوو راته وویل چه مونږ غوا رو چه تا نمبردار کړو نو د رېشلو نه به خلاص شي او معافی به هم درته د یره میلا و یږي او باهر به هم ځلې ما درته وې چه زه د ا کار نه کوم او بیا تولو ورځ به مطالعی ته وزګا روم. د کتابونو نه علاوه دلته به دریې روزانه اخبارونه د اردو او انګریزي هم راتلل او دهغه په لوستو سره به مونږ د ملک د حال نه خبریدو لیکن د دې تولو خبرونو نه زیاتی خوشحالی، ارام او راحت ما ته

په دې وجه یوه ډېره ښه سوسایتي ماموندلې وه چه په دې کښې د هر خیال او عقیدې
خلک موجود وو او د هغې د تباد له خیال په وجه ما ته ډېره فایده وه یو خو هې د هر قسم
معلومات زیاتېدل او بل مې وخت په ښه شان سره تېرېده د ا موقع او وخت ما ځان
د پاره یو لوی غنیمت گڼه او ما نه چه څو مره کېدې شوه ضایع کو و مې نه بلکه د دې ملکرو
د علم او تجربو نه مې فایده اخیستله بله دا چه الله تعالی ما له دا موقع راکړه چه د پښتنو
خلاف چه څو مره غلطې خبرې پرنګیانو خورې کړې وې او څو مره غلطه د دوی په باب پراپیګنډه
شوې کړې وه د هغې نه خبر شوم او څو مره چه زمانه کېدې شوه ، د خلکو د زړونو نه مې د
هغو غلطو خبرو د لیرې کولو کوښښ وکړو .

## د پښتنو په هکله غلط پراپیګنډه :

خود غرضو خلکو زمونږ په خلاف د و مره پراپیګنډه کړې وه او داسې خبرې
یې په خلکو کښې خورې کړې وې چه هغه د یو سړي په خوب او خیال کښې هم راتلې نه شي .
د هندوستان خلکو ته د پښتنو متعلق هیڅ قسم معلومات نه وو دا عاجزان د پښتنو
متعلق په پوره تیاره کښې پراته وو او زه شاید چه الله تعالی د پیره غازي خان جیل ته
د دې خبرې د پاره راولېږلی وم ځکه په دې جیلخانه کښې اکثر د هند وانو او سکهانو لوی
لوی لیډران او ذمه دار خلک قید وو چه زه د دوی د حقیقت نه خبر کړم چه د هغوی
د زړونو نه وېره او وهم لیرې کړم او د پښتنو په حقیقت یې خبردار کړم د نفرت او نفاق
په ځای محبت او اتفاق پیدا کړم ، د دې خلکو په ذهن کښې پښتون په بل رنګ کښې
معرفي شوی و څه عجیبه مخلوق و . لا له دوني چند چه څه وخت ما سره ښه اشنا شو
نو ویل چه څه وخت ته ما په دروازه کښې په اول ځل ولیدې نو ستا د جوسې نه راته

معلومه شوا چه پښتون دی نو زما دا یقین وچه قتل یا د اکه کښی راغلی دی او شاید
چه دداسی نورو خلکو به هم د پیټرندګلونه رومبی زما متعلق خو دا خیال وسره ددی
چه لاله دونی چند د پنجاب د پېرلوی لیډر اولوی وکیل او د ډېر عالم او باخبره سړی و
د دوی په ذهن کښی دا ننوتلو چه چېرته پښتانه او چېرته منه کارونه او بیا د خدای دپاره
د قام او ملک خدمت د دوی په خیال کښی خو دا خبره ناسته وه چه د پښتون بی د قتل
او لوټ او د اکی نه بل کار نشته زما د یو ځای اوسېدو په وجه زما د خیال او عمل نه
واقف شوا وبتولو به ما سره ډېره مینه او محبت کولو خو سره چه زمونږ تعلقات زیاتېدل
هغومره د ډزرونو پټی خبرې راښکاره کېدې په ابتدا کښی به ما سره د دوی خبرې
همیشه د پښتنو متعلق وې د ما ز ګېر په وخت کښی به مونږ د خېل بارک نه راووتو او
ګرځېدو به چونکه زمونږ د ګرځېدو د پاره بل ځای اجازت نه و نو مونږ به د هغه
خېل بارک نه چاپېره ګرځېدو، د ګرځېدو په وخت کښی به اکثر داسی وشو، چه مونږ سره
ملګرو کښی به یو تن د خیټی هوا خارجه کړه، زمونږ د معاشره کښی چونکه داشی ډېر
معیوب ګڼلی شو، نو ماله به ورزېوری ډېره خندا راتلله، په خه بانه به می ځان یو دوی
نه کړو او بیا به ډزره د اخلاصه به می وخندل او رو ستو به بیا خپلو ملګرو له ګرځېدو له
راغلم. زما ملګری چونکه نه وو خبر چه زه دوی پوری خاندم نو هغوی کښی به یو تن نیم
بیا هوا خارجه کړه او په ما به بیا د خندا چپه راغله. اخر دا واقعات دومره حد او شو
چه زه وورسره مجبوراً بلد شوم. او بیا به خندا نه راتلله، و رستو چی ما په دی فکر وکړو نو
دا ماته دومره معیوبه خبره نه ښکاریده بلکه که په غور ورته سړی وګوری نو ددی هوا
بندول په صحت مضر اثر پری باسی.

ماسره چه به چیرته څوک ملګري شونو اکثر به یې مانه د سرحد او د پښتنو تپوسو
کول او د اسي پوښتني به یې کولی چه په اورېدو به یې زه حیران کړم . زمونږ بحث
مباحثه به ډېر عجیبه وه ما به همیشه دا کوښښ کولو چه دوی په حقیقت پوه کړم او
دوی د زړونو نه دا وهم او وېره لیری کړم لیکن د عمرونو وهم وېره لیری کول اسا
کار نه و ، یوه ورځ را باندی یو لیک په خبرو خبرو کښی دا سوال وکړو چه مونږ ه او دوچه پښت
د بنیادم وینی څکی ما ورته ودې چه هو ! هغه تپوس وکړو چه دا ولې څکي ؟ ما ځواب ورکو
چه د بنیادم وینه ډېره مزیداره وي او د هغې څکل هغوی له خوند ورکوي ، سړی حیران شو
او پوره یقین یې وشو چه دا ربښتیا دی . ما ترې پوښتنه وکړه چه تا تر اوسه پورې ! د بنیاد
وینه نه ده څکلی ، هغه ووې چه : « بابری بابری » لږ ساعت پس تری ما تپوس وکړو چ
تا سرحد یا پښتانه لیدلي دي ؟ د هغوی د حالت نه څه خبردار یې ؟ د هغو خلکو سر
دې پېژندګلوی یا معامله شوې ده ؟ د هغوی د تهذیب او تمدن نه واقف یې ؟ زه
ددې قسم وینا په اورېدو سړی لږ غلی شو بیا یې درو غوندی ، ځواب را کړو چه ما ت
د هغه ملک هیڅ قسم حالات معلوم نه دي نو بیا ما ورته ووې چه شاید تا ته د غیبو علم
حاصل دی او یا د پښتنو متعلق در ته څه الهام شوی دی ، هغه ووې چه نه ما خو د خلکو
د خولی دا خبرې اورېدلي دي او اکثر خلک همدا سې خبرې کوي ما ورته ووې چه د
خبرې ټولې غلطی دی پښتانه هم د غسې خلک دی لکه څنګه چه تاسو یې . څنګه چه تاسو
کښي ښه او بد خلک شته د غه شان په پښتنو کښی هم شته . دا ټولې خبرې د پښتنو د ښم
جوړې کړې او د هغوی پراپیګنډه ده د دې خبرو مطلب یې ستاسو تېرا یستل او زمونږ
بدنامول دی ځکه چه تاسو و نه وېروي او مونږ بدنام نه کړي نو بیا به په دې ملک کښي

پا دشاهی ښخنګه کوي. په اولو ورځوکښې خو به هره ورځ زمونږ په بارک کښې د پښتنو
متعلق نوي نوي قصې کېدلې دا خبرې زمونږ په حق کښې ښې وې خکه ماله به پکښې
د خبرو موقع په لاس راغله. یوه ورځې زمونږه د بارک هندوان، سکهان او بعضې
د جېلخانې افسران راجمع شوي وو زه هم راغلم او د دوی په جمع کښې شریک شوم زما
په راتلو سره د مجلس رنګ بدل شو او د پښتنو به باره کښې بحث شروع شو ما ورته
دوي چه د هندوستان خلکوته د پښتنو په باره کښې د هیڅ قسم علم نشته او د دوی
په غوږونوکښې ډیرې غلطې خبرې زمونږ متعلق کښېښولې شوې دي. حقیقت دا
دی چه پښتانه د غسې نه دي لکه ښخنګه چه ستاسو خیال دی. په دې کښې سردار ګرمکه
سنګه چه د سکهانو لوی لیډر وو ویل په دې کښې خو شک نشته چه پښتانه ډیر
جګړه مار دي ما ورته ووې چه سردار صاحب بې شکه پښتانه به جګړه مار وي لیکن
سکه بهایي به هم د غوی نه کم نه وي. زمونږ په خلکوکښې دا یو لوی کمې او نقص دی
چه مونږ همیشه د بل د کمزوریو او عیبونو د راڅښکلو او لټولو په فکر او غم کښې یو او
خپلو کمزوریو او عیبونو ته فکر نه کوو او په دې وجه خو مونږ نن په دنیا کښې بربادو او
بیستمندیو په ځای ددې چه مونږ بل ته ګوته ونیسو ځان ته ګوته نیول په کار دي
او د نورو د اصلاح نه مخکښې د ځان اصلاح فرض ده اول ځان دی بیا جهان
دی. زما د ټولونه زیات تعلقات لاله دوني چند سره وو او د بل قسمتي نه د ټولونه
زیات شک د پښتنو متعلق د هغه په زړه کښې ناست وو او همیشه به یې ما سره د
پښتنو په معاملو بحث کولو او د پښتنو متعلق د هغه عجیبه عجیبه خیالات وو. ما به
د هغه د بدلولو او اصلاح کولو او د هغه د زړه نه د دې شکونو شبهاتو د لیرې کولو کوښښ

کول لیکن هغه داسی دهغه په زړه کښې مضبوط شوي وو چه دهغه الیستل یا د
اصلاح کول څه اسان کار نه و . زه چه یې به هر څه ستړی کړم نو اخر یو ورځ مې
ورته ووې چه لالاجي تاسو په هندوستان کښې څومره یئ ځواب یې راکړ چه دوه
ویشت کروړه او مونږ پښتانه سرحد کښې دوه ویشت لکه یو باوجود د دې دومره
زیاتوالي که چېرې تاسو پیام د پښتنو نه وېرېږئ . نو خدای دې په تاسو رحم وکړي
او داوېره دې ستاسو د زړه نه وباسی لیکن دا خبره یاده ولره چه داسی یو قوم
د دې قابل نه دی چه ژوندی پاتې شي . دا دنیا د بزدلانو د پاره نه ده خود ا خپ
زما یاده ولره چه تر څو پورې تاسو پښتانه خپل ورونه کړې نه وي او په دوی
اعتماد کړې نه وي او ځان سره مو په لاین کښې اودرې په اوږه و درولی نه وی
داملک ازاد به دی شی او نه اباد به دی شي په دنیا کښې د هیڅ یو بزدل قوم هست
پاتې کیدی نه شي . د دې وینا په اورېدو د لالاجي څه ناڅه تسلي وشوه او زه یې د
پښتنو نه خلاص شوم .

## زما د غابښونو مرض :

دلته د راتلو سره ما څه قدری ورزش کول شروع کړل ولې چه تر دې ب
ځنځیرونو نه ازاد شوم او په سرحد جیل کښې ما ته د ورزش کولو موقع هم نه ده ځکه
چه هلته به زما په پښو کښې بېړۍ وې ورزش مې نه شو کولی . دلته خو ما ته د ورزش
کولو موقع حاصله وه زما دا خیال و چه په ورزش کولو به زما صحت ته فایده ور
زه به تکړه شم او وزن به مې هم زیات شی ځکه چه د سرحد په جیلخانو کښې خو ز
صحت او وزن نه ډېر کمزوری شوی و هلته خو به همیشه چکی کښې بند وم خو

دخنا وورنه هم بل تر واو زما د مزاج مطابق سیاسی سو سایتی هم نه وه که چیرته
په سیاسی قیدیان وو هم زه به یې تری بیل په چکی کښې بند ساتلم او مشقت به مې هم
هغه کولو چه په داکوانو او قاتلانو به کېدلو بلکه قاتلان او داکوان به د هغه مشقت نه د
رشوت په وجه بچ کېدل شول ما خو رشوت هم نه ورکولو او مشقت که به هر څو مره
سخت و هغه به مې پوره کولو او دخپلو ورونو پښتنو د جنګونو، پروجنبو او تربګنوغم به
هم راسره و او چه په هغوی به دجیل افسرانو څه لوبې کولې هغه ما پخپلو سترګو لیدلې
دا مې هم برداشت کولې نه شو دا ځای خو د خدای فضل و هغسې نه و دلته سیاسی
عالمانه ماحول کښې شپې ورځې تېرېدې نو ل پکښې قومي مشران راغونډ شوي وو خواړک
هم ښه و. دا ماحول ما د خدای له طرفه یو لوی انعام ګڼلو او د دی انعام نه مې پوره پوره
فایده اخیستل غوښتل، ربښتیا خو دا ده چه دغلته زما په نظر کښې د ډیر وسعت پیدا
شو او ډیره تجربه مې وشوه او ډیره مطالعه مې وکړه. باوجود د دې هر څه زما صحت
په ورځ په ورځ خرابېدو د ورزش کولو نه پس زما صحت ته څه فایده و نه رسېده
و نه مې تول زیات شو بلکه څنګه چه د کمېدو طرف ته روان و هم هغه شان کمېده
حالانکه دلته ما ته د هر قسم ارام حاصل و او د هیڅ قسم تکلیف راته نه و زمونږ
جیل سپرنټنډنټ میاں صاحب یو ډیر نیک او شریف سړی و د هغه دا خیال و چه
شاید د جیل دا خوراک د ده د پاره کافی نه دی او دی په دې مړېدی نه شي په دې
جه دی کمزوری کېږي او وزن یې کمېږي نو هغه زما د پاره نیم سیر پئ د خوراک
زیاتی مقرر کړې! لیکن د دې نه هم ما ته څه فایده و نه رسېده او همیشه به زما وزن
تول په وخت کښې کمېدو. یو وجه یې زما په خیال کښې دا هم وه چه زما د خپلې

ښځې سره ډېر محبت او هغه به ماهره شپه کښې په خوب کښې لیده او بل د
سرحد د جېلخانو د ګنده خوراک په وجه زما د غاښونو په اورو کښې پیپ ( زوه )
شوی وچه ډاکټر وکتلی نو ماته یې ووې چه ستا صحت دد ې نه خراب دی او اوری
می د غاښونو نه جدا شوي وې . په غاښونو می پایوریا مرض حمله کړې وه او د خوراک په
وخت کښې به می د وریونه وینه هم تله څه وینه زما خوراو سره تېر بدله او معدی له به
تلله. غالباً چه هم په دې وجه زما صحت ورځ په ورځ خرابېدو د پرېدو په ورځ ما او
زما ملګرو دا خبره سپرنټنډنټ صاحب ته وکړه او هغه موخبردار کړو هغه فوراً زه
اوری وکتلی او مونږ سره یې اتفاق وکړو وې منله چه ستا د صحت د خراب والې وجه
هم دا ده لیکن دد ې دکتو او مناسب علاج د پاره د غاښونو د یو لایق ډاکټر ضرورت
دی او هغه به دې ښار کښې نشته چه داوګوری او مناسب علاج یې وکړي نو سپر
نټنډنټ صاحب د جېلخانو جرنیل ته ولیکل چه دی دې لاهور ته بدل شي ځکه چه
ده اوری او غاښونه خراب دي صحت ته یې نقصان رسېدلی دی چونکه دلته د د
دکتو او علاج د پاره ډېنټل سرجن نشته په دی وجه دې دی د لاهور جېلخانې
بدل کړې شي چه هلته یې یو لایق ډاکټر وګوری او علاج یې وکړي. دالیکل زما د یا
په جېلخانه کښې څه وړه خبره نه وه دا د سپرنټنډنټ صاحب شرافت او مهربا
وه ځکه چه قید یانو ته ځوک د پېر لږ کیانو په حکومت کښې د سپي نظر هم نه کوي. د علا
د پاره بل ځای ته لېږل خو پرېږده ځوک د وېرې نه د ناجوړتیا نوم قلم ای په خو
اخیستې نه شي او باوجود د ناجوړتیا د ارو قدري نه ورکوي ځکه چه جېل والا قید
اد و د خدای مخلوق نه ګڼي او کوم سلوک چه هغه سره کوي شاید چه په دنیا کښ

خلک څنا وروسره هم نه کوي. ماد پر قیدیان لیدلی دي چه خپل قید ونه په ناجوړ تیا
کښي په ولاړه ولاړه تېرکړي او اخر یوه ورځ سر ولګوي او مړ شي. جیلخانه کښي چه څنګه
د یو قیدي مریض د پاره لیکل او سفارش کول یولوي بخت غواړي د غسي یولوي بخت
د هغه د منظوریدو د پاره هم په کار وي ځکه چه د پر ځله داسي وشي چه حکم راځي نو
د مریض فیصله شوي وي یا د علاج کولو نه وتلی وي د دی قسمه د پر واقعات ما پخپلو
سترګو لیدلی دي. پرنګی چه د خدای د مخلوق د ذلت او تکلیف د پاره کوم فریبي حکومت
جوړ کړی دی هغه ته د فتري یا کاغذي حکومت ویلی شي یعني صرف کاغذ ونه د دستخطونو
د پاره د یو د فتره بل ته او د بل نه بل ته لیږل او بیا پري د و مره وخت تېروي چه اکثر هغه
اصلي مطلب فوت شي. دا تکلیف یوازي په جیلخانو کښي نه دی د پرنګیانو د هر ې
حکمې داحال دی.

پرکال د دواوې داهیزو کلي ته د سیند مخه شوه د کلي خلکو غریبانانو د پر
درخواستونه وکړل چه د هغې په سبب د پټي کښتر او نور د پر افسران د موقع کتو له
غلل او داهر څه یي پخپلو سترګو ولیدل لیکن چه د فتري کار وایي پوره کېد له او حکم راتللو
او بو کلی وړی و او د کلي د شلو کالو د کښو د پره اعلی ځمکه یي هم سیند په مخه وړې وه
بیل دا یاد ولري چه د دی قسم تول تکلیفونه صرف د خوار رعیت د پاره وي او څه وخت
په د پرنګیانو داسي کار پېښ شي چه په هغه کښي د دوی خپل سود وزیان وي نو د هغې
اصلي اکثر پڅیلنون ناندې کېږي. داولې؟ دا ځکه چه دا حکومت خو هغوی د خلکو د
فایدې د پاره نه دی جوړ کړي بلکه د خپلې فایدې د پاره یي جوړ کړي دی.

د دېرهٔ غازي خان په جیل کښي سیاسي قیدیانو سره ښه سلوک کېدلو او زمونږ

دسی کلاس هم ډېرې ښې ورځې تېرې‌ لې. داروغه ډېر ښه سړی و او دنورو څیزونو
علاوه روزانه انګریزی او اردو اخبارونه یې هم راکول هیڅ‌ چاته د هیڅ قسم تکلیف نه و
که چا به د بهرنه څه میوه یا نور داسی ضروری شیان راغوښتل نو هم ورته اجازه وه. څه
موده پس یو مولوی صاحب اسماعیل چه هغه د غزنوی خاندان نه و راغی او څه ورځې
پس یې هیڅ په هیڅه داروغه سره خبرې وارولې او نوبت یې بد ورد وته و رسید
زمونږه قولو ملګروته د مولانا صاحب دا حرکت ښه ښکاره نه شو او داروغه صاحب هم
ډېره محسوسه کړه ځکه چه د هغه مونږ ه سره د دې قسم سلوک نه و لکه څنګه چه جیلخانه
کښې قید یانو سره وي د هغې ورځې نه یې مونږ سره تلل پرېښودل او قول د رعایتونه یې
راباندې بند کړل او زمونږ د پاره یې څلور پښتانه نمبرداران راوغوښتل او د هغوی
پېره یې په مونږ و دروله لیکن دانو به اخبارونه په پټه راغوښتل او په پټه به یې لوستل
یوه ورځ یو پښتون نمبردار د غه اخبارونه ولیدل او ودرغی او د دوی د لاسه یې
واخیستل دوی ورته ډېر منت وکه خو د دوی خبره یې ونه منله نمبردار د دروازې
دوان شو چه اخبار داروغه ته وښیي یو کس په منډه منډه ماپسې راغی او ماته
ووې چه لاړ شه هغه نمبردار مونږ نه اخبار واخیست داروغه ته یې وروړی هغه ته
نه منع کړه او اخبار تری واخله زه ورغلم هغه نمبردار ته می اواز وکه هغه راغی ما د
دا اخبار راکوه هغه راته ووې که داروغه صاحب د دې نه خبرشی نو ما به مات کړي ما
ووې چه ته دې خلکوته وګوره دوی دی جیلخانی ته په څه کښې راغلی دي؟ اخبار یې
راکړو او ما هغوی له ورکړو. خبر راغی چه د جیلخانو جرنیل ډېره غازی خان ته په دوره
راځونیل ډېر سخت طبیعته سړی و او د کانګرس او قومی کارکنانو ډېر سخت مخالف

ده حکم کړی دچه جیلخانه کښې به څوک نه کاندی کیپ او نه تورپټکی په سر وي په دی
جیلخانه کښې چه څه سکهان وو دهغوی تورپټکی وو او چه هندوان او مسلمانان وونو
دهغوی ګاندی کیپ ؤ دا ددی سپرنټنډنټ شرافت وچه نه یې سکهانو ته ویلی ووچه
اتورپټکی په سر ول منع دی او نه یې مسلمانانو او هندوانو ته ویلی ووچه ګاندی کیپ مه
په سر وئ. چه جرنیل راتللونو مونږ ته سپرنټنډنټ صاحب سوال ځواب وکړو چه دا
چیزونه په جیلخانه کښې منع دي که دیو ساعت دپاره تاسو دا په سر نه کړئ نوښه به
ي مونږ دسپرنټنډنټ صاحب داخبره ونه منله چه جرنیل راغی زمونږ ددی سیاسی
ملګرو په سر یې تورپټکی او ګاندی کیپ (دګاندی جی دتوپۍ غوندی توپۍ) ولید نوغصه
شو او داروغه ته یې وویل چه ددوی نه دې داپټکی او توپۍ ولی نه دی اخیستی؟ سپرن
ټنډنټ جرنیل ته ووې چه داروغه زه ددی نه خبر کړی وم خو ما ورله ددی اجازه ورکړې
جرنیل حکم وکړو چه داپټکی او توپۍ تری واخلئ نو بیا داسیاسی قیدیان څیلو کښې کښیناستل
فیصله یې وکړه چه داخو زمونږ قانونی حق دی چه څه اغوندو هغه به اغوندو که چیری زمونږ
ددوی پټکی او توپۍ اخلی نو بیا به مونږ دانوری جامی هم ورکړو دلته ورته ما وویل چه
خو بڅیله پټکی په سر وم دا توپۍ خومی ستاسو له خاطره په سر کړی وه اوس زه څه کړم؟
دارکړل سنګه ماته وویل چه ته مونږ سره دې ایجی ټیشن کښې مه شریکیږه په
ورځ سپرنټنډنټ خیل دفتر کښې کښیناستو یو یو یې ځان ته غوښتلو چه دچا به
توپۍ په سر وه هغه ته به یې وویل توپۍ کوزه کړه او چه دچا به پټکی په سر وه هغه ته
یې وویل چه پټکی کوز کړه دغه شان یې ددوی نه توپۍ او پټکی کوز کړل او ددوی
فیصلی مطابق ورپسې خپلی جامی هم وایستلې. څو ورځې پس ددی حال معلوم لو

دپاره دپیټي کمشنر راغی سپرنټنډنټ او داروغه ورسره وو، زمونږ بارک ته راغلل
سیاسي قیدیان ورته راغونډ شول بحث شروع شو په بحث کښې دوی وران
شول سردار کورک سنګه پیرنګي دپیټي کمشنر ته ووې چه مونږ ډیره ستاسو
خدمتونه کړي دي مونږ لیډل چه ستاسو مخونه سپین دي نو ستاسو زړونه به هم
سپین وي په دی دوران کښې یو سکه چغه وایسته «جو بولی سو نهال» نور ټول
حاضر سکهانو ورپسې په چغه ووېل: «ست سري اکال» ددې نه پیرنګي ګبهراو شو
او په منډه زمونږ بارک نه ووتلو، سپرنټنډنټ ته ډیر په قار شو او دایې ووېل چه میا
صاحب په جیلخانه کښې اسونه ساتلی دي او هغه لي ډیر خوراک او ارام په وجه مست
کړي دی او بیایي هغه ته حکم ورکړو چه په دوی مقدمه وچلوه سبا له داروغه راغی
او وې ویل چه زمونږ دجیل دا قانون دی چه څوک دا قانون مات کړي نو تر یو کال
پورې سزا ورکیدی شي نو اوس زه تاسو له حکم درکوم چه جامې واغونډئ او که
جامې نه اغونډئ نو سبا به درباندې مقدمه چلیږي. چه دا خبره دې سیاسي
قیدیانو واوریدله نو په مسلمانانو کښې یو مولوي محمد اسماعیل او هندوانو کښې
یو هندو چه زما اشنا وخو نوم یې را نه هیر دی دوی جامې وانه غوستلې او باقي
هندوان وو که مسلمانان ټولو جامې واغوستلې او سکهانو کښې یو کس هم جامې وانه
سباله مجسټریټ راغی یو یو به یې ورته پیش کوو او هغه به نهه نهه میاشتې نور قید
زیاتولو او زمونږ دجیل هغه سپرنټنډنټ میا صاحب چه ډیر ښه سړی وه هغه یې
کړي او یو درجه یې ورته کمه کړه یعنی اسسټنټ سرجن یې کړو او ددې جیل نه یې بل
کړو دهغه په ځای کپتان هیز راغی دمیا صاحب ګناه صرف داوه چه دې نیک

شریف انسان و او په سیاسی قید یانو لي زور زیاتی نه کولو او دخدای مخلوق سره
ي د سرپتوب سلوک کولو او قیدیان یي هم دخدای مخلوق گڼلو زمونږ نوی سپین تښتنت
یو انګریز مقرر شو چه هغه هم دګزاری سړی وا او قیدیانو سره یي ښه ګذاره کوله او دفوځ
نه سول ته درابدل شوی و دو موره خراب سړی نه و لکه چه دا نور سول والا وي او نه
ځغوی په شان چالاک او دوکه باز و یو سم سړی و غریب د هیڅ نه خبر نه و څه چه به ورته
داروغه وي هغه به یي کول مونږ سره یي سلوک شریفانه و لیکن لږ شان ایغ نیغ و ځکه
چه فوجی و په اوله ورځ چه زمونږ ه بارک ته راغی او دا الله و دي ولید و چه ځوک د ننه
ي ځوک بهر خوک لامبی او ځوک کرځی په دی ورځ خولي غږ ونه کړو لیکن چه څه د خت
و باره راغی نو دا معامله یي نوره برداشت نه کړه شوه زمونږ د بارک په مینځ کښی
د ریډوا او پینه یي ځکی له راخلاصه کړه او وي ویل چه زه دا نه غوارم زه دیو ځو
منتو د پاره دی له راځم هر چا له په کار دی چه په هغه وخت کښی خپل ځای کښی
ست وي او زما د تلو نه پس چه څه کوی هغه دي کوی زمونږ د سیاسی ورونو
ده متعلق به هم شاید دا خیال وچه دی به هم لکه د میا صاحب په شان چشم پوشي
وي ، ما زیکو داروغه راغی او زمونږ ټولو سیاسی ورونو تیي د صاحب حکم ورا و رولو هر سړی
صاحب د خیال نه خبر شو . د پرلیو په ورځ چه سپرنتنډنټ زمونږ بارک ته راغی
ټول خلک د بارک د ننه پخپلو کټو ناست وو د دی په لیدو زه ډیر حیران شوم څه
خت چه سپرنتنډنټ و تلو نو ما د دی ورونو نه پوښتنه وکړه او ورته می ووي
رداسی معلومیږ ی چه تاسو هم اوس زما په شان خوشامدګر شوئ ځکه چه د اول سپر-
تنډنت په وخت کښی نه کښیناستئ او که ما به د هغه ووي نو تاسو به راته وي چه مونږ

ستا په شان خوشامد گرنه یو لیکن نن خو تاسو هم د ننه کښېناستئ او کوم کار چه د د ته
پرون بل ښکار رېلاو نن څنگه ښه شو. بل پر یلا بالدی چه بیا سپرنتنډنټ داغی نو
بعضې خلکو کتابونه مخ ته نیولي وو دایي هم پری بند کړل او حکم یې وکړو چه زه کوم وخت
دا ځم هغه وخت کښې کتابونه مه گوری، ددی نه پس د پریلا په وخت کښې کتابونه کتل
هم بند شو شاید چه که دا کار زمونږ مخکښې سپرنتنډنټ کړی وای نو چه زمونږ و
به ورسره څه کول چونکه دا یو انگریز و او بیا ورسره زور هم دی په دې وجه په چا کښې د
جرئت نه و چه هغه بر خلاف یې قدم پورته کړی وای افسوس په دې دی چه مونږ سره
څوک ښه سلوک کوی هغه ته نیغ یو او چه څوک موسره په د نلاه وهی نو هغه ته ټیټیږو
او دا د پرخراب عادت دی او مونږ ته داسې عادتونه پرېښودل په کار دي لږ ک
ورځی پس یې داروغه هم بدل کړو خو د ده په ځای چه بل داروغه راغی هغه هم ښه سړ
و او مونږ سره یې شریفانه سلوک کولو.

په دې کشمکش کښې زما د علاج دپاره د لاهور ته تللو حکم راغلی ولیکن جیل والا
زمونږ نه پټ ساتلی و او مونږ یې پری خبر کړي نه وو زه په بارک کښې ناست وم
وختی سحر یو نمبر دار راغی او ماته یې ووی چه داروغه صاحب د رته نارې وهی زه
د لاسه هغه سره روان شوم ولی چه زه خبر نه وم چه زما د بهر تللو حکم راغلی دی
دفتر ته ورسید و پولیس ولاړ و زما شک راغی چه شاید زما د بدلی حکم راغلی
او ما د علاج دپاره لاهور ته بیایي د ور رسېدلو سره داروغه صاحب هم راته دا و
چه ستا د بدلی حکم راغلی دی او ته به د سپاهیانو سره لاهور ته ځی ما ورته ووې چ
ازکم ماله خو دومره اجازت راکړه چه د غه خپل ملگری خبر کړم او رخصت تری

ځکه چه زه راتلم خبر نه وم ماتری رخصت اخیستی نه دی لیکن داروغه صاحب
زما ددی خبری نه انکار وکړو او ما ته یي ووی چه زه ستا تلل مناسب نه ګڼم او که چیری
ستا هلته څه سامان دي نو سړي به ولیږم چه هغه تا له راوړي ما ورته ووی چه زه
خو دسی کلاس قیدی یم زما به دلته څه سامان وی، زه خو صرف د رخصت اخیستلو
د پاره ورځم خوده اجازه را نه کړه او چه څه وخت زما سیاسی ورونه زما د بدلیدو
او په دی طریقه زما د بوتللو نه خبر شوي دي نو هغوی غړیبانانو هم ډیر کوششونه وکړل
چه یو بل سره مو لیده کاته وشی لیکن افسوس چه په هیڅ شان مو دیو بل سره لیدو کاته
و نه شو. جېل والو دومره مهربانی ضرور ما سره وکړه چه ما ته یي په پښو کښی بیړی وانه
چولې او یا به په پنجاب کښی سیاسی قیدی ته زمونږ د صوبي په شان د بیړو لګولو حکم
نه وی ځکه چه زمونږ په صوبه کښی د سیاسی قیدی د پاره څه کلاس هم نشته او ددی
سره هم داخلاقی قیدیانو په شان سلوک کیږی او چه څنګه یو اخلاقی قیدی په سی کلاس
کښی وی چه کوم خوراک یا کومه جامه هغه له ورکیدی شی هم هغه خوراک او هم هغه شان
جامه سیاسی له ورکیدی شی او هغه سره چه څه سلوک وی د سیاسی قیدی سره
هم کیږی او دلته خو په پنجاب کښی سپیشل کلاس دی او دلته د سی کلاس قیدی
په جامه او خوراک او په سلوک کښی ډیر فرق دی. پولیس زما په دواړو لاسونو کښی
اتکړی واچولې د دروازی نه بهر تانګه ولاړه وه زه یي په هغه کښی کښېنولم او
ستیشن ته یي روان کړم چه څه وخت د اباسین غاړی ته ورسیدو نو جهاز تیار
و مونږ هم پکښی سواره شو او په خیریت سره پوری وتو د سین غاړی ته نژدی
د ریل ستیشن دی. چه ستیشن ته ورسیدو نو ټکټونه مو واخیستل، په ریل کښی

سپاهیانو یوسیټ خالی کړو او زه یې پکښې کښېنولم او س په خلکو کښې هغه جوش او خروش
نه وکوم چه په ابتدا کښې و د خلکو د رویې نه معلومېده چه تحریک بالکل سړ شوی دی
په دې وجه مونږ ډېر په ارام خپل سفر وکړو او په سباله مونږ لاهور ته ورسېدو ځو
یې د ستېشن نه پیاده جېلخانې ته بوتلم دلته هم قلاره قلاري وه په خلکو کښې د تحریک
متعلق هیڅ قسم جوش او جذبه نه وه جېلخانې ته ورسېدو او پولیس زه
جېلوالاو ته په حواله کړم او هغوی رخصت شو ددې پولیس والو ما سره ډېر ښه
سلوک و او د هیڅ قسم تکلیف یې ما ته رانکړې نه ؤ بلکه زما د ارام د پاره یې کوشش
کړې و. جېل والا زه یو نمبر دارته په حواله کړم د تولونه اول هغه زه کودام ته بوتلم
او زما چه کومې اغوستې جامې وې او ماله په ډېره غازی خان کښې زما د قد
مطابق جوړې شوې وې نو هغه یې را نه واخیستې او د سرحد په تشان نورې
د تماشې جامې راکړې چه د هغې په اغوستو زمانه یو عجیبه خېز جوړ شو. په دې
جامو کښې او د سرحد د جېلخانو په جامو کښې څه فرق نه و زه چه د دوته د دې
جامو نور څه ذکر وکړم ما ته پکښې ځان یوه تماشا ښکاره ده نو معلومه نه ده چه
خلکو ته به پکښې څنګه ښکاره ېدم او بیا یې بوتلم او اخلاقی قیدیانو سره یې یوه
چکۍ کښې بند کړم او ورپې را پسې جوړنده کړو دا د ډېرې زمانې لچه او د ختتو
جوړې چکۍ روې ځای په ځای پکښې چاودونه وو. او چرته پکښې د ښا او هوا
د پاره روښندانونه نه وو زه د علاج د پاره د غې جېلخانې ته لېږلې شوی ؤم
بلکه دا چه په دغه جېلخانه کښې ډېر سیاسی قیدیان وو او د هغوی بیله احاطه
وه په ځای ددې چه زه یې د هغوی سره بند کړې وای زه یې دلته د اخلاقی

قیدیانو سره په یوه ځای کښې بند کړم ما به په زړه کښې وې چه زه خو یې د
علاج د پاره دلته راوستلی یم او په دې کوټې کښې په داسې ځای کښې د اخلاقیانو سره
بند ول دا به زما د صحت د پاره ښه فایده ورسوي؟ چه ما زیگر شو نو ما پېسې یې ور
پرانیستو او زه یې صرف دومره پوهه کړم چه بنګي زما د ځکې نه د بولو کمله را وایستله
او صافه یې اکړه او د شپې د پاره د اوبو منګوټې یې ډک کړو او کښېښوده او لاړ ماله
یې په یو تور بالښتي کښې ټکولې او ډوډۍ یې راکړه او په تندۍ سره یې بیا په ځکې کښې بند
کړم جېرنده یې راپسې واچوله او دوی رانه لاړل هغه ډوډۍ د چا زړه ته کېده؟
هغه انساني خوراک خو نه و بلکه دا چه زه تږی وم په ځکې کښې بند وم ډوډۍ مې څرنګه
زړه ته شوې وای لیکن بیا هم څه نه څه په زور زور مې تېره کړه اخر دا چه شپه راغله
او زه اوده شوم د هغې چا و د نو ونه کیږي په ماشي او مېږي راخواره شوا او په چیچلو
یې په ما کوتې پورې کړې بل طرف ته دومره ګرمي وه چه خوب ترې چا کولی نه شو که
چرته لږ سترګې به مې ورغلې نو د بدلې پېره دار به راغې او هغه به راویښ کړم.
په جېلخانه کښې د ربړ دې کهنټې پس پېره بدلیږي. نو چه نوی پېره دار راشي
تانه به اواز کوی او تو مغه وخته پورې به لګیا وی چه تا ورله اواز ورکړی نه وی او د هغه
تسلي و نه شي چه ستا په ځکې کښې موجود دی چېرته تللی نه دی په جېلخانه کښې د
قیدۍ غریب د هیڅ قسمه د ارام خیال او فکر څوک نه کوی. په دې طریقه شپه تېره شوه
سبا شو سحر وختې یو نمبردار راغی زه یې د ځکې نه بهر کړم او ځکو ته یې بوتلم هغلته
نور قیدیان جوړه جوړه ناست وو او زه یې هم هغوی سره کښېنولم زه یې هم بل قیدی
سره جوړه کړم او موږ ته د خوځېدو یا و دریدو قدری اجازت نه و داځای ډېر

مزید اراو اوگیر چاپیر تری د بری ونی ولاړ ی وې او هری یوی ونی سره یوه گډ بله
تړلی وه او یو یو سری ورته بیښت په لاس ولاړ و او په ډیر زور سره به یې هغه گډ یله وهله
ددې په لیدو زه خیران شوم ولی چه ما دا قصه چرته په نورو جیلخانو کښې لیدلی نه وه د
ملکرو قید یانو نه راته معلومه شوه چه دا قیدیان دي او د بینتونو وهلو چل زده کوی چه د
ضرورت په وخت کښې قید یان په سنه شان په بینتونو و وهلی شي په دی کښې گوره نوکوره
قیدی یې دی ځای ته راوست د هغه د جامونه دا نه معلومیده چه کښې دی قیدی دی
سنه پتلون، سنه کوټ او سنه توپۍ ( Hat ) په سر وه هغه یې نه زمونږ په شان جوړه کړو
او نه یې کښېنولو هغه خپله تیلایي کوله چه په دې کښې داروغه راغی لیکن دې گوره د داروغه
هیڅ پروا ونه کړه داروغه صاحب د تولونه اول د هغه په تکټ دستخط وکړو د هغه
درخصت کېدونه پس معلومه شوه چه دا گوره دی او په زبر زنا کښې قید شوی
دی لیکن باوجود ددې قسم ذلیل او ظالمانه جرم د هغه د سهیتوب جامې د سهیتوب
خوراک او د سهیتوب سلوک و او مونږ چه د خپل قوم ملک او د اسلام په خدمت کښې
بې گناه قید یو او هیڅ جرم موکړی نه و نو مونږ سره د دې قسم سلوک وچه انسان خو
پریږده شاید چه ځنا وروسره به هم چاکړی نه وي څه وخت چه داروغه زما تکټ وکتو
او دستخط یې کړو او ورته داهم معلومه شوه چه زه سیاسی قیدی یم او د علاج د پاره
راغلی یم ددې د پاسه بیایې زه واپس هغې چکی ته ولیږلم او په هغه چکی کښې یې بند
کړم دا داروغه مسلمان و او خیرالدین خان یې نوم و ما په ټولو جیلخانو کښې لیدلی
دی چه مسلمانان د پیرنګیانو ډیر وفادار دی او د پیرنګیانو د خوشالۍ د پاره
سیاسی قید یانو سره هر قسم بد سلوک کوی، زما د راتلو نه چه سیاسی قیدیان خبر

مشوی دي چه هغه راغلی دی او په جيل کښې بند دی د دی په اوریدو سره هغوی

کوشش کړی او داروغه ته ورغلی دی او هغه ته يي ويلي دی چه دی خو سياسی

قيدی دی نو د اخلاقی قيد يانو سره ئې ولې بند کړی دی دی خو موږ سياسيانو

سره بند والئ په کار دی په دی سياسيانو کښې د پنجاب لوی لوی ليډران مسلمانان

او هند وان وو داروغه صاحب د هغوی نه يريده نو په دی وجه زه يي د سياسيانو

هغې احاطې ته بدل کړم د اځای ډير ښه و يو خو ډير لوی و بل پکښې ډيری ونی او

سوری و چې او بار کونه لي پاخه او هوا دار و او هوا به پکښې هم لګيدی شوه زما

راتلو نه چه به خوک سياسی وو نه خبر يدل هغوی به زما کتو ته راتلل او ما سره به يي

ګره بره کوله دلته د هر خيال د هر مذاق او هری عقيدی خلک وو او د دوی محبت

زما د پاره يو لوی غنيمت و ما به هر چا سره تبادله خيالات کوو او د هغوی د علمی

خبرو او تجربو نه ماته ډيره فايده ورسيده زما مثال د ملنګی د يو طالب علم و

او ډير ښه وخت می د دوی سره تيريده او د دوی د صحبت نه ما ډيره حاصل

اوزده کړل او تجربه او معلومات می زيات شول په دې جيلخانه کښې موږ ته څلور

کسه د خلافت قيديان وو چه يو آغا صفدر و، بل ملک لال خان و او دريم يو د رضا

کار و چه غلام محمد لي نوم و، او څلورم زه وم او د کانګرس ډير قيديان او ليډران

وو ما نه د نورو نومونه هير دی يو د لاله لاجپت رای نوم راته ياد دی، په کانګرس

کښې چه څومره خلک قيد وو هغه ټول هند وان وو، ډير ښه خلک وو او ما سره يي

ډيره مينه او محبت و څلور ورځې پس زه يي د فتر ته وبللم او سپرنټنډنټ ته يي

پيش کړم هغه زما غاښونه او اوريږه وکتل هغه هم ډاکټر و او ويل چه زه به دی

مزید اروا وګیر چاپیر تری ډېری ونی ولاړې وې او هوری یوی ونی سره یوه ګډ یله
تړلی وه او یو یو سړی ورته بینت په لاس ولاړ و او په ډېر زور سره به یې هغه ګډ یله وهله
ددې په لیدو زه حیران شوم ولی چه ما دا قصه چرته په نورو جیلخانو کښې لیدلې نه وه د
ملکرو قیدیانو نه راته معلومه شوه چه دا قیدیان دي او د بینتونو وهلو چل زده کوی چه د
ضرورت په وخت کښې قیدیان په ښه شان په بینتونو ووهلی شي په دی کښې ګوډو نو ګورډ
قیدی یې دی ځای ته راوست دهغه د جامونه دا نه معلومېده چه کښې دی قیدی دی
ښه پتلون، ښه کوټ او ښه ټوپۍ (Hat) په سر وه هغه لي نه زمونږ په شان جوړه کړو
اونه یې کښېنولو هغه خپله تیلایي کوله چه په دې کښې داروغه راغی لیکن دې ګوره د داروغه
هیڅ پروا ونه کړه داروغه صاحب د ټولو نه اول دهغه په ټکټ دستخط وکړو دهغه
د رخصت کیدو نه پس معلومه شوه چه دا ګوره دی او په زبر زنا کښې قید شوی
دی لیکن باوجود ددی قسم ذلیل او ظالمانه جرم دهغه د سپیتوب جامی د سپیتوب
خوراک او د سپیتوب سلوک و او مونږ چه دخپل قوم ملک او د اسلام په خدمت کښې
بې ګناه قید یو او هیڅ جرم موکړی نه و نو مونږ سره ددی قسم سلوک وچه انسان خو
پرېږده شاید چه ځناورو سره به هم چاکړی نه وي څه وخت چه داروغه زما ټکټ وکتو
او دستخط یې کړو او ورته دا هم معلومه شوه چه زه سیاسی قیدی یم او د علاج دپاره
راغلی یم ددی د پاسه بیایي زه واپس هغې چکی ته ولیږلم او په هغه چکی کښې یې بند
کړم دا داروغه مسلمان و او خیرالدین خان یې نوم و ما په ټولو جیلخانو کښې لیدلی
دی چه مسلمانان د پیرنګیانو ډېر وفادار دی او د پیرنګیانو د خوشالۍ دپاره
سیاسی قیدیانو سره هر قسم بد سلوک کوی، زما د راتلو نه چه سیاسی قیدیان خبر

شوی دي چه هغه راغلی دی او په چکی کښی بند دی د دی په اورېدو سره هغوی
کوشش کړی او داروغه ته ورغلی دی او هغه ته یی ویلی دی چه دی خو سیاسی
قیدی دی تاد اخلاقی قیدیانو سره تخنګه بند کړی دی دی خو مونږ سیاسیانو
سره بند وال په کار دی په دی سیاسیانو کښی د پنجاب لوی لوی لیډران مسلمانان
او هندوان وو داروغه صاحب د هغوی نه یرېدو نو په دی وجه زه یی د سیاسیانو
هغی احاطی ته بدل کړم د دی احاطی د پرښنه ویو خوا دېر لوی وبل پکښی د ېری ونی او
سوری وچکی او بار کوونه یی پاخه او هوا دار او هوا په پکښی هم لګېدی شوه زماد
راتلو نه چه بېخوک سیاسی ورو نه خبر بدل هغوی به زما کوټه ته راتلل او ماسره به یی
ګره بره کوله دلته د هر خیال د هر مذاق او هری عقیدی خلک وو او د دوی محبت
زما د پاره یو لوی غنیمت وُ ما به هر چا سره تبادله خیالات کوو او د هغوی د علمی
خبرو او تجربو نه ما ته د ېره فایده ورسېده زما مثال د ملا هی د یو طالب علم و
او د پرښنه وخت می د دوی سره تېرېده او د دوی د صحبت نه ما د ېر څه حاصل
او زده کړل او تجربه او معلومات می زیات شول په دې جېلخانه کښی مونږه څلور
کسه د خلافت قیدیان وو چه یو آغا صفدر و، بل ملک لال خان و او د ریم یو رضا
کار وو چه غلام محمد یی نوم و، او څلورم زه وم او د کانګرس د ېر قیدیان او لیډران
وو مانه د نورو نو مونه هېر دی یو د لاله لاجپت رای نوم راته یاد دی، په کانګرس
کښی چه څومره خلک قید وو هغه ټول هندوان وو، د پرښنه خلک وو او ماسره یی
د ېره مینه او محبت وځلور ورځی لپس زه یی د فتر ته وبلم او سپرنټنډنټ ته یی
پیش کړم هغه زما غاښونه او اوری وکتلی هغه هم ډاکټر و او ویل چه زه په دی

باندی نه پوهیږم ، په دې باندې یو د غاښونو ډاکټر (Dental Surgeon) پوهې
شي داد هغه کار دی مانډلي ووې چه ته جیل خوځ باندی ډنټل سرجن راغوښتې شي
مالپي د علاج کولو اجازت راکړو چه تر جیل خرځ باندې ډنټل سرجن ډغواړه چه ستا
علاج وکړې زه چه واپس جیل بارک ته راغلم دا قصه می سیاسی قیدیانو ورونو ته وکړه
هغوی زما د پاره د ډاکټر د غوښتو انتظام وکړو او د ډاکټر پریم نات ډنټل سرجن
د رابللو فیصله یې وکړه سبا له جیل والو د ټیلفون په ذریعه هغه له خبر ورکړو او د
خبر ېدو سره هغه جیلخانې ته زما د کتو د پاره راغې زه یې چکر ته بوتلم او ددا دغ
په موجودګۍ یې زما د غاښونو او اورو ملاحظه وکړه هغه زما په حالت ډیر افسوس
ظاهر کړو چه حکومت د خراب خوراک په وجه ستا صحت بالکل خراب کړې دی
او برباد کړې دی په ډیرې مینې او محبت سره زما غاښونه او اوری یې ښه شا
سره صاف کړل او کوم غاښونه چه خراب شوی وو هغه یې واپس تل او ده مکنیې د پاره
د هغې دارو او د استعمال طریقه یې راته وښودله او ډیر تحقیق یې را باندې کړو
چه باقاعده دې خپله خوله صفا کوه که نه تول غاښونه به دې برباد شي او بل یې زما
د پاره د خوراک تجویز وکړو چه همیشه سبزی او هر قسم تازه میوه وخوره بلکه دا یې
په تکټ درج هم کړل او دا روغه صاحب ته یې ووې چه دارو ددې مرض د پاره ډیر
فایده مند نه دی لکه دا خوراک چه فایده مند دی . د ډاکټر ښه همت ، همدردی شرافت
او محبت چه کوم اثر زما په زړه کړې دی هغه ترا وسه پورې زما د زړه نه وتی نه دی
او نه زما نه هیر دی د رخصتیدو په وخت ما ورته ووې چه زه غریب نه یم جیلخانه
کښې می روپۍ جمع دی د فیس بو درا باندې کیږدی دا به ستا مهربانی وی چه ست

خومره فیس کیږی هغه ته مانه واخلی : هغه ددی خبری نه انکار وکړو او چه څه وخت دا خبره ما ورته دوباره وکړه هغه ماله دا جواب راکړو :« ماله به ښرم نه راځی چه زه دد!! سی خلکو نه فیس واخلم چه هغوی د قوم او د ملک د ازادی ترقی او بهبودی د پاره جیلخانو ته راغلی دی او زمونږ د پاره ددی قسم تکلیفونه او مصیبتونه برداشت کوی نو که چیری مونږ د ومره قربانی نه شو ورکولی چه جیلخانو ته لاړ شو دا خو کولی شو چه د خدای د پاره د هغوی خدمت وکړو . » ددی په اوریدو زه هم چپ شوم او ما بله خبره ونه کړه هغه رانه رخصت شو او زه واپس جیل ته راغلم او دا تو له قصه می خپلو ملګرو ته وکړه . ددی جیل داروغه چه د هغه نوم خیر الدین خان و ډیر چالاک ، هوښیار ، تجربه کار او ډیر رشوت خور و او سپرنټنډنټ بی داسی په لاس کښی و چه دده به څه زړه غوښتل هغه به یی کول او چه سپرنټنډنټ به بی کوم خوار و اړول نو هغی خواله به هغه روانیده او چه چاته به یی زړه غوښتل . پی ، ماسته ، د بله د ودی ! او غوښته یی ورته کوله حالانکه دا کار د سپرنټنډنټ دی او اکثر دا خیزونه د هغو خلکو د پاره وی چه څوک ناجوړه وی لیکن ده به سپرنټنډنټ باندی دا خیزونه د روغو خلکو د پاره ګلکول په سیاسی قید یانو کښی چه خومره د سرخلک وو او د چا به لږ و ډیر رسوخ وا وخپل او از به یی اخبار اتو ته رسولی شو د هغوی لونه یی یده هغه تو له یی څه نه څه ورکول او ددی نه علاوه به ملاقاتونو کښی او خطونو او کتابونو کښی به هم ورسره رعایت کولو او دغان یی ملګری کړی وو لیکن کوم سیاسی قید یان چه بی اسری وو او چا یی اواز او ریدی نه شو نو د هغوی د پاره باوجود د ناجوړتیا نه هم څه نه وُ . او چه به د داروغه صاحب خه شامندی

کولی او د خپلو ورونو خبري يې افسرانو ته رسولې شوې ، هغه به که غټ کټ و داروغه صا
به د هغه ټکټ واخیست او چه څه به يې زړه غوښتل هغه به يې سپرنټنډنټ صاحب باندې
دستخط کړو به دې چل يې ټول خلک ځانته محتاجه کړي وو او هغه سړی به د داروغه
صاحب رضا کولو او خوشحالولو کوشش کولو داماته د سیاسی قیدیانو د پاره د بې ذلت
او د شرم خبره ښکارېده ، سپرنټنډنټ بالکل نوکوګوډ بغیر د داروغه نه بې څه نه کول
اکثر سپرنټنډنټان هم داسی وی ماچه څومره د جیلخانو سپرنټنډنټان لیدلي دی د ټولو دغه
یوشان حال وی ، زه خو به دې نتیجه ته رسیدلی یم چه سپرنټنډنټانو ته بالکل اوده ضرورت نشته
دی داخو به جیلخانو باندې بوج دی ځکه په جیلخانه کښې هم هغه کېږي چه څه داروغه کوی
دا ولې لوی عهدې پیرنګیانو د خپل قوم د پاره ساتلی دی. د جیلخانو دا سپرنټنډنټان به
اکثر سول سرجنان او دا سپرنټنډنټ چېری د اکثر مقرر ول یکار نه دی. د اکثر جدا سړی
به کار دی ، چه د هغه د قیدیانو او د جیلخانې انتظام سره څه غرض نه وی ، او به ولایت
کښې انګریزانو خپل ملک کښې د جیلخانو د پاره هغه طریقه اختیار کړې ده ولې چه د اکثر
سپرنټنډنټ وی نو هغه اکثر د جیلخانې انتظامی معاملاتو به وجه د ناجوړه او کمزوره قیدیانو
حق تلفی کوی او مریض ته د مریض په سترګه نه ګوری.

زمونږ په احاطه کښې به چه څه وخت داروغه صاحب رادننه شو نو هر چا به د
کوشش کوو چه ځان ورته د نورو نه رومبی ورا و رسوم او سلام ورته کوم خوک چه به
خبرېدل هغه به د داروغه صاحب په خدمت کښې حاضرېدل ، او د داروغه صاحب نه به
چه پېره جمع شول چه سړی ته به مېله او تماشه معلومېده چونکه ماته داکار ښه نه ښکارېده
زه د خپل ضمیر نه مجبوره وم ما به په دې کښې څه حصه نه اخیسته دا نه چه ګنی داروغه صاحب

ئه زه خفه وم ، یا می دهغه سلام نه کوو ، داسی نه وه ماله چه به نزدی راغی ، نوسلام
یې ورته کوو او دسلام د پاره به ورپسې ورتلم نه نو به دي خبره شاید داکټر صاحب
زمانه خفه ؤ او باوجود زما دکمزورتیا او ناجوړتیا زما په تکت چه کوم پې ډیره غاړې -
خان کښې لګېدلی ؤ هغه یې هم بندکړی او ډینټل سرجن چه زما دپاره کوم خوراک
اجازت کړی ؤ هغه یې هم ماته نه راکوه ، زما ملګرو به دا خبره محسوسه کوله لیکن د
رعایتونو په چه یې څه نوتیس پراخیستی نه شو ، اخر یوه ورځ زما ملګرو دومره جرئت
وکړو چه داروغه صاحب ته یې ووی چه کوم خوراک دده د پاره ډاکټر صاحب تجویز
کړې دی ، مهربانی وکړئ هغه دده د پاره جاری کړه ، هغه ورله جواب ورکړه چه دی
ی سپرنټنډنټ صاحب ته ووایی ، زه یوه شوم چه دده زړه نه دی . ولی چه ماته معلوم
وه چه سپرنټنډنټ صاحب خو دده په لاس کښې دی او بغیر دده دوینا نه څه نه کوی ، لیکن
زه دی خپلو ملګرو مجبور کړم چه ته ضرور هغه ته اووایه بله ورځ چه زه سپرنټنډنټ صاحب
دفتر ته اوغوښتم ما ورته ووی چه تا ته به معلومه وی چه ډینټل سرجن زما په تکت
زما د پاره د مرض د غاښونو د علاج په طور خوراک لیکلی دی او دا ته یې ویلی دی چه دا
ستا د مرض دارو دی . دا خوره ، دا به ستا مهربانی وی . چه دا خوراک زما د پاره مقرر
کړې او یا ماته اجازه راکړی چه په خپلو پیسو دا خوراک ماته راکېدی شی ، یعنی زه یې
خپلو پیسو راغواړم ، هغه ددی دواړه خبرونه انکار وکړو او ماته یې ووی چه زه یې مناسب
نه ګنړم چه تا لره یې درکړم ، ما ورته اووی چه تا ته به یاد دی چه تا ماته وئیلی وو ، چه زه
دی مرض ډاکټر نه یم او نه پوهېږم نو چه ته بیا په دی پوهېږې نه ، نو ته بیا څنګه یو خوراک
مناسب او بل خوراک نامناسب ګڼې ، نو بیا یې دا ځواب وو چه د خوراک په معامله پوهېږم .

اوماته د دی هیڅ ضرورت نه ښکاری ، ماپه زړه کښې دا خیال وکړو چه کوم ځای انصاف
نه وی او نه څه قاعده او قانون وی ، دیوسړی رضا او وینا قانون وی ، هغه سړی زیا ت
بحث کول څه فایده مند نه وی ، په دی وجه زه چپ شوم او بهرته راووتم او ډیر بارک
لازم په دی جیلخانه کښې د پرښتانه وو، لیکن زمونږه احاطی ته به راتللی نشو ، کله ناکله
به یی په مونږه د شپی پیره لګیده ، هغوی ته به ماسړی د خبروا تروډیره کمه موقع
وه ، دلته یو پښتون ملازم هم وو چه د دواوی د سوکړو ذکلی وو ، د هغه پیره به د د
زمونږه په بارک لګیده ، ډیر ښه سړی وو ماسړی لی ډیره مینه وه باوجود د دینه چه
ما به منع کولو لیکن بیا هم هغه به دانه کله ناکله څه څیز را وړه زه په جیلخانه کښې د پټه
څیزونو سخت مخالف یم ولی چه په دی باندی په سړی کښې کمزوری تیا او بزدلی پیدا
کیږی ما به ډیر پوهه کولو او منع کولو هغه نه منع کیده هغه سړی به زما سره ګپ شپ
لګیده و هغه تازه د ملک نه راغلی و او ماته به یی د ملک قصی کولی د هاړ پښکال د ....
وی کومی سره په زور کښې وه د وړځی خو به لاڅه ډیر تکلیف نه وو ، ولی چه ډیری
دی او سوړیی وو ولی د شپی تیرول ګران وو ځکه چه بارک کښې به بند وو اکثر به د د
بجو پوری دګرمی د لاسه چاته خوب نه ورتللو خو چه شپه به لږه یخه شوه نو بیا به ماشو
غذ ابولو ځکه چه لاس ، پښې په موو د ته برښنډی وی د یتولو څه شی نه وو چه
ماشو نه مو ځان پټ کړی وی . ولی چه د قیدی اوړی ، ژمی اغوستن کمبل دی
پڅکرمی کښې څوک ځان ته کمبل نژدی کولی نه شی ، زه دیوی میاشتی پوری په د
جیلخانه کښې وم او دی خلکو سره می ډیر ښې شپی ورځی تیری کړی چه په دی کښې
وا پس ډیره غازی خان ته بدل کړم چه څه وخت زه د ډیره غازیخان جیل ته ور....

نو ما ته معلومه شوه چه د جیل والاو او سیاسیانو په مینځ کښې جوړه شوې وه. جیل والاو هغه د سیاسیانو بارک ته راولیږلم، ټول راته راغونډ شول او زما په لیدو سره هغوی ډېر خوشحاله شول راتو غاړه وتل او په ډېره مینې یې راسره ستړي مشي وکړل زما مهربان لاله دوني چند چه د هغه د جیل نه وتلو کښې لږې ورځې پاتې وې راته یې ووئیل شکر دی چه ته راغللې او ومې لیدې، ګوندې ستا په دې طریقه جدایي او د نه لیدو ارمان په زړه پاتې شوې وُ سبالا چه سپرنټنډنټ راغي نو تللو نه اول ورسره لاله دوني چند زما د خوراک وجامو ذکر وکړو او ورته یې ووئیل چه کم از کم ده له دې دده د قد مطابق جامې ورکړې شي او بیایي ورته زما د خوراک لپاره ټکټ ښکاره کړو، هغه زر دارو غه ته حکم ورکړو چه ډله دده د میچ مطابق جامې فوراً ورکړئ او که چرته ګودام کښې نه دي نو ورته یې جوړې کړه او زما په ټکټ یې نیم سیر شوده او یوه چیتاکي کوچ زما د خوراک د پاره ولیکل زما د راتلو نه څو ورځې ورستو روژه راغله څه وخت چه روژه رانژدې شوه نو زمونږ هندوانو ملګرو سپرنټنډنټ سره ولیدل او هغه ته یې د روژه دارو لپاره د هما قسم ارام د رسولو او باقاعده انتظام کولو عرض وکړو، سبا له چه څه وخت سپرنټنډنټ راغي نو هغه تپوس وکړو چه څوک څوک به روژې نیسي او دا حکم یې وکړو چه څوک روژې نیسي هغوی ته به د خپل خوراک نه یو سیر شوده او یوه چیتاکي غوړي زیات ورکیدې شي او د پیشمنې لپاره به د تازه خوراک انتظام هم وکړې شي مونږه دده ددې مهربانۍ نه شکریه ادا کړه او هغه زمونږه د بارک نه رخصت شو مونږه ټول شپږ مسلمانان وو په دې کښې د دوه کسانو د روژې نیولو نه معذرت ښکاره کړو چه په هغې کښې یو بیر ستړو وادبل طالب العلم وو، مونږه څلورو کسانو په روژو نیولو باندې لاس پورې کړو

د ډیره غازي خان د هغه او پښکال ګرمي اسان کار نه و لیکن د خدای په فضل مونږ د
هیڅ تکلیف ونه شو او په آرام او خوشحالي ختمه شوه او اختر راغی، د قید یالانو غریبانو
ښه اختر وی. د اختر نه پس لاله دوني چند انبالوی او خان عبدالرشید خان خلاصیا
مونږ تولو سیاسي قید یانو ورله په خپل بارک کښې دیوی پارټی او اهتمام ورکولو انتظ
وکړو. په پارټی کښې هغې کسانو تقریرونه هم وکړو او د هغوی خدمات او قربانی خلکو
اوستایلې. په اخر کښې لاله دوني چند او خان عبدالرشید خان د تولو رونړو شکریه اد
کړه او وعده یې وکړه چه مونږ به د قوم او ملک هر قسم خدمت کولو ته تیار یو. او په
مینه او محبت سره رخصت شول.

ډیره غازي خان د آب و هوا په لحاظ ډیر خراب ځای دی ګرمي پکښې ډیر
زیاته وی، بارانونه پکښې نه کیږی، کال کښې یو وار یا په دوه کال به باران وشو
دا و بو د باران په ځای د خاورو بارانونه ډیروی او کله کله به داسې سیلی را
چه دوه، دوه، درې، درې شپې به خاورې وریدلې، د صحت لپاره
د خاورو باران ډیر خطرناک وو، داسې یوه توره او باریکه دوړه به د آسمان
را وریده چه لیدې نه شوه لیکن چه کیر چاپیره به دې هر څه ته کتل نو هر څه د
د دوړونه ډک وو. څه وخت چه به دا دوړه شروع شوه نو نمر به یې پټ کړو
دومره په شان به رڼه ورځ تیاره شوه د دې زول نه ځان ساتل ناممکن وو ځا
خو پریږده چه خوراک بچ کول ناممکن وو چه څه به هم دې خوړل هغې کښې خاورې
وې چه لاړې به دې توکلې هغه به د خاورو نه ډکې وې چه پوزه به دې سونړ
هغې کښې به خاورې وې نه توره د چاچامي بچ کیدې شوی او نه توره نه بسته

پاکه پاتې کېدې شوه چه سحر به دخوبه راپاځېدو چه په بستره به ځنګه اوده شوي
وو هم هغه شان چاپ به پرې پاتې وو هرچا به خرمخ ، خرغوبونه نیولي وو هر
سړی به تماشه وو ، چه یوبل ته به موکتل نوخندا به راتله او بیاماته ډېر تکلیف
په دې وو چه ماسره دنورو په شان ډېرې جامې نه وې ماسره یوه جوړه جامې وې
ځکه چه دسې کلاس قیدي لپاره په شپږو میاشتو کښې دیوې جوړې دورکولو حکم
وو او دا هروخت وینځل او وچول او بیا د دوړونه بچ کول ناممکن وو د دینه
علاوه د دوړونه ډکې سیلۍ به هم کله نه کله راتللې لیکن ددې تولونه زیات د
تکلیفونه ډک یوبل ګرم باد وو چه تول ګرمۍ کښې به باقاعده چلېده ، دسحر
اووبجو نه به شروع کېده او دڅلورو بجو پورې به وو . دا به دومره ګرم وو چه پرمخ
به دې ولګېده نو تا به ویل چه اور دی او د وجود هره ښکاره حصه به بې سوز وله
دې دلاسه به اخلاقي قیدیانو ته ډېر زیات تکلیف وو او بیا خاص چه کوم قیدیانو
به یا په باغ کښې کارکولو ، هره ورځ به څلور پنځه کسان بېهوشه کېدل ګرمۍ به وهل
ځکه کله به د ګرمۍ دلاسه یو دوه مړه کېدل ، مونږ به تولې دروازې دجېل بارک
بندې کړې وې ، دڅلورو بجو نه به مخکښې د بارک نه راوتلې نشو ، په بارک کښې به
هم دومره ګرمي وه چه څوک به د ګرمۍ نه اوده کیدې نه شو او د هر سړي نه به خولې
داسې بهېدې چه تا به ویل چه اوس دسین نه راوتلې وې ، دشپې به هم ډېره ګرمي
وه لیکن ګرمي سره به ګذاره کېده ، د دغه سیلۍ نه بچ کېدل ګران وو او ماسره خو
ځان د پټولو هم څه نه وو ، کمبل خو وو ، هغه مو د ګرمۍ په وجه ځان ته رانزدې کولې نه
شو ، نو زه خو به ورته دخدای په تکیه پروت وم ، د پنجاب په جېلخانو کښې د دې نه

خرابه جیلخانه بله نشته ځکه یې سیاسي قیدیانو ته داخوښه کړې وه او دی تر
قیدیانو د پنجاب توري او بدویلي دکوموملا زمانو نه به چه څه قصور وشو نوهغه
یې دی جیلخانې ته رالیږلي وو د ۱۹۲۲ع کال د اگست د میاشتی اخري ورځی د
ما زنګوری وو زه په خپل بارک کښې ناست یم او ما ته یې یو لفافه راکړه، لفافه کښې د
یو خط وو، چه هغه مې پرانست نو هغه مې د مور خط وو چه کلی نه یې ما ته رالیږلی وو
په لیدو یې ډیر زیات خوشحاله شوم ولی چه زما خپلې مور سره ډیره مینه وه او
هغې هم زه ډیر خوښ وم په هغې خط کښې د دعا او خیریت نه پس یې ما ته لیکلي و
چه الله تعالی په تا باندې ډېره مهرباني کړې ده، تا له یې زوی درکړی دی، د
خط ما تا ته د دې لپاره لیکلی دی چه اول تا ته مبارکي درکوم او بیا ستا رائې معلو
کوم چه هغه له څه نوم کیدو ځکه چه مونږ دا فیصله کړې ده چه هلک ته به نوم
کیږي.

زه د دې په لوستو نو ډیر هم خوشحاله شوم او د خدای تعالی دوېله او د خدای
درګښې مې دا زاری وکړه چه ای الله تعالی زما دا بچی سره د دې نورو بچو نیک او صا
لوی کړې، ښه اخلاق او علم ورکړې او د خپل مخلوق خادم یې وګرزوې ته یې نا
حافظ او مل د ګارشې او د ظالمانو د هر قسم ظلم نه یې وساتې. نوم مې د ده د پار
عبدالعلی تجویز کړو او په سباله مې مور ته خط ولیکه او دا نوم مې پکښې ورولیږه،
پرنګیانو حکومت یو نا پرسانه حکومت دی، هر انګریز فرعون او د فرعون په شا
خود مختاره دی، هر حاکم چه هر څه په خپل رعیت باندې وکړل ورسره پرسان
تپوس نشته.

زمونږ ملګرو کښې د پرداسې کسان وو چې د هغوی نه دومره تعلیم وا ونه یې نه دومره مالي حیثیت و لیکن مجسټریټ ورله سپیشل کلاس ورکړې وو او هغوی سره غه سلوک وا وزه یې په (C) کلاس کښې قید کړی وم او کال تېر شو ما سره هماغه د (C) کلاس سلوک وا و چا دې طرف ته فکر هم نه کولو، حالانکه د پر خلک به زمونږه د کتو پاره د حکومت له خوا اتلل چې د قیدیانو حال معلوم کړي او مناسب انتظام ورله وکړي ومانه د چا فکر نه وا و یا یې قصداً نه کولو. په ګرمۍ کښې به غیر زمانه تولو قیدیانو ته بهر خملا ستو اجازت وخو زه به یوازې په بارک کښې بند وم یوه ورځ جیلوالو زه د فترته بللم او وا ته یې ووې چې مونږه ستا د پاره دا تجویز کړې دی چې تا د تورې ورځې نمبر ار کړو په دې کښې به تا ته دوه فایدې وي یوه دا چې د بله معافي به درکېدی شي او به زر رهاشې وبله دا چې تا ته به د بهر خملا ستو اجازت وي ستا کار به نور هیڅ نه ی ضرف د دې سیاسي قیدیانو مشقت ورل او وراوړل وی لیکن ما د دې خبرې ه انکار وکړو ځکه چې دا زمونږه د اصولو نه خلاف و. زمونږه اصول د حکومت سره عدم عاون وا و دا خپو قسم تعاون وا و دا د یو سیاسي قیدی د پاره لویه د کمزورتیا نبره وه چې بهر خو به یې حکومت سره امداد نه کو و لیکن چې څه وخت جیلخانې له اغې نو بیا هم د هغه حکومت خوشامند ګر او امدادی شي.

دا یوه لویه ګناه او بداخلاقي وه. د لاله دوني چند د رهاکېدو نه څه موده پس به په ملک کښې انتخابات شروع شو او هغه د پنجاب اسمبلۍ ممبر منتخب شو نو هغه ه اسمبلۍ کښې زما متعلق یوه لویه واویلا او شور جوړ کړو او حکومت یې ملامته کړو ه ماسره ترا وسه پورې د (C) کلاس د قیدي سلوک کېږي. حکومت جواب ورکړه

چه هغه خو د سرحد قیدی دی ، پنجاب سره یې څه تعلق نشته نو ده ورته په جواب
کښې وویل چه نن ورځ خو هغه په پنجاب کښې دی چه په پنجاب کښې سیاسی قیدیا
سره څه سلوک کیږی هغه دې د ده سره هم وشی . نو په ډېر جګړو یې د پنجاب حکو
مجبور کړو چه یو حکم جاری کړې او زمونږ سپرنټنډنټ ته یې ولیکل چه زما متعلق
سرحد حکومت سره خط وکتابت وکړې ، سپرنټنډنټ صاحب ډېر ښه سړی ؤ
سره یې ډېره همدردی وه هغه فوراً سرحدی حکومت ته ولیکل ، لیکن هغوی جواب
ورنه کړو او چه ده پرې زور واچولو او یادګیرنی به یې ولیږلې نو د وخت تېرو لو
د پاره به هغوی څه کول مول ځواب ورکړو . ولې چه د هغوی مطلب ماله تکلیف راکول
او زما صحت بربادول وو په دې طریقه په خط کتابت کښې ډېره موده تېره شوه
لیکن لاله دوني چند ډېر زور ور سړی ؤ هغه دوی کله په قلاره پرېښودل او د هغ
وخته پورې به یې یادګیرنی ولیږلی چه اخرې زه یې په سپیشل کلاس کښې کړم .
دې وخت کښې جیلخانه کښې خبر شوم چه زما د ګرفتاری نه پس زمونږ د اتمانزوا
سکول طالب العلمانو په ټوله علاقه کښې یو لوی مهم شروع کړی وی کلی په کلی به یې مولود شریف
کولو ډېر خلک به ورته راغونډېدل ، زما ځوی عبدالولی به اول د قرآن شریف تلاو
وکړو بیا به ده او ماستر عبدالکریم قومی نظمونه ووې او د هغه نه پس به زما مشر
عبدالغنی ډېر ښه زړه نرمونکی تقریر وکړو بیا به یې خلکو ته ووې چه پښتنو تاسو لږ
فکر وکړئ چه زما بابا دې پیرنګیانو ولې قید کړې دی ؟ د هغه څه ګناه ده ؟ هغه خو نه قتل
کړې دی نه یې داکه کړې ده ، نه یې بل څه اخلاقی جرم کړی دی . زما د پلار جرم دا و
ستاسو بچو له یې تعلیم ورکولو او په تاسو کښې د اتفاق او ورورولی ، عزیز ولی خواهشم

تاسو کښې هغه رسمونه، رواجونه چه پښتانه پرې تباه کېدل، ورک کول غوښتل تاسو لې
د دنیا د مصنوعو موفو سره اوبزه په اوبزه ودرولئ. دغه گناه وه چه پیرنګیا نو هغه قید
کړو اود (C) کلاس سخت قید لې پرې ولګولو. اوس مونږه او تاسو په کار دی چه
هغه کوم کار چه مونږ د قوم د فایدې د پاره کولو جاری وساتو بلکه ترقي ورکړو نو
پیرنګیان به پوه شي چه پښتانه رابیدار شوي دي، ویښ شوی دی، مونږه اوس
په دوی خپل مطلب نه شو کولی اونه یې د باوولی شو.

د دوی د دې خبرو په قوم ډېر اثر وشو او د سکول سره هر چا امداد ونه شروع
کړل او سکول ډېره ترقي وکړه. ما چه دا خبرې واورېدې نو ډېر خوشحاله شوم
خدای شکر مې اداکړو چه زما قربانی بې ځایه او بې فایده نه شوه او ټول قوم محسوس
کړه چه باچاخان زمونږ ه د پښتنو د پاره قید ونه تېروي. هر چا په دی خبره
پر فکر او غور وکړو، ځکه زمونږ اصلاحي او تعلیمي پروګرام ته تقویت ورسیدو.

## مذهبي تعصب:

مونږ په دی جیلخانه کښې پنځه مسلمانان وو، مونږ ډېره موده د خپلو
ملګرو هندوانو او سکهانو له خاطره غوښه خوړلې نه وه او نه زمونږه یاده وه لیکن
سیالکوټ نه یو حکیم صاحب په دی تحریک کښې قید راغی نو هغه به غوښه خوړله او
مونږ هم شوق پیدا شو او مونږ هم د غوښې د خوړلو د شروع کولو فیصله وکړه
حکیم صاحب مو خپلو الاوله ورولېږه او هغه ورسره ټولې خبرې صافې کړې. د
خپلوالا وودا رأ بیره وه چه غوښه دی هم په دغه باورچي خانه کښې پخېږی حالانکه
دوغه هندو و، لیکن مونږه دا خبره خوښه نه کړه ځکه چه بعضې خلکو د دې نه

سخت پرهیز کولو دعغوی د خاطره په مونږ په هسپتال کښې خپله کښتوئ پخول
او خوراک په موهم دلته په بارک کښې نه کولو هسپتال کښې به مو خوړله . مونږ دخپل
ملکرو خوشحالولو د پاره دا قصه کوله . بل هله خوشحالولی شي چه په ځان تکلیف
تېر کړي لیکن زمونږه بعضی ورونو ددې دومره ناکام او ده قلاروبه کړوا
څه وخت چه مونږ په اوله ورځ هسپتال له لاړو نو هغوی زمونږ برخلاف
پراپیګنډه شروع کړه او قول سیاسی ورو نه پی راته ویړ سول حالانکه دوی کښې
اکثر و غوبنه هم خوره . مونږ چه واپس راغلو نو مونږ ته دسیاسی ورونو د
او خبرونه معلومه شوه چه دوی زمونږ نه ډیر خفه او په غصه کښې دي .
د دوی دا حرکت ډیر ناجایزه منکاره شو . زمونږ دهندوستان په خلکو کښې
دا یو لوی کمی دی چه یو څیز زمونږه په خیال او عقیده کښې خراب وی نو د هغه هم زغ
او برداشت کولی نه شو ، دهري عقیدی دخلکو نه هم په هغه شان توقع او ادزول
لګه زمونږ چه وي او دې ته فکر نه کوو که چیری دا څیز منع وی نو زما دپاره منع
دی دبل د پاره چه هغه زما د عقیدی نه دی څرنګه منع کیدی شی ؟ دا ایشیا دخلک
دا دعوه ده چه مونږه مذهبی خلک یو او صرف په دنیا کښې دلته مذهب پاتی دی لیکن
خو مره چه زما تجربه ده نو ما ته معلومه شوې ده چه بې شکه دا ایشیا په خلکو کښې ما
شته خو هغه مذهب په نوم مذهب دی او دخدای او رسول دین ، هغه ریښتینی
مذهب نه دی ، د ریښتینی مذهب نه دوی ناخبره دي . هر مذهب کښې ازاد
ده ، رواداری ده او لوئی نظری ده لیکن دوی تری خبر نه دی او نه چا خبر کړي دي
حقیقت دادی چه دا قول اسمانی مذهبونه دخدای مذهبونه دي او دنیا ته

با هر دنیا

اتفاق مینې او محبت او د خدای د مخلوق دارام او خدمت د پاره راغلي دي. د هر
یو مذهب د پیرو دا فرض دی چه د خدای د مخلوق له منځ نه کرکه او نفرت لیری
کړي او مینه او محبت پکښې پیدا کړي او د یو بل سره امداد وکړي خو موږ د دې حقیقت
نه چا خبر کړي نه یو - او نه خو په خپله کوشش کړی شو -

ماده تالستای یو کتاب کښې چه شپږ ویشت قصې یې پکښې لیکلې دی دا قصه
وستې ده چه یوه چینه ده د هغې نه هر یو محلت له نلکه راغلې ده خو د هر یو محلت
نلک په دې نښښي دې چه زمونږ د نلکي او به پاکې او خوږې دي او د دې نورو نلکو
او به ناپاکې او ترخې دي. دی نه هیڅوک فکر نه کوي چه دا ټولې نلکې د یوې چینې نه راغلې
دی نو څنګه یوه پاکه او خوږه شوه او نوری ناپاکې او ترخې شوې او اسلام خو دا تعلیم ورکوی
چه د مسلمان به په دې کتاب کښې هم ایمان او عقیده وی او په وړاندینیو مذهبو او کتابونو
هم « والذین یومنون بما انزل الیک وما انزل من قبلک » دا د دې ثبوت دی چه
اسلام ټولو مذهبونو سره رواداری غوره کړې ده.

چه کوم ځای زمونږ سیاسي ورونه ټول غونډ ولاړ وو نو زه ورو ورو نږدې
ورتلم او ورته می داوویلې چه دا سوراج خوما ته د یو ګران ښکاره شو او سوراج به د هغه
سوراج وی چه هغه کښې هر چا ته د خپلې عقیدې او خیال ازادي نه وي ستاسو به دې
نظرئې ماله افسوس راځي. که چیری د غوښې خوراک د چا په عقیده منع وی هغه دې
خوري او که د چا په عقیده هغه منع نه وی نو د هغه نه خفګان مناسب نه دی. موږ
ستاسو د عقیدې دومره مراعات کړی دی چه موږ نه حکومت ویل چه تاسو به په هندی
کیه باورچي خانه کښې پخلی کوئ مګر موږ حکومت ته وویل چه موږ غوښه به دغه

باورچي خانه کښې نه پخوو ، په بل ځای کښې يې پخوونو زمونږ دغوښې په خوراک سناسو
خفګان او اعتراض ناجايزه دی . ستاسو دا خيال دهندوستان دسوراج او اتفاق
دپاره موزون نه دی ځکه چه په هندوستان کښې دمختلفو عقيدو او خيالاتو خلک موجود
دي نوکه چيرې هريو قوم خپلې عقيدې او خيال بانديې نورمجبور وي نو دا به ګرانه شي
بلکه نتيجه به يې ډيره خرابه راوخيژي او دهندوستان خلک هله دترقي او ازادۍ
معراج ته رسيدی شي چه هرچا له دخپلې عقيدې او خيال ازادي ورکړو او د هيڅ
قسمه ظلم او جبر په چا ونه کړو . زما دی خبرو په او ريدو ددوی قهر او خفګان
کم شو او بيا دهغوی هغه اعتراض او خفګان پاتي نه شو .
زمونږ ډير هندوان او سکهان سياسي وروڼه وو چه هغوی دغوښو په خوراک
اموخته وو او ډير زړه به يې غوښې ته کيدلو ، ليکن نور و نه مجبور وو . زما د سيالکوټ
يو بندۍ ملګری نومي هند واشناو ، ډيرښه سړی وا و دغوښې ډير شوقي و چه څه وخت
به مونږ هسپتال ته روان شو نو هغه به پټ ماله چل کټوری راکړو چه په دې
کښې ماله لږه غوندې غوښه راوړه ما به هميشه هغه له هغه کټوری ډک راوړلو او
به په پټه په بارک کښې خوړله . هغه چه به کله ناکله په قار شو نو چيلو هسک وانوته به
ډير کنځل کول چه وګورئ دوی دخوراک په شيزونو کښې مونږ ته منع هب راوړاند
کړي دی .
مونږ دټولو سياسي قيديانو شريکه يوه باورچي خانه وه او دا ډيره ښه کار
چه مونږ مسلمانانو هندوانو او سکهانو به يوې کښې ډوډۍ خوړله . تحريک مونږ
سره وروڼه کړي وو دا د کانګرس او خلافت برکت و او د هيڅ قسم نه مو ديو بل

ضرورت نه کوله. بوه ورځ یکښې اتفاقاً د خدمتګار سوال را پیدا شو مولانا محمد اسماعیل
غزنوی دا سوال اوچت کړو چه په باورچي خانه کښې یو مسلمان خدمتګار هم په کار
دی او د باورچي خانې په خدمتګارو کښې دې یو مسلمان هم وي لیکن هندوان او سکهان
په دې کار راضي نه وو او د مولانا برخلاف به یې دا خبرې کولې چه کوړي دی په مونږ
کښې بې اتفاقي پیدا کوي ما ورته دویل چه په دې خو به اتفاق او محبت لا زیاتیږي
شي ځکه چه مسلمان به هم د باورچي خانې په کار کښې شریک شي او قول کار به په شریکه
وکړي. زما دې خبرو ته چا د بر فکر ونه کړو او زما کوششونه څه مفید ثابت نه شول
چه څرنګې هندوان او سکهان پخپلو خبرو ټینګ ولاړ وو. هغسې مولانا صاحب هم
خپله خبره نه پرېښوه او ورځ په ورځ دا جګړه به زیاتېده وه زمونږ یو ماستر صاحب
وچه هندو و هغه خو به ویلې هندوان پاک دی او مسلمانان ناولي دي، لیکن چه کوم
هندوان پوه او هوښیار وو نو هغوی به داوې چه دا د صفایې سوال دی او چونکه مسلمانان
د صفایې خیال د پر نه ساتي نو په دې وجه مونږ نه غواړو چه مسلمان دې په کیچن کښې
کار وکړي. دا قصه جاري وه او ورځ په ورځ زیاتېده او سختېده، دا خو یو قسم
انې وې په اصلیت کښې هندوانو مسلمان خدمتي په کیچن کښې نه پرېښو. یوه ورځ ما
خپل ډاکټر ته چه هغه یو هندو و دوه مشقتیان د خپل بارک چه یو هندو او بل مسلمان
و د کتو او معاینې د پاره پیش کړل چه ته دا دواړه وګوره چه په دوی کښې کوم صاف او
پاک دی، هندو به په باورچي خانه کښې کار کولو او مسلمان زمونږ د بارک جارو مارو.
ډاکټر صاحب به سره شان هغوی وکتل او ډکتو نه پس د مسلمان په حق کښې فیصله
وکړه چه دا مسلمان د دې هندو په نسبت پاک او صاف دی او په هندو کښې څه ناپاکه

په وجه سپږۍ شوي دي نو ماخپلو هندوانو ورونو ته ووې چه د ډاکټر صاحب په
فیصله کښې څه وائې ستاسو د صفائی دا بانه خو هم پاتې نه شوه. لنډه داچه د په کشمکش نه
پس اخر په دې فیصله وشوه چه یو مسلمان دې هم په باورچي خانه کښې کارکوي او
دهغه به صرف دا کار وي چه مونږ په کومو لوښو کښې ډوډۍ وخورو هغه به اوچتوي
او وینځي به یې او په دې طریقه دا مسئله ختمه شوه .

د هندوانو د دې قسم خبرو او رویې په ما هم اثر وکړو او زما زړه چه په هغه
کښې د خدای د ټول مخلوق سره یو شان مینه محبت و څه ناڅه فرق پکښې پیدا
شو. یوه ورځ ما خپلو ورونو سره خندل چه زه دلته صاف زړه راغلی وم او هغه
هر څه کړي، او نفرت نه پاک او هیڅ قسم داغ پکښې نه و لیکن ستاسو په صحبت
چه نن زه ورته ګورم داغدار شو. مذهب خو دنیا ته ددې د پاره نه دی راغلی چه
خلکو په منځ کښې نفرت پیدا کړي بلکه مذهب خو د مینې محبت علمبردار دی
بله عجیبه خبره مې دلته دا ولیده چه په ګرمۍ کښې به تقریباً ټولو هندوانو زما د ملګ
یخې اوبه څکلې او هیڅ باک به یې نه کولو لیکن یخنۍ کښې به یې ترې پرهیز کولو او زما ملګ
به نه رانږدې کیدل حقیقت دا و چه په ګرمۍ کښې به ما د دې خپل منګې نه کپړه جا
کړې وه او ساعت په ساعت به مې هغه لمده وله باد به لګیده نو هغه اوبه یخې ...
ما خو به دا خوارې کوله او دوی نه دومره خوارې کیدلې نه شوه .

مونږ په جیل کښې وو چه بهر چیرته یو هندو د پیغمبر اسلام (ص) په شان
ګستاخي کړې وه نو یو مسلمان را پاڅید و هغه یې قتل کړو. هندوان د هغه هند
ملګري شول او مسلمانان د هغه مسلمان او په دې باندې ټول ملک کښې یوه هنګا

جوړه شوه او دازادي او قومي تحریک نه دخلکو توجه فرقه داریت ته وګرځیده تردي
وخته پورې چه دقومي تحریک د وحدت دپاره ځومره کوششونه شوي وو، هغه په بیس
اوښتول . په کار خو داوو چه ځوک غلط کار وکړي نو ټول هغه ته غلط وواېي نه سړي توب
نه مذهب نه انسانیت، نه شرافت، نه اخلاق داواېي چه مونږ د غلط کار او غلط
سړي ملګري شو د هرچا خپل مذهب دی او خپله عقیده ده، یو سړی داسې کار ولې
کوي چه دبل مذهب او بلې عقیدې خاوندپرې خفه او غصه شي حالانکه هیڅ
مذهب ددې اجازت نه ورکوي . دا ننن چه دهندوستان او پاکستان هندو او
مسلمان دنفرت په لوی عذاب کښې ګیر دي نو ددې هم دا وجه ده . تاسو دي خبرې
ته هم فکر وکړئ چه هندوستان کښې دغوا او جماعت په سر فرقه دارانه فسادونه پېښ
کېږي او زمونږ شریک دښمن دا حربه زمونږ د قومي اتحاد خلاف استعمالوي
په سړي دي ته وګوري نو حیران شي چه یو بنده وینې او بینا بنیادم دغوا په حلاله بدګڼي
دبل بنیادم ووژلي یعنې د بنیادم حیثیت او حقیقت دیوې غوا الاغنا ورنه هم لاندې
او غیر ضروري دی او دې بل اړخ ته دخداې دکور په خوا کښې دتیرېدو نکي جلوس
دولکي او سرنا او ازدومره لوی جرم دی چه هم ددغه درحمان او رحیم خداې په پاک
په دهغه د مخلوق انسان په مرګ چاړه رابنکل کیږي . ددې واقعاتو نه فسادونه
جوړشي، کورونه تالاشي، ماشومان یکښې وسېزلی شي او دا هرڅه په دې جذبه
کیږي چه دخداې پاک دلارلې دین خدمت کېږي . په دې سلسله کښې ماته
یو قصه رایاده شوه زمونږ دکلي دخپلې کورنۍ یو مشر دخپل ورادهٔ دلاسه دخپل
کلي په جومات کښې دلمانځهٔ دپاسه په سجده قتل کړی شوی و تفتیش له پولیس راغی
او

پولیس کپتان پیرنګی و هغه جومات ته بوتلو سره ننوتو هلته ولاړ یو سړی ووته وویل
« صاحب ! بوټان وباسه جومات دی » پیرنګی ورته ووې چه ستاسو په زړه کښې
دخدای دکور د هم صرف دومره احترام دی چه پیزار سره پکښې نه ګرځئ او دهغه خدا
پیداکړی مخلوق پکښې هم دهغه دوړاندې په سجده کښې پروت وینئ ؟ دا ستاس
عجیبه مذهب دی او عجیبه تعلیم دی .

دهندوستان دپیر عجیبه مخلوق دی دوی پیرنګیانو دخپل تکبر او غرو
په وجه دځان نه خفه کړي دي او پخپله مقابله کښې ودرولي دي ځکه چه زمونږ بارک
چه به کله یو پیرنګی دمعاینې دپاره راغی نو یوه عجیبه تماشه به وه مونږ کښې به ده
کس داکوشش وچه په خه چل او خه طریقه به دی خپل ځان طرفته مایل کړم او چه
به هغه مونږ طرف ته خپل رغبت ښکاره کړو او خه لوړې خبرې به یې راسره ښې وکړ
نو چه دوباره به راتلونو لا بارک ته به راد ننه شوی نو چه مونږ به ورته لاس په نامه
وو لا مونه به موورته جوړه کړي وو سلا مونه به موورته کول او مسکې مسکې به ورته کې
او داعادت خاص زمونږ په انټیلیجنشیا یعنې زمونږ په تعلیم یافته خلکو کښې لهد
و . زمایو مهربان چه دلایلپور وو زما دجیلخانې استاد و او یو لوی وکیل و
ماسټر کوردت مل نومیده او هر وخت به یې سیاسی کتابونه لوستل دپیر عالم او
سړی ولیکن چه یو ځل به کوم پیرنګی ورسره ښې خبرې وکړې نو بیا به پوړی دی پټ
و . هغه یوه ورځ ماته دخپل قید دلایلپور دجیلخانې قصه کوله چه زه به یې په او
باندی حیران شوم ما به په زړه کښې وې چه دهندوستان خومره ښه خلک دي
دوی دپیرنګیانو سره خومره ښه محبت دی دهغوی زور او ظلم او بدسلوکی و

او ومخی ته ودریږی نه اونه یې محسوسوی . هغه غریب ، بې ګناه د پېښې کمشنر دوه کاله قید کړی ولیکن بیا هم دی دهغه نه خوشحاله و دهغه برخلاف یې یو ذره هم کښی څه نه وو بلکه همېشه به یې ماته دهغه صفت کولو چه هغه بیچاره د پر ښه سړی دی او دی ښه سړیتوب وجه داوه چه څه وخت یې دی قید کړو نو هغه یوه ورځ جیلخانی له راغلی و او دی پوښتنه یې کړی وه او دده په مخکښی دومره ویلی وو چه دوکیل صاحب چکی موسپینه کړی ولې نه ده ؟ نو دی دومره خبره دی خوشحاله وبلکه دهغه احسانمند و لوچه خومره ده سره ظلم او زیاتی شوی دهغه تری هېر و . هغه به کله ناکله په فخر داقصه ماته کوله چه د پېښې کمشنر جیلخانی له راغی نو زما پوښتنه یې وکړه چه هغه کوم ځای دی بیا ماله راغی جیلو الوته یې وویلی چه دده چکی موسپینه کړی نه ده داسپینه کړئ . ما به ورته ویلی چه ماستر صاحب ته یې بې ګناه دوه کاله قید کړی یې او د دېره غازی خان غوندی ګنده جیل ته دالېږلی یې او مالی نقصان یې دی علاوه دې ته فکر نه کوی او چکی رسپینول در ته یاد دی .

ما به همېښه خپلو سیاسیانو ورونو سره خندل چه ستاسو مطلب سوراج نه دی بلکه ستاسو مطلب دادی چه پېرنګیان دی مونږ هم ځان سره په حکومت کښی شریک کړی او څلرږه غوندی حصه دی پکښی راکړی .

## لاهور جیل ته دوباره تګ :

زما دغنبو نو مرض ورو ورو بیا په زیاتیدو شو ماته یوه ورځ دارو غه صاحب د سپرنټنډنټ په مخکښی داخبره وکړه چه نن سبا جرنیل صاحب بیا په دوره باندی دلته راځی ته دخپل مرض حال هغه ته ووایه او عرض ورته وکړه چه تا دعلاج د پاره بیا

دلاهور جیلخانی ته ولیږي لیکن ما ورله داجواب ورکړو چه جرنیل صاحب ته دهیڅ
قسم عرض معروض نه کوم خکه چه زما اصلی ذمه دار سپرنټنډنټ صاحب دی اوکه
چیری زه څه وایم نوده ته به وایم. سپرنټنډنټ صاحب هم زما دخبرې تائید وکړو
او په جواب کښې یې راته ووئیل چه د جرنیل صاحب د دورې پس به زه تا لاهور ته لیږم
هغه زما دپاره ولیکل چه زه دې دعلاج دپاره لاهور ته بدل شم او زر ترزره حکم راغی
او زه لاهور ته روان شوم. داخل زما تلل په پټه نه وو زه تولو سیاسی ورونو سره یو
ځای شوم او په خندا خوشحالی سره ترې رخصت شوم او په خیریت لاهور ته ورسیدم
د ورسیدو سره یې زه خپل زوړ اشنا داروغه خیرالدین خان ته پیش کړم ولی چه مخکښې
علاج دپاره راغلی وم ده سره می لیده کاته شوی وو. هغه زما نه پوښتنه وکړه چه ته د
علاج دپاره د دیره غازی خان جیلخانی نه راغلی یې او پس دهغه نه یې زما صندوق
او بستره ایساره کړه او خپل اردلی یې ما سره کړه چه ما هغې احاطې ته بوځي چه کوم ځای
د سیاسی قیدیانو دپاره مقرره وه لږ چه مونږ وړاندی شو نو زما خیال داو چه ما به
هغه ځای له بیایي چه مونږه پکښې وړاندې وو چه مونږ لاړو نو ما یو وړوکې غوندې
دروازه ولیده دهغې په خوا کښې یو قیدی نمبردار ولاړ و نو چه څه وخت مونږ ئې ورته
غوندې دروازې ته نزدې شو نو د داروغه صاحب اردلی هغه ته اشاره وکړه او هغه
فوراً ور پرانیسته او زه هغه ځای ته ور دننه شوم هغه ځای ډیر وړوکی او تنګ و زه
لا په دې فکر کښې وم چه دننه کوټه کښې می اغا صفدر او ملک لال خان په نظر شو دهغوی
په لیدو وانه هرڅه هیر شو او زه ډیر خوشحاله شوم چه خنکه دی ډګپ شپ دپاره هم
ملګری بیا مونده. لاله لاجپت رای او دهغه سره یو بل هندو ولیده وهم په دی بارک کښې

ناست وچه څه وخت ور د ننه شوم هغه تهول را پاڅېده او په مینه محبت یې ما
سره ستړي مه شې وکړل. د دوی په ملاقات زه نور هم ډېر خوشحاله شوم، زمونږ
داځای دومره تنګ وچه مونږ پکښې کرځېدی قدرې نه شو او نه مو پکښې د څه قسم
ورزش کولی شو. او بله دا چه دوه ځی خو به موږ نه څه ګذاره کېدی شوه لیکن د پښې
به مونږ ته ډېر زیات تکلیف وه ځکه چه هوا پکښې بالکل نه لګېده ډګرمۍ دلاسه به پکښې
مونږ پوره خوب کولی نه شو. تهوله ورځ تېره شوه او ماښام شو لیکن زما بستره او صندوق
رانغلل او د شپې چه څه وخت ماله یې ډوډۍ راوړه نو هغه د سپېشل کلاس نه وه بلکه
د (C) کلاس خوراک وه ما چېلو ملګرو سره د دی خبری ذکر وکړو چه زه خو د سپېشل
کلاس قیدی یم ما سره ولې د (C) کلاس سلوک کېږي لیکن هغوی زما په دې خبرو
کښې څه دلچسپي وانه خیسته او په هغه دغم کښې یې تېره کړه زه هم چپ شوم لیکن
داخبره زما په ذهن کښې نه ځائېده چه بغیر د څه قصور نه جېلوالا ما سره ولې د دې قسم
سلوک کوي. ما څه کولی نه شو او نه وو ته زه خپلو ملګرو پرېښودم هغوی هم زما د پاره
قدم اخیستو ته تیار نه وو. زما بستره او صندوق رانغلل بیا هم چه زما په صندوق کښې
د خوراک څیزو هغه رانغلل د هغه په باره کښې داخبر راغی چه هغه به په دفتر کښې
وت وي او د ضرورت په مطابق به تاله درکېدی شي. د دې مطلب دا وچه د نیمې نه
ات به جېل والا خوري. جېلخانه ډېر یو عجیبه ځای دی، د بندوله پاره یې یو قانون
جوړ کړی دی، لیکن په حقیقت کښې قانون نشته د داروغه او سپرنټنډنټ خوله قانون
او هر څه چه غریب قیدی سره هغوی کوی هماغه کېږی. ډېره غازی خان جېل کښې
خوراک څیزونه ځان سره کېښودل جایز و او دلته ناجایز شو او داخبری څوک

د ښتياوو له وروستي هم نه شي ځکه چې د کمزورۍ او د زورورو معامله ده د ګډې
او شومبنځ قصه ده . بلبه وروځ خيرالدين خان زمونږ بارک ته راغی ما ورته ووې
چې زه افسوس کوم چې دا دومره ورځي تا ماله بې غيرد څه وجهې تکليف راکړو هغه را ته
جواب کښې داووې چې ستا وارنټ سره د مجسټريټ د سپيشل کلاس د تصديق چيټ
نه وه نو مونږ څنګه دا يقين کړې وای چې ته په رښتيا په سپيشل کلاس کښې يې ما ورته
چې اخر زما په ټکټ د سپيشل کلاس تصديق د غازي خان د سپرنټنډنټ د طرف
شوی دی هغه جواب راکړو چې دا زمونږ د تسلي د پاره کافي نه و ما ورته ووې چې د
اول خو هم راغلی وم او تا ليدلی وم هغه وخت خو ما سره صندوق او بستره نه وه او
خيلي جامې اغوستي وې نو بيا دا څيزونه ما څنګه راپيدا کړل ؟ هغه جواب راکړ
زمونږ خيال وچې هسې د اوره چا په لاره کښې ورکړي دی . زه پوه شوم چې د
بحثي شروع کړه نو ما دا خبره پرېښوده . مقصد دادی چې د جيل والاو يو عجيب
قسم عادتونه وي هغوی هميشه په دې فکر او کوښښ کښې وي چې په څه طريقه به
خدای مخلوق ته تکليف ورسوو . دا ټولې خبرې زما د ملګرو په مخکښې وشو
ليکن هغوی بالکل خاموشه وو .

هر کله چې زمونږ دا دعوه ده چې مونږ به حکومت سره تعاون نه کوو نو
دا مناسب دی چې په جيلخانو کښې هم هغه حکومت سره تعاون او ملګرتيا و
د حکومت سره تعاون او ملګرتيا خو په هيڅ شان زمونږ د شان سره جايز
ده او بيا د خپلو ملګرو برخلاف او داسې ملګري چې د خدای د پاره يې مونږ
د قوم او ملک . د خدمت د پاره ملاتړلې ده . څو ورځي پس زما د غامښونو د کتو

بیا هم هغه د ډیټل سرجن راغی زما د غاښونو او اورو په لید وخوشحاله شو او ماله
یې مبارکي راکړه چه غاښونه دې بچ شو. زما د ژامې یو غاښ یې وایستلو او نور
غاښونه یې راله په ښه شان صفا کړل او نوي دارو یې د پوړې کولو د پاره راته ولېګل
د تلو په وخت کښې یې دارو غه صاحب ته وویل چه څلور ورځې پس به بیا زه د غاښونه
کودم او زمونږ نه رخصت شو.

## مطالعه:

مونږ په جیلخانه کښې د قرآن مجید درس شروع کړې وو د سحر د لمونځ نه
پس به تقریباً دوه ، درې ګېنټې د قرآن په تلاوت کښې مشغوله وو. څلور کسان وو
او مونږ سره څلور قسمه تفسیرونه وو، د څلورو واړو ترجمه به مونږ په ښه شان اوو یله
او بیا به مونږ په ښه غور او فکر کولو لوکله نا کله به مو خپلې خپلې رائي هم ورکولې چه څه
وخت به مونږ د قرآن درس شروع کولو نو دا مو فیصله کړې وه چه هغه ټولې خبرې
او قصې چه د ودې کولې نه مونږ اوریدلي دي او زمونږ په زړونو کښې ناستې دي
هغه بالکل د زړه نه ایستل په کار دي او په یو صاف زړه د قرآن شریف په مطالبو او
تعلیم باندې غور او فکر کول په کار دي او د هغو په اصلي معنو او مفهوم ځان پوهول
په کار دي او دا ځکه کیدې شي چه مونږ د خپل زړه نه هغه ټولې خبرې او قصې
بهر کړو او که چیرې دا ونه کړو نو بیا د قرآن په حقیقت رسیدې نه شو ځکه چه مونږ
څکښې د هغه متعلق یوه رائې قایمه کړې ده. دې خبرې مونږ ته ډیره فایده ورسوله
او په دې طریقه مونږ د اسلام د خوبو او ښیګڼو نه په ښه شان سره واقف شو.
ورځ په ورځ زمونږ شوق زیاتیده ولیکن ملک لال خان غریب چه هغه د خپل زړه نه

هغه دهمونه ليري نه کړي شو، زمونږ سره ونه چليدی شو او بوخو ورځی پس هغه په
درس کښې شرکت پر ېښود. مونږ يو ځل قرآن کريم ختم کړو او بيا دوباره مو بيا شروع کړو
کومه مزه لطف او علم او پوهه چه د دی درس نه ماته حاصله شوه زه د هغی بيان کولی
نه شم. زه د قرآن په خوبو سره پوه شوم، د اسلام د تعليم نه خبردار شوم او د مذهب
په حقيقت ورسېدم، د درس نه علاوه اغا صفدر صاحب به مختلفو مضمونو باندی
خه نوشتونه ليکل هغه به هم ماکتل او بيا به مې پخپل نوټ بک کښې خان سره نقل کول او
د مقولونه زياته د فايدی خبره زمونږ د شپې تبادلهٔ خيالات و. ورځ به په خه طريقه
تېره شوه ليکن په دی ځای کښې شپه تېرول ډېره گرانه وه، او بيا دی طريقه به مو خپل
وخت تېرولو. خه ورځې پس ولی او محمود زما د ملاقات دپاره راغلل د ملاقات په
وخت کښې راته وويل چه هغوی عبدالولی موکا ته بيا لي چه د سترگی اپريشن يي وکړی
ما چه د هغه سترگی ته وکاته نو د هغی هغه داغ د اول نه ډېر زيات شوی و او په دی
مې زړه ډېر خفه شو او د دې ماشوم په حالت مې ډېر افسوس وکړو ليکن بغير د افسوس
نه ما بل خه کولی شو؟ زه چه خه وخت قيد شوم نو ما ډېر خطونه کلی ته وليکل چه د ولی
د سترگې غور وکړی او موکا ته يې ولېږئ ليکن د ولی غريب په حالت چا غور ونه کړو او
چا د هغه سترگی ته فکر وکړو او په دې کښې يو نيم کال تېر شو او خه وخت چه د هغه مرض
په زياتی شو نو بيا يې هغه موکا ته راولېږه ليکن دې تلو هغه ته خه فايده ونه رسوله
غفلت په سبب د هغه يوه سترگه بې کاره شوه او دا داغ زما د زړه نه ليرې نشوی
هر وخت چه ماته د ولی سترگه رايادېږی نو زړه مې ډېر زيات خفه شی.
ولی دوی سره چه ما خه وخت ملاقات ختم کړو او هغوی رخصت شو او زه بېرته

نو هغه نایب داروغه چه چا زمونږ ملاقات کړی و دلاسه ونیولم او یو سړی له بوتلم چه هغه
له هم خپل خپلوان ملاقات له راغلی وو. داروغه راته ووې چه هغه هم ستاسو د ډلې دی او
ستاسو د عدم تعاون ورور دی او دی دیوکال د پاره په ضمانت کښې جیلخانې ته راغلی
دی او دهٔ د سرجان لارنس بُت چه په یو لاس کښې یې توره ده او بل لاس کښې قلم دے
د ماتولو د پاره تلی ولیکن کامیاب نه شو او گرفتار شو ځکه چه د ده دا خیال و دا بت د هند
ستانیانو د پاره یو لوی د بې غیرتۍ څیز دی او په دی وجه د هر هندوستانی فرض دې چه
دا مات کړی ما ورته ووې چه دا خو ډېر غیرتی سړی دی او دا خو یې یو لوی د غیرت کار
کړی دی هغه ووې چه بې شکه کار خو یې د غیرت کړی دی لیکن اوس بې غیرته شوی
دی یوه هفته یې لا په جیل کښې پوره شوې نه ده لیکن بیا دې حالت ته رسیدلی دی
چه شپه او ورځ ژاړی او چغې وهی چه په هره طریقه چه کیدی شی ما د دې قید او بند نه
باسئ نن ورله مونږ خپل خپلوان د ملاقات له پاره راغوښتی دی راځه وا ورته چه
ورته څه وایې. دی قیدی غریب هغوی ته لاسونه جوړه کړی دی او ډېر په عاجزۍ هغوی
ته ګلیا وچه په هره طریقه چه وي زما ضمانت وکړئ او ما د دی بلا نه و باسئ. په دې
کښې پری دی داروغه اواز وکړو چه اوس یوازې په ضمانت وتی نه شی بلکه معافی
ورسره هم غواړې نو ډېر غریبې یې جواب ورکړو چه معافی ورسره و غواړم نو بیا
به پرېږدئ هغه ووې چه هو. ده وې ښه ده معافی به هم وغواړم نو ما پری اواز
وکړو چه پوزه به هم راکږې نو وې چه ښه هغه به هم راکاږم نو بیا می ورته ووې
چه یوازې پوزه را منګوبه کار و نه شی دې سره به دا او بل پل هم جوړ وې وې چه هغه
څه وی ؟ نو ما ورته ووې چه ذاسی خاودې به راغونډې کړې نو بیا به داسی داسی

کارونه نور هم وکړي نو هغې غریب وي چه ښه ده دا به هم وکړم خو چه ددې جېل نه بهر شم
ددې په اوریدو ما ډیر وخندل او زه ترې روان شوم. ما په زړه کښې ووې چه داسې
جذباتیان ځوانان وي او دایي همت وي نو مشکله ده چه هندوستان ازاد شي یا د پیرنګیانو
نه څه نه څه حصه په حکومت کښې واخلي. دا قصه مې لاله لاجپت راې او اغا صفدر ته هم
وکړه او لاله جي سره مې وخندل چه په پنجاب کښې ددې قسم ځوانان شته دي نو امید د
چه تاسو ډیر زر سوراج حاصل کړئ او موږ ټولو به دې خبره افسوس وکړو چه سر
یو کار کولی نه شي نو هغه ته دې ملا نه تړي، او دداسې کولو نه نه کول بهتر وي. زمونږ
ځوانانو له په کار دی چه هر یو کار شروع کوي چه په هغه ډیر فکر کوي د هغه په ټولو تکلی
باندې په ښه شان غور کوي که چیرې هغوئ ټولو تکلیفونو ته تیار دي نو هله دې هغه کار
ملا وتړي او که چیرې دا تکلیفونه تېرولی نه شي نو ښه به دا وي چه په ارام کور کښېنې
او دعا کوي ځکه چه د ده بزدلي قومي مقصد ته نقصان ورکوي. اګر چه زه دا وخت
کانګرس کښې نه وم، په خلافت کښې قید شوی وم، صرف زه او لاله جي په سپیشل کلاس
وو لیکن هغه ته د ورزش د پاره په ټوله جیلخانه کښې د سحر او ماښام د ګرځید وا
و او ما ته نه و. هغه به په کټ کښې خلاصه او زه په ځمکه. نور هم هغه ته ډیر رعایتو
حاصل وو. جیل والا به یې ډیرې خوشامندې کولې. په هفته کښې به یې یو ځل ملاقات
کولو خلکو به ورله قسم قسم میوې راوړلې په جیلخانه کښې ورته د هر قسم ارام و. موږ
یو داسې تنګ او ځان له ځای کښې قید وو چه موږ هیڅ د دنیا له حاله خبر نه وو نه
موږ ته خوراک راپرېښودل او نه موږ ته د دې ځای نه د وتو اجازت و. په دې
موږ د نورو قیدیانو د حاله نه خبر یو چه هغو غریبانانو سره د څه قسمه سلوک

لیکن زمونږ د احاطې په دروازه کښې یو سوری وچه د هغه نه بهٔ مونږ ته د قیدیانو
یوه تنتنه ښکاریله سحر به تری په سوونو قیدیان چاپیره وو. دا یوه ډیره عجیبه
نظاره وه چه دا به لیدو به هر سړی غمجن او حیران وچه دې خوارانو سره د دې
قسمه ذلیل سلوک کیږي لیکن مونږ هیڅ دعوی څه مل د کولی نه شو. ما به کله کله
لا لاجی ته وې چه که خیروی او هر کله بهٔ سرته ووې نو د دې خوارانو د پاره په اخبارانو
او په اسمبلی کښې څه نه څه ایجی ټیشن وکړې ولی چه دوی ډیر مظلومان او بې اسرې
دي یوه تنتنه ده چه په هغې کښې شاید د ناستی د پاره پنځه یا شپږ ځایونه وو او
د دې د پاره دری ډلی قیدیان وو د هر یو سړي په سر به دری، څلور کسان ولاړ
و چه کله به دې پاڅې چه زهٔ کښینم، بل طرف ته سپاهیانو او نمبردارانو هم زور
کولی وچه شاباش زر شئ! او که چیری یو قیدی به لږ زیات وخت تېر کړې نو بیا به د
هغه خیر نه و دیو طرف نه به پری سپاهی راغی او د بل طرف نه به پرې نمبردار او هر څه
به یې پری او د سود کړل. لنډه دا چه یو ډیر د شرمندګی حالت و مونږ تولو به دا خبره
ډیره محسوسوله او د قیدیانو د دې قابل رحم حالت سره زمونږ ده د تولو همدردی وه
لیکن افسوس دی چه مونږ د هغوی هیڅ قسم امداد کولی نه شو زمونږ یو پینتون
ملګری و هغه یو ډیره عجیبه قسم سړې و تقریباً اووه کاله قید یې تېر کړې وا او ډیره
معافی یې اخیستی وه اکثر د قید حصه یې په ډیرو تکلیفونو او مصیبتونو کښې
تېره شوې وه لیکن د دې نه یې هیڅ قسم عبرت اخیستی نه و سړې دومره خراب
نه و لیکن هغه چه دا هر څومره تکلیف رسیدلی و د ژبې د لاسه یې و. ژبه یې
ټول په واک کښې نه وه. ما چه به ورسره هر څومره سرخوږی کړو او هر څومره به می

یوه کړو لیکن په هغه یې د هیڅ قسم اثر و نه کړو او چه څنګه نا پوهه وهم هغه شان
نا پوهه پاتې شو . د دې تولو خبرو د پاسه یوه ورځ ماله راغی او ماته یې ووې یوه چیټی
کلی ته لیږم ، مهربانی وکړه په تا باندې یې لیکم ما په ډېره خوشحالی قلم، مشوانی
او کاغذ راواخیسته . د سړامی نه پس می ورته ووې چه وایه څه ولیکم ؟ راته یې
ووې چه ولیکه ، زما د سېمنان خبر کړه ، خوشحالی دې نه کوی لږ ی ورځی دا پاتې
دي او که خیروی زه یو ځل د رورسېږم او د بند نه خلاص شم نو تا سو سره به یو
شم نو بیا نه به کلی کښې و نه ګرځي . د دې په اوریدو زه ډېر زیات حیران شوم
ځ ما د کوششونو او نصیحتونو ابلیه دا نتیجه شوه . څه ساعت پورې خو چپ وو بیا می
ورته ووې چه زما تولې خبرې تا هېرې کړې ؟ او په یوه د ې هم عمل و نه کړو ! ده راته
ووې چه عمل می پرې کړې دی خو د دوی پلان میدان کړی دوی زما په قید خوشحا
کوی . ما ورته بیا خپل بیم وغوړ ولو او دامی ورته ووې چه اوس دنیا بدله شوه موږ
لډم بدلېدل په کار دي د دی خبرو زمانه تېره شوه ته نه ګوری چه هندوان، سکها
او مسلمانان په کوږ کښې ورونړه شو او د لته که په سوونو داخلک قید دی تا ته معلومه
ده چه دا په څه کښې قید شوی دی ؟ ته خوږي وینې او د دی نه هم څه سبق نه زده کوې
هندو او مسلمان خو په کور کښې ورونړه کېږي او موږ پښتانه دیو بابا زامن ، یو قوم
یوه وینه یو ، زموږ د ې داحال دي ؟ سړی می د دو ورو راضی کړو او راته یې
ورو سره خوږ او ووې چه ښه داخبری به زه نه لیکم . هغه غریب ته زه ډېر
نه کوم ولی چه په دې ماحول او په دی خبرو کښې هغه لوی شوی دی ، سپین ږیر
شوی دی او دا تولی خبرې د هغه یو قسم عادت ګرځېدلی دی نو عادت پرېښودل

سان کار نه دی د دی خبرو د اصلاح د پاره ډېر کار کول په کار دی او پښتنو غریبانانو
ښی نه داسی خلک پیدا شوی دی او نه یکښی چا داسی کار کړی دی او نه دوی چا
سی پوه کړی دی چه مونږ د دوی نه گیله وکړو . ما روژه دلته تېره کړه او د روژی نه
س پی بیا د دی جیلخانی نه واپس د ډیرهٔ غازی خان جیلخانی ته بدل کړم .

## د لاهور جیل نه بیا ډیرهٔ غازیخان ته :

باوجود د دی دومره تکلیف او پریشانئ نه چه دلته ماته وو بیا هم زه پخپلو بدلیدو
دی ډېر خفه وم ، ولی چه دلته ماته د لاله لاجپت رای په شان او دغه د یو ملگری
اغا صفدر او لال خان په شان سوسایټی او ملگرتیا حاصله وه او دغوی سره زه
ډېر خوشحاله وم او د دغوی سره د تبادله خیال نه ماته ډېره فایده حاصله شوی وه
بل د قرآن درس اوبل د اغا صفدر په شان یو عالم او روښن خیاله سیاستدان
ملگری هم زما په جدایی ډېر غمجن ؤ لیکن څه کیدی نه شو ، زمونږ واک خو د بل و
خر دغه وخت راغی چه د یو بل نه جدا شو . پولیس په ډیوډی کښی زما انتظار
. زه چه ډیوډی ته راووتم نو جیل والو زه پولیس ته حواله کړم او زه د پولیس
د ډیرهٔ غازی خان جیل ته روان شوم . دوی پیاده اول پولیس لائین ته او
سټیشن ته بوتلم . د ډیرهٔ غازیخان د جیل داقانون وچه داروغه پولیس ته وی
ده ته انګریزانو حکم نشته او پولیس له یی د لاهور سټیشن نه د لاهور جیلخانی
ی کرایه هم ورکړی وه او دلته د خیرالدین خان حکم وچه انګریزی هم ورته ویلو
مسلمان وو او د ډیرهٔ غازیخان داروغه هند و وو څه وخت چه مونږ سټیشن ته
سیدو نو ما بنام وکا دی تیار وو او په کا ډی کښی سواره شو او سبا په تکنه (ټکنډ)

غرمه زمونږ ګاډی د شیرشاه سټیشن ته ورسیدو . دا یولوی جنکشن د
او دلته د ډیره غازي خان د پاره ګاډی بدلول غواړی . مونږ چه د ګاډی نه کوز
د ېږکښې وه پولیس والو زما اسباب اوچت کړو او ویټنګ روم ته روان شو ، ما ته
هم اواز وکړو زه یي هم ویټنګ روم ته دننه کړم . یوه ارام کرسی پرته وه هغې لي ما
سمه کړه او زه په هغې کښېناستم . زه به د دې پولیس د سپاهیانو دخل مت
شرافت څه ذکر وکړم . په ګاډی کښې ټوله شپه په ارام ویده وم او هیڅو ک
یي نژدی راته راپرېښې نه دی . د هر قسم زما د ارام فکر به یي کولو ویټنګ رو
ته چه ننوتلو نو په دغه وخت کښې دا اواز موټر غوږه شو چه د ننه پیر صاح
اوده دی چه څه وخت مونږ ور دننه شو نو پیر صاحب ته یو شیخ بادپکي راښکه
هغه دلاندې دوه کټونه پراته وو په یو کښې پیر صاحب او په بل کښې د هغه ور
څوی اوده وه څوک په کرسو او څوک په فرش پراته وو نو زه ورو غونډ ی
هغه ارام کرسی کښېناستم ما باندې هم ښه باد لګیدو ، د لږ ساعت د پاره
سترګی پټې شوې چه ما سپښبین شو او مونږ ټول د لمونځ له پاره راویښ
نو پیر صاحب وکتل چه پولیس والا ما ته لاس په نامه ولاړ دی د هغه په ما
شک راغی چه دا څوک پولیس لوی افسر دی په دی وجه یي زما طرف ته څه
او محبت ظاهر ولو او ورو ورو یي ما سره خبری هم شروع کړې د هغه د زو
زوی ما سره ډیره مینه پیدا شوه ما نه به نه جدا کیدو . په خبرو خبرو کښې
زمانه پوښتنه وکړه چه ته سرکاری نوکر یي ، ما ورته ووی چه نه ! ده راته و
چه نوکر نه یي نو بیا دا سپاهیان تا سره څه کوي ؟ ما ورته ووې چه زه قیلا

ږ دی وجه دا سپاهیان ماسره دی . نوده راته ووې ددوی سلوک خوناسره د
قید یانو په شان نه دی ماورته ووې چه هغه شان قیدی نه یم ، زه سیاسی قیدی
یم او په خلافت کښی قید شوی یم . ددې په اوریدو سره پیرصاحب فوراً بدل شو
و ما طرف ته یې رغبت کم شو . د تحقیق نه راته معلومه شوه چه دا د تونسې یو ډېر
وی پیر دی او په ټول هندوستان کښی په لکونو مریدان لري او په زرګونو روپۍ په
شکرانه کښی ورله راځی مونږ چه لمونځ وکړو او بهرته راوتلو ، د پیرصاحب زوی
چه د ډېر ماشوم و خو زما په مینه محبت داسی مین شوی و چه هغه هم مونږ سره راوتلو
د تیسن خلک خبر شو چه دا خو د خلافت مشران راغلي دي نو ټول خلک مونږ ته
راجمع شول او زمونږ ه د ننده باد چغی شوې . پیرصاحب چه وکتل د ده هغه ماشوم
زوی زما سره دی یو مریدیې ورلیږی راولیږلو هغه ماشوم ته یې د ډېر ویل خو ماشوم
زما خواته رانژدې شو او د ده سره د تلو نه یې انکار وکړو . شیخ لاړو او پیرصاحب ته
یې دا قصه وکړه پیرصاحب ورته ووې چه ورشه او په زوره یې راوله شیخ راغی او هغه
ماشوم یې زما د غیږ ی نه وشوکو او په زوریې ټر راپوتلو . د کاد ی تلو ته لا وخت ؤ خو
پیرصاحب د خپل زوی سره راپاڅیدو لاړه او په ریل کښی کښیناستل . اخر دا چه ماز یګر
شو ریل راغی او مونږ پکښی سواره شو ماسختن غازی ګاټ ته ورسیدو ، په غازی
ګاټ کښی مو د سین په غاړه شپه شوه په سباله د اتوار ورځ وه او د اتوار په ورځ
جهاز بندوي او خوک پورې وتی نه شی ، لیکن یو موټربوټ چه په هغه کښی ضروری
ډاک پورې باسی زه یې هم په هغی کښی پورې ویستم . د اباسین هغه زوروې چیپی
چپاوس هم دا یادی شی نو زړه می وبو ګنیږی خو د خدای فضل وپورې وتو د ډېره

غازي خان پولیس راغلی و دوی هغوی ته په حواله کړم هغوی په بګه کښېنې د ډېره غازي
خان جیلخانې ته ورسولم، تقریباً لس بجې جیلخانې ته ورسېدو. د دروازې ورلیږي
شو اوزه ور د ننه شوم او بابو کانو، سپاپانو او قیل یانو چغې کړې او تول رانه چاپېره
شو او هر کلی یې راته ووې. د جیلخانې د ننه ورلیږي شو او زه جېل بارک ته ورروان
شوم. زما سیاسیان ورونه هم خبر شوي وو، بعضی کسان را ته لاړه کښې ولاړ
وو. زما په لید و تول ډېر خوشحاله شو. بارک کښې چغې شوې او تول رانه چاپېره
شو خوک را ته غاړې وتل او د خیر خیریت پوښتنې یې را نه وکړې. ما ورته د لاهور د
جېل تولې قصې وکړې چه په دې کښې د ډوډۍ وخت شو او مونږه ډوډۍ خوړلو
له روان شو. د سردار کهړک سنګه په ضعیف والی او بوډا والی مې ډېر افسوس
وکړو چه هغه سره د نورو ملګرو لا هغه شان بربند و او څه فیصله یې نه وه شوې.

## دمور مرګ:

په دغو ورځو کښې مې د مور یو خط د کلی نه راغی، پکښې یې لیکلی وو چه ډېره
موده وشوه چه ته مې لید لی نه یې. زما ډېر یاد ېږی. زما زړه غواړی چه درشم او تا
ووینم نو ته ماله اجازت راکړه چه زه ملاقات له درشم. ما چه په دې خط څو مره غور
او فکر وکړو نو زما زړه خو هم غوښتل چه خپلې مور سره ملاقات وکړم ولی چه د دې
ځای د راتلو لا روته به مې فکر شو نو پکښې ډېر تکلیف و او بل طرف ته هغه بوډۍ هم
وه او زړه مې هم غوښتل چه دا ووینم، لیکن حکومت مونږه قصداً دا سې لیرې جیلخانې
کښې بند کړي. وو چه ملاقاتیا نو ته ګرانه وه نو ما مناسب ونه ګڼل چه هغې له د دې ځای
د راتلو تکلیف ورکړم او ورته مې ولیکل چه که خیر وی ما ته او س لږه موده پاتې ده او

امید دی چه ډېر زر ستا او زما ملاقات خپل کور کښې وشي داځای ډېر لیری دی ځای په ځای ریلونه بدلېږي او بیا دا باسین نه پوری وتل دي، نوماوې چه منبه به داوي چه نه داتکلیف ونه کړې. لیکن زه د الله تعالی کارونو نه خبر وم چه نه او مود به مې دیډل نه داسې جداشو چه ترقیامته پوري به یو بل ونه وینو او که زه د دې نه خبروای نوما به مور سره ضرور ملاقات کړی وای انسان د تقدیر نه خبر نه وی.

څه موده پس د ماز دیګر وخت و زه په کمره ناست وم چه زما یو ملګری په ځنګ راغی او اخبار یې په لاس کښې و چه په هغه کښې یې لیکلي وچه زما مور مړه شوه ما انا لله وانا الیه راجعون وویل. د دې خبر په لوستو را باندې عجیبه کیفیت طاری شو او په دې بې ډېر افسوس وکړو چه ما ولې د ملاقات منع کړه خدا یه زمونږه د دې اخری ملاقات نصیب هم نه و. ما به خپل زړه له ډېر تسلي ورکوله لیکن زړه مې ژړل کوله ولې چه زما خپلې مور سره ډېره زیاته مینه او محبت و او هر وخت به ډېر پریشانه وم او ډېر خفه به دې وم چه زه د خپلې مور بی بی د اخرې خدمت او دیدن نه محروم شوم او ما د هغې په ناجوړتیا کښې او د وفات په وخت کښې هیڅ خدمت ونه کړې شو. دې خبرې به هر وخت ژړولم که نه وی نو مرګ خو حق دی هیڅوک تری خلاصیدی هم نه شي نو د چا په مرګ ژړا او واویلا نه ده په کار خو مینه او محبت داسې خیز دی چه د چا زړه صبر پدې نه شي. زه چه بیا د قیدیځ را خلاص شوم نو خورې بیا را ته داخبره کوله چه مور به دې په ځنکندن کښې هم ډېر ډېر یادوله. چه غفاری راغی او که رانغی.

---

## د سیاسي قیل یا نوجنګونه:

زمونږ سیاسي ورونه به همیشه په معمولي معمولي خبرو باندې پخپل منځ کښې په جنګ وو او کله کله به نوبت کنځلو ته ورسید او بعضې وخت به مونږ لړکي هم یو بل پسې را واخیستنه لیکن نور ورونه به تر منځه شول او معامله به یې رفع دفع کړه. جېلخانه داسې یو ځای دی چه د سړي زړه پکښې تنګ وي. «د کوجر والي هې د مردان ضلعې شاکرالله باچا به خپلو ملګروته دا خبره کوله که تاسو یو بل سره ایرې وهئ نو مونږه خو تول خپل ورونه یو دا ستاسو نقصان نه دی دا تول نقصان د دې قلا دی چه مونږ نه تاوده په کور کښې د مور او لور د پېره خوږه رشته وی خو چه دیوال تري چاپېره وي نو مور او لور هم هر وخت یو بلې پورې نښتې وي او په جنګ وي.» زه هم انسان وم زما چه څو مره معلومات او تجربه ده نو زه دا وایم چه زمونږ د دې جنګونو تول بنیا د بحث او مباحثه وه. اکثر ما لیدلي دي چه مونږ به په یوه معمولي خبره بحث شروع کړو نو چونکه زمونږ هغه بحث به په دې خیال نه وو چه مونږ به د یو بل د معلوماتو نه څه فایده حاصله کړو. د هر یو دا خیال وو چه زه سبه پوهیږم او دا بل نه پوهیږي چه زه وړه او دا بل پړ دی. د دې قسم بحثو نو نتیجه همیشه کج بحثي وي او بیا بد رد جنګ وجدال او خفګان. په دې وجه که څوک چرې د دې خبرو نه بهر که د ننه هیچ کیدل غواړي هغوی له په کار دي چه د داسې مباحثونه ځان وساتي او همیشه خپل ځان، ژبه، او خوله واک کښې ولوي او که چیرې په یوې ضروري مسئلې د بحث کولو ضرورت پېښ شي نو چه ده نه څه معلوم وي یا چه څه د ده رایه وي هغه دې ښکاره کړي او زیاتي بحث دې پرې نه کوي نو بیا به ورته خدای خیر کړي، بلکه داچه زمونږ په سیاسي ورونو کښې یو بله

ته دعیب خبره وه اوهغه داوه چه مونږ خو به په خوله ویل چه مونږ یو ورونه یو او
کار هم داسی وو چه مونږ یو ورونه وای ولی چه مونږ دیو نیک مقصد دپاره جیلخانی
ته راغلي یو لیکن حقیقت داسی نه و اونه زمونږ په دې عمل و. په معمولی معمولی خبرو کښی
به مونږ کښی دسکهه، مسلمان اوهندو سوالونه پیدا کیدل. ما خومخکښی هم
ذکر کړی دی چه جنګ دملتان په ښار کښی وشو او تعلقات دلته په جیلخانه کښی د
هندوانو او مسلمانانو خراب شو. مونږ دومره فکر هم نه کوو چه هلکه بهر به خلک هر څه
وي لیکن زمونږ په دی له دې دهغی اثر ولې وشی اوکه چیری په مونږ هم ددې قسم اثر
وشي نو بیا په مونږ اوپه هغو خلکو کښی څه فرق شو چه څوک ددښمن په پالیسی دا
ورونه کوي او خپل قوم او ملک ته نقصان رسوي. زمونږ دعوی خو دا ده چه مونږ
هندوستان په ټولو قومونو کښی ورورولی پیدا کوو او ملک ازادوو. کومی پورې چه
انګریزانو حکومت وي ترهغی پورې خو ناممکنه ده چه د هند و مسلمان جګړې ختم شی.
نو به کیږی لیکن که مونږ کانګرس او خلافت والا هم په دې کښی حصه واخلو نو بیا دې
هندوستان خدای پاک مل شی. نور خلک خو پریږدئ زمونږ یعنی خلافت او کانګرس
کښی ترا وسه پورې د رښتینی ورورولي خیال پیدا شوی نه دی او زمونږ زړونه یو
ته صاف نه دي. زمونږ په زړونو کښی خیری دی په دې وجه په معمولی معمولی خبرو
بی مونږ په کور کښی جنګ دنګې او فسادکولو ته تیار یو. یوه ورځ داچل وشو چه زمونږ
منشقتی چه هغه زمونږ لوښی پاکول او هندوو هغه سړي پښو سکهانو دا مشهوره کړه
دی مونږ سکه کړه ددی په اوریدو سره هندوان ډیر په غصه شو هندوانو هغه ته
چه ته سړه وخو په سکهانو پوری زور داور وچه پام کوه چه سړه نه خرابې دا کشمکش

ورو ورو زیات شو او د سکهانو او د هند والو تعلقات ډیر زیات خراب شول ا
داچه معامله ډیل والوته ورسیده او هغوی هغه سړي زمونږ د بارک نه بدل کړو . 
خو بدل شو لیکن بیا هم زمونږ د ورونو زړونه یو بل ته صاف نه شو . د لا اکراه فی الدین
الله تعالی وایي چه په دین کښې زور نشته ځکه چه د دې تعلق زړه سره دی . د ډېل د
هر مذهب والا ته دا حق حاصل دی چه د تبلیغ په ذریعه فایدی او خوبۍ ښکا
کړي لیکن یو مذهب هم دا نه وایي چه تاسو په زور او زیاتی او اوالچ خلک ډېل مذ
کښې داخل کړئ ځکه چه د مذهب معامله خو د زړه او د ماغ سره ده چه زړه او د
او عقیدی کوم مذهب نه وی قبول کړي په هغه عمل کولی نه شي او چه عمل پری
کړي نو هیڅ فایده تری حاصلولی نه شي . بله ورځ مونږ ټول په بارک کښې ج
ناست وو او خبری اتری مو کولي په خبرو خبرو کښې د لاله اجیت رای ذ
راغی یو موهن لال نومی وکیل و چه هغه صرف دومره خبره وکړه چه لاله جی ښ
پنجاب دی . یو سکه پری اواز وکړو چه د شیر پنجاب لقب خو د سردار ر
سنګه دی او ورو ورو دا خبره زیاتیده او دې حد ته ورسیده چه یو
سکهان او بل خوا هند وان جنګ کولو ته تیار شو او یو بل پسی د ټلهای واخی
او په ډیر و خوارو مونږ دا معامله رفع دفع کړه نوبت کوټک بازی ته ونه رسید
مونږ په دې جیلخانه کښې هند وان ، سکهان او مسلمانان وو
به پخپله خپله طریقه خپل خپل عبادت کولو . مسلمانانو کښې اکثرو کسانو لمونځ نه
صرف مونږ دوه کسان مولانا اسماعیل غزنوی صاحب او ما به کولو او هغه
ځان ځان له . د غه حال د هند وانو هم و چه هغوی هم اکثر و به عبادت نه کولو

چا به کولو نو ځان ځان له به یې کولو. زما یو مهربان دوست چه نوم یې ماسټر کردت مل
و اویو د پرښنه سړی و د پر عبادت به کولو او د عبادت په اخر کښې د پر شانتي شانتي
به یې ویل خو دی پخپله شانت نه و ما به ورسره خندل چه ماسټر صاحب ته خوشا نتي
انتي د پر وایي خو شانت نه یې. یو سکهان وو چه دوی به خپل عبادت په جمع
ولو او څو مره چه په هغو کښې مذهبي جذبه او جوش و دومره نه په هندوانو کښې
و او نه په مونږ د مسلمانانو کښې و زمونږ په نسبت په سکهانو کښې مینه محبت
تفاق او ورور ولی زیاته وه. په دې خبره چه ما څومره غور او فکر کړی دی زه په
دې نتیجه رسیدلی یم چه د هغوی مذهب په خپله ژبه کښې دی هغوی د هغه په
مطلب او مقصد با ندی پوهیږی. د هندوانو او مسلمانانو مذهب په بله ژبه کښې
دی. د هندوانو مذهب په سنسکریت کښې دی. هندوان په هغه نه پوهیږی او
زمونږ مذهب په عربي کښې دی او مونږ په عربي نه پوهیږو. سکهان چه به خپل
عبادت ته کښیناستل نو په هغه کښې دا یوه جمله زمانه هیریږی او یاده می ده چه
دې به یې د سرجاوی تو جاوی میری پیاری سکهیا نه جاوی». داسی خبری
په جذبه او جوش زیاتوی د هندوانو په مذهب کښې هم نشته او زمونږ د مسلمانانو
مذهب کښې هم نشته. خو مونږ او هغوی په مطلب نه پوهیږو، هم دا وجه ده چه د
سکهانو په شان مذهبي جوش او جذبه نه په مونږ کښې پیدا شوه او نه په هندوانو
کښې.

زمونږ اکثر ملګري خلاص شو او مونږ پنځه کسان پاتی شو ولی چه تول شپږ
پیږ میاشتی یا کال قید وو. دوی به هم اوس رهاشوی وای خو هغوی په جیلخانه

کښې هغه دایچي تیشن په وجه خپل قید ونه زیات کړي وو زمونږ دپنځو وادو مجلس
سره برابر و او دمطالعې دپاره راسره قسما قسم کتابونه هم وو او دخپل قید ورځې شپې
مو په ډېر ارام او خوشحالي سره اړولې او بغیر زمانه دوی ته لږ تنګ پاتي و. په ک
پنځو کسانو کښې مونږ دوه مسلمانان او دوه سکهان او یو هندو وو. یو زه او بل
مولانا محمد اسماعیل غزنوي او سکهانو کښې سردار کهړک سنګه، جسونت سنګ
او دهغوی یو بل ملګری و. دجیلو الوسلوک مونږ سره ډېر ښه و. کتان هیرز
زمونږ سپرنټنډنټ وچه په دښتیا ډاکټر و او ډېر هلند د اوښته سړی و. لیکن په ک
ځای کښې یو لوی نقص داوچه دشپږ ومیاشتو نه زیات یو انګریز سپرنټنډنټ
پاتي کېدی نه شو. په شپږ ومیاشتو کښې به ایله مونږ دهغه سره اشنا شوی و
خو چه به اشنا شو نو هغه به دانه بدل شوی و. ددې وجه داوه چه په ډېره غازی
کښې به ډېره زیاته ګرمي وه او په ګرمي کښې به انګریز زیات پاتي کېدی نه شو. په د
وجه به په یخني کښې زمونږ انګریز سپرنټنډنټ و او په ګرمي کښې به هندوستا
وبیا د جرنیل ددوری اواز شو چه جرنیل صاحب په دوره راځي هر څوک په دې فک
کښې وچه بیا به څه کېږي ځکه چه داجرنیل ډېر بد نیته راغی او بعضې سړي او
بیا سیاسي قیدیانو سره خو به ډېر په ترخ چلېد و. جرنیل صاحب خو ورځې پس
راورسېد و او دراتلو سره اول دسردار کهړک سنګه کټوله راغی او په یو قسم غ
او تکبر کښې یې سردار صاحب ته ووې ( Well Kharaksingh والیه کنه کهړک سنګ
نو هغه ورله ډېر په بې پروایي سره داجواب ورکړو ( واد واد، Yes, Well ): ښ
ددې په اورېدو سره په جرنیل اوربل شو او بله یې هیڅ خبره ونه کړه او فوراً د

نه نصرته ووت او جیلوالو ته یې وویل چه دده نه تر اوسه باد و تې نه دې او د هغه
تکت یې وغوښتو او د کمزورئ په وجه چه هغه له ډاکټر کوم پیې لیکلې و هغه یې کټ
کړل او حکم یې ورکړو چه ده له هیڅ بغیر د (C) کلاس د قیدیانو د خوراک نه مه ورکوئ
او بل یې دا حکم ورکړو چه په دوی بله مقدمه وچلوئ داهم د ډاکټر و. د جرنیل دوره
چه ختم شوه او دی واپس لاړ نو داروغه صاحب مونږ له راغې او دا ټول بیان یې را ته
وکړو او د خپل طرف نه یې ډېره همدردي ظاهره کړه او ویې ویل چه زه خو یو ماتحت
سړی یم زیاتې څه کولې نه شم تاسو پخپل کور کښې صلاح او مصلحت وکړئ او سبا چه
تاسو ته څه مناسب ښکاري ماله جواب راکړئ ددې په اورېدو سره زمونږ ملګري
ډېر غمجن او فکرمند شو ولې چه د هغوی رهائي ته دوه ، څلور میاشتې پاتې وې.
مولانا غریب ته خو ټوله تاله یوه نیمه میاشت پاتې وه ، لیکن سردار کهړک سنګه ؤ
د هغه ځان له پرېښودل د دوی د پاره ډېر مشکل و چه اخر هر خلک به څه وائي
چه بوډا سردار مو یوازې پرېښود او تاسو ځوانان تړي راوتښتېدئ داخوا دان
ډېر په کشمکش کښې وو اخر د ډېر بحث مباحثې نه پس په دې فیصله وشوه چه ډېر
کانګرس ته خبر ورکول په کار دي چه ددې په باره کښې هغوی یو قرار داد پاس
کړي او مونږ ته یې راولېږي چه ایجي ټیشن جاري وساتئ یا یې پرېږدئ او چه
کانګرس څه فیصله وکړله مونږ به یې منو. انسان هم یو عجیبه څیز دی څه خت
چه دی کمزوری شي او همت بایلي نو بیا د خپلې کمزورۍ او بې همتۍ د پټولو د پاره
قسما قسم حیلې او حوالې لټوي. څه وخت چه دوی ایجي ټیشن شروع کولو نو
زمونږ په ده له کښې اکثرو خلکو ورته دا خبره یاده کړې وه چه کانګرس دا قسم

خبري په جېلخانو کښې منع کړې دي او دبهر نه کانګرس والو ورله هم جوابونه را
لېږلي وو چه په جېلخانو کښې ایجي ټېشن دکانګرس د اصولونه خلاف دی په دې
وجه مونږ تا سوله حکم درکوو چه ایجي ټېشن شروع نه کړئ لیکن هغه وخت دوی
په جوش کښې وو چه کانګرس په دې نه پوهېږی چه دا زمونږ دحقوقو او خودداری
سوال دی لیکن هم هغه خلک وو چه دکانګرس حکم ته لېواله دی ځکه چه نور تکلیف
تېرولو ته تیار نه دي . ددی تولو خبرو نه مونږ له سبق اخیستل په کار دی او هر کا
چه کوو نو محض په جوش او جذباتو لي ونه کړو بلکه دهغې په هر پهلو باندی ښه
ښه شان سوچ او غور وکړو او که چیری دهغې دپاره دهر قسم قربانی او تکلیفونو
ته تیار نه یو نو شروع یې نه کړو . کانګرس والا و یو قرار داد راولېږه دوی هغه سردار
کهړک سنګه له یو وړ هغه ته یې وښوو چه دکانګرس دا حکم دی ته په دې کښې څه
وایي هغه ورله جواب ورکړو چه دکانګرس حکم څه نوی حکم نه دی بلکه تور حکم دی
او کوم قدم چه ما اوچت کړې دی زه دهغه نه د وروسته کېدو دپاره تیار نه یم
چه تر څو حکومت زما مطالبات منلی نه وي په دې لاره کښې چه هر څو مره
تکلیفونه او مصیبتونه چه راځی دهغو دپاره زه تیار یم . دوی په ځای ددی
چه دهغه دعزم او ارادې تعریف کړې وای او خپله کمزوري یې ختم کړې
وای دهغه خلاف یې دا پروپېګنډه شروع کړه چه دی خپل ځان دکانګرس
نه لوی ګڼی او په دې وجه دکانګرس حکم منلو ته تیار نه دی دا څومره لویه د
افسوس خبره ده او بله خبره ده چه مونږ دخپلو کمزورو دپټولو دپاره
او دبل دغورځولو دپاره ددې دول ناپاکی پروپېګنډه کوو او په خپل جماعت

وقوم کښې اختلافات پیدا کوو او دا په هر جماعت کښې چه څو مره اختلافات وي
دي وجه هم اکثر د دې قسم ذاتیات وي. که ته وایې چه زه بغیر د څه غرض نه
قوم او ملک خدمت کوم او زه هم وایم نو بیا اختلاف په څه؟ په خدمت کښې
ختلاف نه راتلې شي او نه کېدې شي اختلاف همیشه په ذاتیاتو کښې وي او هر سړی
به په ایماندارې په دې نظر وکړي او خپل زړه ولټوی نو دا به ورته معلومه شي
به دا اختلاف زما د ذاتیاتو په وجه پیدا شوی دی. مونږ خو به خپلې کمزورې
خلکو نه پټې کړو لیکن د خدای نه خو یې پټولې نه شو نو هغه له به څه جواب ورکوو؟
چه هر کله مونږ خپلې کمزورئ د خدای نه پټولې نه شو نو په کار دی چه د خلکو
یې هم پټې نه کړو او چه کوم کار کولې شو په جار وو وایو چه دا کولې شم او چه کوم
ار نه شو کولې په جار وو وایو چه دا نه شم کولې او دا و نه کړو چه یو سبه کار دی
به زما یو بل وړو دلګیا دی کوی یې او هغه کار زه کولې نه شم. نو مونږ له د هغه امداد په کار
ی مخالفت یې په کار نه دی او په خپله د له او قوم کښې اختلاف پیدا نه کړو او په ځای
داد وړ کولو په هغه قسما قسم الزام و نه لګوو او هغه ته مشکلات پیدا نه کړو.

مولانا اسماعیل صاحب او سردار جسونت سنګه او د هغوی ملګری جامی
غوستي، کار یې شروع او د هر قسم ایجي تیشن یې ترک کړو، سردار کهړک سنګه
اریوازی په میدان کښې پاتې شو جیلوالو پرې مقدمه وچلوله او شپږ میاشتې
ید یې نور زیات شو لیکن د هغه په همت جرئت او خندا کښې د هیڅ قسم فرق
یانه شو. لکه دغه په شان د حکومت په مقابله کښې پخپل ځای ولاړ و او په صبر یې
قسم تکلیفونه تېر ول او کوم قدم یې چه یو ځل مخکښې کړی و هغه یې روستو نه کړو

او تراخره پورې په هغه باندې تېنګ ولاړ و او ټينګ پرې پاتې شو او ډېر ښه د
و . د دې نورو ورونو ګذران ډېر سخت شو هسې به پچپل ځان کښې کچه کچه کېدل
دوی د دې خبرې کوښښ شروع کړو چه په هره طريقه چه کېدای شي چه مونږ د
جېلخانې نه بدل شو . د جېلوالو هم دوی سره ډېره همدردي وه هغوی هم د دوی
د پاره کوښښ وکړو او وې ليکل ، د مولانا خولږی ورځې پاتې دی هغه تېرې ش
رها شو او د دې نورو منظوری راغله . دوی رانه بدل شو او په دې د مره لوی با
کښې صرف زه او سردار کهړک سنګه صاحب پاتې شو . هغه يې هم زمونږ نه جدا که او پ
هسپتال کښې چه کوم ساليټری سل ؤ ( تنها کوټه ) هلته يې بوته او په چکي کښې يې بند
زه يوازې په دې بارک کښې پاتې شوم ، زما بارک ته يوه وړوکې غونډۍ دروازه هسپ
لوري ته لګېدلې وه چه هغه به هميشه بنده وه او چه کله به ډاکټر راتلو نو هغه به يې ور
ليږې کوله نو په هغې کښې يو سوری ؤ سحر ، ماښام به زما او سردار صاحب په هغه سو
کښې ملاقات کېده . سردار صاحب باندې د حکومت له طرف نه قسما قسم جرمونه
تکليفونه راغلل او ډېر کمزوری شو په رنګ کښې يې هم فرق پيدا شو ، خبرې او خن
يې هم هغه شان وه . ما چه به سردار صاحب ته کاته ما له به د هغه په حالت د ېر
افسوس راغی : زه هم د هغه په شان قيدی وم ما د هغه د پاره څه کولی نه شو صرف
دومره به مې کول چه ما سره به څه د خوراک د پاره ميوه دانه وه هغه به مې څه نه څ
ور کوله هغه به هم هغه نه اخيسته په ډېر زور او منت او جګړو به مې پې ځايوله
هغه به ويل که د دې ځايه بدل شوی نو بيا به ميوه چېرته دې نږدې له پاره ما
له دا عادت پيدا کول په کار نه دی ما به ورسره خندل چه په جېلخانه کښې څه نکی

ی هغه هغوښتان یې تېرول په کار دی. ممکنه ده چه زما د تلو نه پس څه بل
خدای پیدا کړي. جېلو الاؤ ته زما د بارک د پرضرورت و ولی چه دلته د رې
رو او په دی درې واړو بارکونو کښی زما بارک د پرلوی و په دی کښی زیات
راتلل او په دی جېلخانه کښی بل داسی ځای نه ؤ چه زه یې یوازی پکښی ساتلی
د هغوی د پرزیات کوښښ وچه زه د دې ځای نه بدل شم او دا بارک د
د پاره وزګارشی د دی د پاره هغوی جرنیل ته ولیکل چه دی دې د دې
ـل کړی شی ولې چه د هغوښلو قید یانو ځای یوازی ده نیولی دی او مونږ ته
ی د پرزیات ضرورت دی، څه موده پس حکم راغی او زه یې د دې ځایه
جېلخانی ته بدل کړم.

## یانوالی جېل ته:

ـل د دی نه چه زه د میانوالی جېل حالات شروع کړم زه دا ضروری ګڼم چه
حکومت هغه حقوق ښکاره کړم چه کوم یې سپېشل کلاس قیدیانو له ورکړي
حقوق په داسی فریب او چالاکی جوړ کړی شوی دی چه د دې قول انحصار
په سپرنټنډنټ منحصر دی. که چیری یو سپرنټنډنټ شریف ؤ او
د قیدیانو د تکلو او رنځولو نه و نو د قیدیانو هر قسم حقوق شته او قیدی ته
م وي او که چیری یو سپرنټنډنټ بدنیته او بد دیانته وی او د ایٰ خیال
یانو له تکلیف ورکوم نو بیا د قیدی غریب هیڅ قسم حقوق نشته او هغه
تکلیف وي زمونږ د ده بره غازیخان په جېل کښی د هر قسم سپرنټنډنټان
شوی ده زمونږ اول سپرنټنډنټ مسلمان و، دوهم انګریز و، دریم هندو و

حقوق دېر زمونږ کښې وخت په سپرنټنډنټ د اول . وو انګرېز يا څلورم او
زمونږ هم يا نه کشمکش او جګړو دېرو د باوجود کښې وخت په سپرنټنډنټ
چارج او اغې صاحب دائي سپرنټنډنټ و هند يو وخت څه چه ليکن وو
ميوه زه چه ډيل به چا چه شو کم حقوق زمونږ سپرنټنډنټ شو زمونږ او
مصري يا جاى به چا کله او ده عياشي يعني (...) دا چه وي به هغه
دخو چه دا لله، ورکولو نه يې به اجازت وُ عيش خيال په هغه د هم دا نو
(عيش) ګڼړي هم دا کښې خيال په هغه د وُ نه اجازت ته چا ی قله
چا سره به چه شيز ی غونډ اولږ وي تلاشي زمونږ به ورځ هره
غابنو د زما ته صرف ماته وی به امکانی اوسنا روی پيښې هغه د به بيا نو کښې
حکم دا هغه د هم پاره د هغه او وا اجازت ښتلو غو را د دوام دی وجه په
اجازت هغه او شي بند هم تا په به بيا دی کړي ور چاله قابل چه شوه معلومه
چه و ليکلي جن سر ډينټل د او و نقصان کښې اور او نو غابنو زما چه
سپيشل په چه و حال زمونږ خو دا دی ضروري خوړل ميوه څه نا څه روزانه
دو کښې کلاس (c) په چه نو يا قيد موعا د چه وګوئ اندازه تاسو نو وو
چه دی دا حقيقت ؟ وی حال څه به حقوقو د هغوی د او و حال څه به
جو پاره د دوی د چه قانون قسم هر او دی نيته بد دېر ته رعيت خپل
نو نوي ورځ او شپه دوی چه وګورئ تاسو وی جوړ نه نيت منبه په
او شي امن او شي کم جرمونه کښې ملک په چه بهانه دې په وي جوړ
او وی امنی بد ، وي و تيل زيا په جرمونه ورځ په ورځ ليکن شي

ی څه وجه کیږی شی . د دی عمل وجه ده چه د اټول قانونونه په ښه نیت نه جوړیږی
بد نیتئ سره جوړیږي او په بد نیتی سره استعمالیږی او عمل پری کیږی او که
قانون جوړ شی خو چه نیت بد وی نو بد استعمالیږی . پیرنګیان په ملک کښی
ښتیا سره نه امن قایمول غواړی او نه جوړونه او جګړی او نه ضا دونه کمول غواړی
نو خبره ده چه که یو حکومت په رښتیا سره دیو ملک اصلاح او امن غواړی او هغه
شی ؟ تاسو خولې دي ته وګوری چه هندوستان کښی هم د انګریزانو حکومت دی
انګلستان کښی هم د پیرنګیانو حکومت دی هلته د اټول څیزونه قایم دي نو دلته
یمېل لی نه شی ؟ یوه ورځ زما د سرحد د پولیس د جرنیل سره د پولیس په دیانت
او ایمانداری باندی بحث شو نو ما ورته دا خبره وکړله چه زه په دې نه پوهیږم
سو په انګلستان کښی یو دیانت دار او ایماندار پولیس په رښتیا معنو کښی د
خدمتګار پیدا کولی شئ نو دلته یې ځنګه نه شئ پیدا کولی خو تاسو یې نه پیدا کوئ.

زه چه هلک وم نو زه په زړګانو او ملایانو پسی ډیر ګرځیدلم ډیر لمونځونه
یفی به مې کولی او لاس نیوی مې هم کړی و . ما به ډیری وظیفی کولې خو چه ځان
ی کتل نو په ما کښی هیڅ تغیر او تبدل نه راتلو د هغه زړګانو او ملایانو نه مې هم
ونه کول چه زه خو ډیری وظیفی کوم ولې چه ځنګه وم هغسی یم هغوی به زما د
ډیر کوشش وکړو خو زما تسلی به ونه شوه اخر چه زه ډیره غانړی ځان
وم هلته زما یو ډیر مهربان دوست و ما مسټر کوردت مل نوم یې و چه د هغه
تعلق پیدا اشو ، هغه ډیر عالم او ښه سړی و او ما سره ډیره مینه او محبت
سره یو کتاب وچه یو پادری لیکلی و د هغه کتاب نوم
(Your forces and how to use them)؛

(یعنی ستا سو قوتونه او دهغونه دکار اخیستلو لاری چاری) هغه کتاب چه می په ع
ولوستلو نوزه دوظیفی کولو په حقیقت پوه شوم هغه کښی لیکلی وو چه داتا سو وظ
او دخدای پاک نوم او صفاتی نومونه یادوئ نو تاسو له بنایی چه هغه صفات خان
پیدا کړئ مثلاً دخدای یو صفت دادی چه هغه رحمٰن رحیم دی یعنی بخښونکی
دی نو تاسو هم خان کښی دبخښنی او رحم عادت پیدا کړئ او همداسی نور.
زه چه څه وخت خبر شوم چه زما د دی جیلخانی نه بدلی وشوه نوزه
سوری له ورغلم او سردار کهرک سنګه صاحب هم هغه سوری له راغی او په ډیره
خوشحالی سره یو دبل نه رخصت شو. دروازه کښی زما دبوتلو د پاره سپا
تیار ولاړ وو. جیلوالو هم ماسره په مخه ښه وکړله او زه سپاهیانو سره د میان
روان شوم داخل مونږ ته دابا سین په پوری وتلو کښی څه تکلیف و نه شو ولی
واو په بخنی کښی او به لږې وی او په اباسین باندی دکښتو پل وی. چه ستیش
زمونږ ریل تیار و مونږ پکښی کښیناستو او سباوختی میانوالی ته ورسیدو. ست
نو دی جیلخانه ده زه یی جیلخانی ته بوتلم جیلوالو ته یی په حواله کړم. دا روغ
ماسره ډیره ګړه بړه وکړه او په ډیری مینی محبت یی جیل ته بوتلم. په دی
کښی کافی سیاسی قیدیان وو زیاته حصه یکښی دسکهانو وه او یو څو کسان
هندوان او مسلمانان وو، په سکهانو کښی یو څو کسان زمونږ د سرحد هم و
کسان خو خاص دپیښور وو دهغوی په لیدو می زړه ډیر خوشحاله شو
صرف دری کسان مسلمانان وو یو د مولانا ظفر علیخان زوی مولانا اخ
صاحب و او نور دوه کسان د پانی پت ملایان وو. په دوی کښی دیو کس

بال صاحب وچه ډېر خوش مزاجه او مجلس اراسته کړي و او زمونږ د خوړو، څکلو
طام هم دغه په لاس کښي وو. په بخلي هم ډېر ښه پوهېده، بخلي به يې هميشه پخيله کوو
روغه صاحب ذه دوی ته په حواله کړم، معلومېده چه د داروغه صاحب دوی سره خاص
ق و او چه څه وخت داروغه صاحب تلونو ماسره يې ډېر اخلاص ښکاره کړی او ما ته
دوي چه زه ستا هر قسم خدمت ته تيار يم تا ته چه د څه قسم تکليف يا د څه قسم ضرورت
ن نو ما ته به ايله د اشاري کولو ضرورت وي ليکن روستو ما ته د تجربي نه معلومه شوه چه
غه صاحب دومره ښه سړی نه و ويل به يې يو څه او کول به يې بل څه خبري به يې لوېري
ليکن عمل يې پېري ډېر کم و بل نقص پکښي دا و چه د سړي به يې ډېري خوشامندی
ليکن ور سره به زر تر زره دغه بې عزتي کولو ته هم تيار شو. په دې جېلخانه کښي
ودې پخولو د پاره دوه باورچي خانې وې. يوه د هندوانو او سکهانو او بله د مسلمانانو
بېلتون توله ذمه واری د هندوانو او سکهانو په سر وه ځکه چه هغوی به مسلمانانو
کوله او دوی به يې خپلي باورچي خانې ته د ننه نه پرېښودل او په دې کښي لاد
خلکو دا هم خيال وچه د مسلمانانو په ورتلو سره څوکه پليتېږي په دې وجه مسلمانانو
ی نه خپله باورچي خانه بېله کړې وه او په دې کښي هغوی غريبانانو ته څه قصور نه و.
متعلق ما ډېري قصې اورېدلې وې ليکن زه يې مناسب نه گڼم چه د لته يې وليکم او
کښي زه څوک ډېر گرموم هم نه ولې چه د تول عمر عادتونه په څو ورځو کښي بدلېدې
زه اميد کوم چه ورو ورو به په خلکو کښي علم او پوهه راځي، د هندوانو او مسلمانانو
به ليري شي ليکن رفته رفته د دې د پاره وخت په کار دی او کار په کار د ټي بيا
دې ته لوبه کاميابي وايم چه دلته اکثر هندوان او سکهان د دې خيال نه وو

اکثر خو به مسلمانانو سره یوځای خوړل او ښکل کول . که زموږ په کیچن کښې چه د
خه پاخه شو د هغه خوراک کښې به يې هم باک نه کوو او د ذړو خيالاتو خلک هم د ډیر ک
لیکن بیا هم د دې اثر به نه وو او د هند واو مسلمان مینه محبت او اتفاق کښې يې
نقصان غوړځولی و .

دلته دا قاعده مقرره وه چه چا به د مسلمانانو دلاسه د خوړلو باک نه کو
مسلمانانو به هم د هغوی دلاسه هر څیز قبلولو او خوړلو او چا چه به د مسلمان دلا
څیز نه خوړو او د هغوی نه به يې کرکه کوله نو مسلمانانو به هم د هغوی دلاسه څه څیز
اخیسته او نه به يې د هغوی دعوت قبلولو . سردار سردول سنګه سره دلته ز
اول ځل ملاقات وشو دا هم د سیکهانو یو لوی لیډر ؤ او ډیر ډیر او عالم سړی و
د ده د صحبت نه هم ما ډیره فایده حاصله کړه ، موږ د دوی تبادله خیالات د پاره یو
مقرر کړی و او همیشه به موږ په مذهبی او سیاسی معاملو باندې دیو بل خیالات
سردار صاحب ډیر یو ازاد خیال سړی و ، د نورو سکهانو په شان نه و . څو مره س
ورونو سره چه زما ملاقات او تبادله خیالات شوی و په هره معامله کښې د ده رائ
او معقوله به وه او ما سره به يې ډیره مینه او محبت کولو . دلته ډیر سیکهان وو او
د پیښور سردار راجه سنګه صاحب هم و ، چه څه وخت اصلاحات (Reforms) راغلل نو دې
د صوبې اولنی ایډ وکیټ جنرال ؤ او ده سره د پیښور یو بل سکه هم وچه مانه يې
دې د چایو سوداګر و او د چین نه به يې چای راغوښتلو او ماله به يې د ښنوچا
کلونه چه ډیر قیمتي او خوندناک وی سوغاتي راوړل او راکول به يې ما سره يې ډیره مینه
کوله ، ډیر محبتي سړی ؤ . صوفي صاحب د هوډی د ګلی شنه ماهر ؤ هر څیز به

ین مرچکې به یې د پرزیات خوړو او مرچکې سره زه بلد نه وم ، په دې وجه به
پر زیات په تکلیف وم ، یوه ورځ صوفي صاحب قیمه پخه کړه او پکښې دومره مرچکې
وو چه نوړی اخیستو سره زما خوله وسوزېده ، ما د ډوډۍ پرېښوده او سپوره
مې خوراک شروع کړه ، صوفي صاحب راته ووې چه دې کښې خو ما ستا دوجې نه
چکې اچولې دي کوندی د دې قاعده خو داده چه سیر قیمه کښې سیر مرچکې
ستا دوجې نه مې پکښې صرف سل مرچکې اچولې دي ما ورته ووې چه خدای دې
بنه شي چه زما دې دومره خاطره کړې دې خو زه د مرچکو سره بالکل عادت
بنه به داوی چه ماله بېله کټوۍ پخوې ولې چه په دې طریقه تاسو ته هم تکلیف
ماله هم تکلیف وي بیا د پاره ځان له د خپل خواهش کټوۍ پخوئ او ماله زما
پخلې کوئ نو دواړو ته به ارام وي . صوفي صاحب لوی عالم و ، د پر ښه سړي
نی و لیکن زیات خوراک به یې کاوه پخپله یې هم زیاته غوښه خوړه او اختر علي
به یې هم زیاته غوښه ورکوله او د دې له پاره به یې اختر علي خان د پرې
ندی کولې . ما خو چېرې په دې خبرو نوټس نه اخیستو ولې چه ما به خیال
دی دومره تکلیف او مهرباني کوي او مونږ له ډوډۍ پخوي نو کرلږ د پر
ي نو دومره باک یې نشته ولې زما هغه بل ملګری مولانا صاحب به ور
شه په جنګ ؤ او ورته به یې ویل چه ستا دا عادت ښه نه دی چه ځان له
خودی او چه څوک دې خوښ وي هغه له هم د پره ورکوې لیکن صوفي
ماندې د دې قسم خبرو اثر نه کېدو ، هغه به همیشه په زړه طریقه روان و .
میا نوالي جېل هم د غازي خان د جېل نه په ګرمۍ کښې او په بادونو کښې څه کم

نه وکه چیری هغه یو دښت و نو دا یو ریګستان دا وکه هلته به د خاوو سیا
نو دلته د ښکو سیلی الوځی هلته خو مونږ ته دا فایده وه چه مونږ لوی بارک کښې
دلته بارک او دوشته نه تول سلونه (چکی) دی. ددې په نسبت زمونږ هغه
د پوښه اوبخ و او باد به پکښې هم لګید و، بله دا چه هلته د بارک نه بهر د
ملا ستی د پاره کړی وې چه په ګرمۍ کښې به مونږ پری څملاستو او دلته
څمکه څلی. مونږ سیاسی قید یانو کښې یو بل نقص دا و چه سیاسی قید یا
کوشش سره جیل والا د ځانه سره ملګری کولی شی او د خپلو فایدو د پاره
قید یانو برخلاف استعمالوی چه یو سیاسی قیدی سره جیل والا بدغوندی
شروع کړی او څه ناڅه رعایت ورکړی نو بیا دې خدای خیر کړی او دا امتحا
خدای په چا نه راولي مونږ فوراً دهغوی ملګری شو او د جیل والا و طرف ته
کړو او په زړه کښې وایو چه دوی زمونږ دېر دوستان دي او په دې نه پوهیږ
دوی زمونږ نه فایده حاصله کړی ده او زمونږ حقوقو ته لی دیر نقصان رس
زما ددی نه دا مطلب نه دی چه څوک دې د حکومت د نوکرانو نه نفرت وک
د چا نه نفرت کول په کار نه دی، په کار دی چه هر چا سره ښه سلوک وکړ
کوی چه د خپل جماعت خلاف د بل چا ملګری او راز دار او مدد ګار شی مو
دی چه په هر حالت کښې د خپل جماعت د خلکو راز دار او مدد ګار یو. دد
همیشه د جیل والو د خوشحالولو د پاره د خپلو ملګرو د هر قسم مخالفت کولو ته
دا کوشش کوی چه څوک د هغوی برخلاف ایجی تیشن شروع نه کړی او که
دی قسم څه خبره پیښیږی شی نو دوی همیشه د هغه مخالفت کوی او خپل جما

نفاق پیدا کوي حکومت چه څومره مونږ ته یا زمونږ حقوقو ته نقصان رسولی دی دا ټول د دوی د لاسه او د دوی د برکته که چیری مونږ یوه خوله او یو موټی وای نو حکومت په مونږ ددې قسم زیاتی نه شو کولی او زمونږ حقوقو ته یې نقصان رسولی نه شو. دا زمونږ د شان سره مناسب نه دی چه د خپلی ذاتی معمولی فایدی د پاره د هغه حکومتی پرزو سره تعاون کوو چه د چا برخلاف مونږ د عدم تعاون اعلان کړی دی او که د دی د پاسه چیری څوک بیا هم دوی سره تعاون کوی نو په جایزو خبرو کښی دی ورسره تعاون وکړی او په ناجایزو خبرو کښی خو تعاون یوه لویه ګناه او جرم دی.

جیل (الا سره دا دوستی مرض په میانوالی جیل کښی د ډیره غازی خان جیل نه زیات و او بیا زمونږ مسلمانان ورونه په داروغه صاحب باندی هسی پتنګان وو او تردی حده پوری رسیدلی وو چه د خپلو ملګرو سره د جیل په باره کښی بحث کول خو پریږده بلکه او د پل وتری هم تیار نه وو او څومره خوشامندي او تابعداري یې چه د داروغه صاحب کوله د هغی بیانول مناسب نه ګڼم، د دی دوستی چه څومره حقیقت ما ته معلوم دی هغه دا و چه دوی له به یې پیسه کارډ، لفافه او خط د جیل حق نه زیاتی ورکول او چه څه وخت به جرنیل په دوره راغی نو دوه میاشتی معافی به یې هم تری د دوی د پاره اخیستله. بل دوی به هر وخت دفتر ته تلی شو او د مازیګر په وخت کښی په چکر کښی د ګرځیدلو هم اجازت و خو دی سره دا خبره هم وه چه داروغه صاحب به همیشه چه څومره د دی خپلو دوستانو بی عزتی کوله هغه هومره چیری د بل چا کړی نه وه. د داروغه صاحب په دی جیلخانه کښی د یو لوی اشنا د ظفر علی خان زوی اختر علیخان و چه داروغه صاحب به څه وخت مازیګر د ګنتری د بندولو د پاره چکر ته راغی نو دوی به هم ورغلل او د هغه

سره به په کرسو ناست ؤ. یوه ورځ ډاکټر صاحب د هسپتال نه چکر ته راغی چونکه
په چکر کښې نورې کرسې نه وې لس دغه دوه کرسې وې چه په یوې داروغه صاحب
او په بلې اختر علي خان ناست و. اختر علیخان د داروغه د دوستۍ په وجه یا د لیلی د په
خیال ډاکټر صاحب ته اوچت نه شو او کرسۍ یې ورته هم خالي نه کړه. داروغه صاحب
ته د اختر علي خان دا رویه سخه ښکاره نه شوه او هغه ته په قهر شو. بې عزتي یې کړه او
د کرسۍ نه یې پاڅولو او په یوه سپکه طریقه یې ورته ووې چه ته ځان وپېژنه ته قیدي
یې شاید تا نه ځان هېر شوی دی، ته نه پوهېږې چه ډاکټر صاحب د جېلخانې یو
لوی افسر دی هغه ولاړ دی او ته په کرسۍ ناست یې. د چکر نه یې په بې عزتۍ وشړلو
او آینده د پاره یې په چکر بند کړو خو چه مازیګر به شو او داروغه صاحب به چکر ته
راغی نو دی به ورغی نمبر دار ته به یې وویل چه داروغه صاحب ته ووایه چه اختر علي
خان چکر ته اجازه غواړي، هغه به ویل چه نه، نه دې راځي، یوه ورځ ما ورته وویل
چه اختر علیخان ته سیاسي قیدي یې او د ظفر علیخان زوی یې دا ته چه څه کوې دا
زمونږ د ټولو سیاسي قیدیانو بې عزتي کوې. چکر به څه وي؟ او ته ولې دا خپل ځان
د داروغه په مخکښې داسې وړوکی کوې ته ګورې نه چه داروغه هره ورځ ما ته منت
کوي چه دا څه چکر ته راشه خو زه نه ورځم. چکر ډېر ښه ځای وو او ډېر ګلونه وو. اختر
علیخان تر هغه وخته پورې په چکر بند وه چه تر څو چه یې د داروغه صاحب نه معافي
و نه غوښته او رضایي نه کړو. د دې نه تاسو څنګه نتیجه وباسئ چه دې ته به څوک
دوستي وویلی شي؟ دا خلک په دې دوستۍ نیازېده او ډېر فخر یې پرې کولو.
میانوالي جیلخانې کښې همېشه ښکلي الوزي او ښکلي او سیلۍ د ډېرې ګرمۍ وي هم

یز کښې شکې زی او هر څیز د شکو ډک وی او داسې هیڅ څیز به دې په نظر
نه شي چه په هغې کښې به شکې نه وی سره د ډېره احتیاطه بیا هم په هر څیز کښې
نه نا څه شکې وي او معلومیږی داچه د داسې قسم خاص جېلونه پېرنګیانو دیله د داښته
سیاسي قیدیانو د ازادولو او صحت خرابولو د پاره خوښ کړي دی. زما صحت
لته د ډېره غازیخان په نسبت زیات خراب شو، وزن می هم ډېر کم شو، ما څو ځله
پېرنټنډنټ ته دا خبره وکړه چه ما ددې جېلخانې نه بلې جېلخانې ته بدل کړي زه هغه
وي چه زه څه کوی نه شم ولی چه حکومت د سیاسي قیدیانو د پاره دا جېلخانه مقرره
کړې ده. د قیدی خبری ته څوک غوږ نه بږدي د پېرنګیانو په راج کښې قیدیان هم و
کړي نه دی په سبپي به یې رحم راشي لیکن په قیدی یې رحم نه راځي. چه کرمي ډېر
ور وکړو نو په جېلخانه کښې د ننه یو کوهی وچه د هغه او به ډېری یخې وې د کومو خلکو
ه به داروغه صاحب سره تعلق وهغوی ته کوهي له د تلو اجازت وا وهغوی به همیشه
ما زیکو لمبلوله تله هغوی به د او بو دیخوالي ډېر صفتونه کول چه هرچا ته به د هغه ځای
مبا شوق پیدا شو لیکن افسوس چه هر څو به هلته تلی نه شو، دا رعایت صرف د داروغه
سنا یانو ته ؤ او کله نا کله به بغیر د څه وجهې نه داروغه صاحب خلک بند کړل او نمبردارانو
به یې حکم وکړو چه هیچا ته وړلیری نه کړي نو دغه وخت به د داروغه صاحب داشنا-
یو عجیبه حال ؤ ولی چه هغوی د کوهي د پاسه په یخو او بو د لمبو اموخته وچه ماز یګر
شو او د لمبو وخت به راغی نو په دوی به میږی لګیا شو ورونه به یې د زول نمبردارانو
به یې چغې وهلی او منتونه زاری به یې ورته کولې چه په دې کښې به ماښام شو جېلخانه
بنده شوه نو اخر به ددې خوارانو زړه صبر شو. داروغه صاحب به کله نا کله ما ته هم

د دی نوعی دیخو او بو صفت کولو او دا ته به بې منت هم کوو او دا ته به دې چه که چیری
همیشه نه ځی نو کم از کم یو ځل خولا پرشه او دهغه ځای د لمبلو مزه خوړا خله لیکن ما پرې
ښیزو نو ځان نه اموخته کولو ځکه چه ماخو د خلکو دابی قرادی او بې عزتی هره ورځ لیدلی او
داروغه صاحب به ماته د پرمنت کولو چه ته نه چکرله ځی او نه لمبلو له ځی د خپلی احاطی
بهونه وځی ما به خپل زړه کښی خیال کوو چه اوس خو داروغه صاحب سا منت کوی لیکن
چه یو ځل یی د دې نورو په شان اموخته کړې! نو بیا به تاسو سره هم دغه شان سلوک کوی
نه ولی بل له داسی موقع ورکوی؟ د هر سړی خپل عزت په خپل لاس کښی دی او که هر سړی
خپل خواهشات او ضروریات قابو کړی نو همیشه به ارام خوشحاله او عزتمند وی.

## رهائي:

دلته هم زمونږ مشقت څرخه او تارونه (سپینسی) دیشل وو. زه به اکثر د خپل
مشقت (کار) نه صرف په دوو گینټو کښی فارغه شوم او بیا به می مطالعه کوله.
اخر زما د سزا کاله قید په ختمیدو شو او رهائي می رانژدې شوه، د رهائي تاریخ
په ټکټ وختو. زه نه پوهیږم چه د دې نه څنګه زمونږ جماعت انجمن اصلاح الافاغنه
خبر شو ځکه چه ما چیری هم د دی قسم خبری چا ته نه وی لیکلی او دا به می هم نه خوښه
چه چاله تکلیف ورکړم. دا تمانژو نه به کوم کوم خطونه راتلل چه مونږ د خپلی رهائي تاریخ
نه خبر کړه ولی ما دا خبره نه خوښوله او چاله می دلته د راتلو تکلیف نه ورکولو په دې
ما دا خبره همیشه د خپلو خپلوانو او د دوستانو نه پټه ساتلی ده او زه د دی خبری نه
نه وم چه انجمن زما استقبال کول غواړی، دا انجمن زما استقبال خوښ و او زه
بې کولو لیکن د حکومت خوښه نه وه ځکه چه خلک به د ده د رهائي نه خبر شی او په

کښې به ډېره لېبه پراپېګنډه وشي په دې وجه دحکومت سره فکر پیدا شو او ما ته
لا څه ورځې وې چه په دې کښې جمعدار راغی او ما ته یې ووې چه دارو غه صاحب دې
غواړي زه به دفتر ورغلم نو ماورته ووې چه دڅه د پاره مې غواړي ؟ هغه راته
ووې چه ستا رهایي شوې ده . نو ماورته ووېل چه زما لا څو ورځې پاتې دي زه د وخت
نه مخکښې رهاي نه غواړم نو هغه لاړ او بیا راغی چه ستا رهایي نه بلکه د پېښور جیل نه دې
تبدیلي شوې ده . حقیقت دا دی چه د معافي نه مې انکار ځکه کړې وُ چه جېلوالو به د
معافي په طمع زمونږ سیاسي ورونړه د پرسیکول او درې څلور ورځو په معافي به یې
پرې د پراحسانو نه کول ما خپل سامان واخیستو دټولو ورونړو نه که هندوان ووکه
سکهان ووکه مسلمانان په خندا او خوشحالۍ رخصت شوم او ټولو ته ورته غاړه
وتم . ما سره که سکهان ووکه هندوان او که مسلمانان دټولو ډېر محبت وُ . چه دفتر ته
ورسېدم او به دفتر کښې مې سپاهیان ولیدل نو تسلي مې وشوه ، زه یې هغوی ته
په حواله کړم ، مونږ د جیل والو نه رخصت شو او دسټیشن په طرف روان شو ځکه
دګاډي دراتلو وخت لا نه و او دګاډي راتلو ته څه وخت پاتې وُ څه وخت چه مونږ
سټیشن ته نژدې شو هغوی زه د سټیشن نه بهر ایسار کړم او سټیشن ته یې په
دې وجه بو نه تلم چه خلک به مې ووینې او بله دا د میانوالي خلک ټول پښتانه دي مشران
له پښتو ژبه ورځي او دکشرانو نه یې هېره شوې ده زمونږ د میانوالي د جیل ډاکټر چه
وُ هغه له پښتونه ورتله او یوه ورځ یې پلار زما ملاقات له راغلی و نو هغه ما سره پښتو
وېله ، پښتنو کښې دا ډېره لویه کمزوري تیا ده چه چېرته لاړ شي او چا سره واده وکړي
نو هغه خپله ژبه ترې پاتې شي . مونږ سره په سرحد کښې په زرګونو هندوان اوسې هغوی

هغه خپله ژبه هېر کړې نه ده، پنجابي يې هم زده ده او زمونږ ژبه هم زده کړې د
داکمزوري صرف په مونږ پښتنو کښې ده.

ما بنام تياره کا دې داغې مونږ پکښې سواره شو، په دې دېل کښې ډېرې
نه وې اکثر کوټې ډکې، پکښې خالې وې مونږ پکښې کافي ځای بيا مونده او پک
آرام کښېناستو او ډېل پېښور ته روان شو ټوله شپه دخوشحالۍ نه خوب رانغی سا
په ساعت به راويښېدم او دسپاهيانو نه مې تپوس کولو چه دا ټکسنه پورې وتوا وک
اخر سحر وختي چه مې سترګې پرانيستې نو زمونږ ډېل دخيرآباد په سټېشن ولاړ
زماخپل ملک او خپل قوم سره ډېر محبت دی دخپل ملک په داخلېدو او دپښت
په ليدو مې زړه ډېر خوشحاله شو زه پخپل ځای بې غمه پروت وم و بيه دې خيال کښ
وم چه پېښور ته به څه وخت ورسو ليکن ډېل روانېږ ونه، په دې کښې زه راپورته ش
دروازه مې ليرې کړه تماشا کوم چه ډېل ولې نه روانېږي ګورم چه پوليس واله پلي
فادم منډې وهي کله يوه کوټه، کله بله کوټه دډېل ليرې کوي چه په دې کښې يې زه و
زما په ليدو هغوی ډېر خوشحال شو، تا نه دا دماله راغی او ماته يې ووې چه مونږ
تالټوو ته کوم ځای وې زمونږ زاره دی په لټولو شنه کړه ډېل هم ليټ شو ما ورته
چه زه خو هلته پې کوټه کښې وم ليکن تاسو ځکه ليدلې نه يم چه زه ملاست وم ما ورته و
چه ما سره موخه کار دی؟ هغه راته ووې چه داځه ستاد پاره موچای تياره کړې د
زما اسباب يې دکا دی نه راکوز کړو زه ورسره روان شوم چای نيا ره وه انسپکټ
صاحب هم هلته ناست و مونږ چای څکله چه په دې کښې ډېل روان شو ما ورته و
چه کادی خو رانه لاړ هغوی وخندل او په خندا کښې يې راته ووې چه مونږ به دی

موټر کښې ډوډۍ او چای موخکله زما چارج لي د پنجاب د پولیس والو نه واخیستو
هغوی ما سره ګڼه ډېره وکړه او رخصت شو. خلک د پنجاب د پولیس نه د ډېر شکایت
کوی لیکن دی پولیسو ما سره چه ښه سلوک او د هر قسم آرام د سولو کوشش کړې
دی زه یې شکور یم او هیچری به د هغوی ښه سلوک را نه هېر نه شی، د ستیشن
نه چه بهر شو موټر تیار ولاړ و زه یې په موټر کښې سور کړم یو تانه دار او دوه تنه
سپاهیان را سره یکښې سواره شول انسپکټر صاحب پاتې شو چه نوښار ته
نزدې شو نو زه یې بهر په بهر د مردان په سړک چارسدې ته روان کړم او س
زه پوه شوم چه د پېښور په ځای می چارسدې ته بیایي په لاره راته یو ځای
دوه ځله موټر پنکچر شو، اتفاق دا و چه هر ځای به را ته پنکچر کېدو هغه ځای
به ډېره آبادی نه وه، دا بادی نه به لیرې وو. آخر دا چه سړ ډېر وته دا ورسېدو
درا درسېدو سره راته بیا موټر پنکچر شو په تانه دار صاحب د ډېر هیبت راغی فوراً
د موټر نه کوز شو، موټر ته یې صبر و نه کړو یوه ټانګه ولاړه وه په هغې کښې مونږ
سواره شو وچارسدې ته روان شو چه چارسدې ته ورسېدو، دلاور خان
زمونږ اسسټنټ کمشنر و د سینډ په غاړه یې قچرې کوله په قچرې کښې د ډېر خلک
ولاړ وو چه زه یې ولیدم نو خلکو ما له راستنه کړه او زما نه چاپېره شو زه یې دلاور-
خان ته پیش کړم هغه ما سره د ډېره راشه د رشه وکړه ځان سره یې د پکې لاندې
کښېنولم د ډېرې خبرې اترې یې را سره وکړې بیا یې تانه دار له حکم وکړو چه دی
اتمانزو ته درسوه. د تلو په وخت کښې دلاور خان هم ما سره را روان شو چه د
بونډای نه بهر شو نو ما ورته ووې چه بس مهربانی زیاتی تکلیف مه کوئ د غه

جلب بس و نو هغه را ته په خندا کښې ووې چه خلک خو په دې لوی فخر کوي او لوی عزت یې گڼي که چیرې یو اسسټنټ کمشنر یو څوک مه دربسه احیلب وکړي ماورته په جواب کښې ووې چه دا تکلیف دی اوزه دا څیزونه نه خوښوم چه څه وخت مونږ بهر راووتو په دې لږ ساعت کښې په سوونو خلک جمع شوي وو. ما تلو سره کړه بړه وکړه او دهغوی هغه جذبه او محبت می ډیره محسوس کړله او تم تم کښېنی زه سره د تانه دا زاو پولیس اتمانزو ته روان شوم .

# سیاسي سرګرمۍ او پښتون اخبار

کلي کورګښې، د اتمانزو جلسه، فخر افغان، انجمن او مدرسې

هشتنغر، دواوه، صوابي، بالاګرهي، ساول ډیره رسم

کاټلنګ، کلیاړه، اسمیلا، پېښور، کوهاټ، هنګو

تل، بنون، لکۍ)

د حج سفر (شام، بیروت، عراق، موصل، بغداد، نجف، کوفه، کراچي،) پښتون اخبار

سنه ۱۹۲۸ع

د امان الله خان خلاف

شورش او مونږ، نادرخان باچاګیږي،

## کلي کورکښې:

تګنه غرمه وه موږ په کلي ته ورسېدو، زه چه ازاد سکول ته نژدې شوم، هلته د سکول یو هلک وپېژندلم، هغه په منډه لاړ چغې یې کړې چه باچا خان راغی، ددې په اورېدو ټول هلکان سره د استاذانو سړک ته را اوزغلېدل. په سړک باندې یو ځای شو نو هلکانو چغې کړې او یو شور جوړ شو یو ساعت کښې ټول راجمع شول او زه یې دغه شان په خپل منځ کښې ګېر ملرمې ته بوتلم او دا یې په شریکه وېل چه «د فخر افغان په خیره راغلی دې زندانه، مرحبا مرحبا» استاذان هم راغلل موږ ټول یو ځل ته ورتېر غاړه وتوا ودېرې خوشحالي مووکړه، هلکانو ماته دخپل طرف نه سپاسنامه (Address) راکړه، چه دکلي خلک خبر شو هغوی هم په منډه منډه ملرمې ته راغلل دېر د خوشحالي وخت وچونکه ده ودېره او د ارام کولو وخت وما ددوی نه اجازت را حیسته چه ځی وخت کور ته لاړم نو هلته دکلي خپلې پردې دېرې زنانه راجمع شوې وې او دومره قلاړ لا رنه وه چه زه دننه تلی وای هغوی کښې دېره مینه وه دېر محبت وُ، دېر احساس وا ودېره جذبه وه. دراشه درشه نه ورو سته هغوی رخصت شوې او یو څو کسانی زموږ نژدې رشته دارې پاتې شوې. د تولونه اول مې ولمبل غسلخانې ته لاړم لوجامې مې بدلې کړې لږه غوندې دوډۍ مې وخوړه دېر ستړی شوی وم بیا دېر زر اوده شوم ماسپښین را پاڅېدم جماعت ته لاړم هلته هم دېر خلک جمع وو لمونځ موو کړه او پس دلمونځ نه حجرې ته راغلو او دخلکو سره مې کپې شپې شروع کړې، څوک به چه خبر بدل زماليل وله به را تلل ماچه دخلکو دا جوش او خروش ولیده نو زه ورته حیران پاتې شوم ماته معلومه شوه چه یو خوا زما قید او بله خوا د «انجمن

کارگزاری په ملکه بنه اثر کړی دی او قوم کښې یې یوه زبردسته جذبه او احساس
پید اکړی دی. یو څو ورځو کښې د پېښور، مردان، کوهاټ، بنو او ډیره تول دوستان
او ملګری زما ستړی مه شی له راغلل. اخر دا څو ورځې پس دا سلسله ختمه شوه. زه چه کلې ته
راغلم، نو زمونږه مرخه چه ووهغه لوټ شوی وو چه زه یې قید ولم نو زمونږه د پوره کوره ډېر
جوار، د پړغنم زمونږه کور کښې وو چه هغه وخت کښې به تقریباً دیو لک روپو وو زه درې
کاله قید وم، ما واوزی په پېښیر کو کلی کښې د پنځو کالو کښې خپل کړلې وو چه واپس راغلم نو زما
خوریٔ سلطان خان راته دویل چه په تاسو درې زره روپۍ مالیه بقایاده دغه شان
ماته معلومه شوه چه زما د ښځې تول کالی (زیورات) کانه وو. زمونږه په پښتنو کښې
دا قاعده ده چه په غم، خوشحالی، خپل خپلوان او دوستان ورله د ودی کوی او ډېرې
پیسې ورې لګوی ماته هم ډېرو دوستانو او خپلو خپلوانو د ودی ستونه وکړه ماد
هغوی په خدمت کښې دا تجویز پیش کړو چه دیځی د ودی په ځای ماله (اوم خرچ)
اومه د ودی را کړې ماله یې نغدې را کړې خومره چه ستاسو په د ودی خرچ کېږې
دغه نیمه نغدې ماله را کړې ولې چه زمونږه قوم ډېر وروسته پاتی شوی دی او د ډېره
لوی قوم دی و دده دخپلې ژبې یو اخبار قدرې نشته او نه یې د بچو د تعلیم دپاره
مدرسه شته. د پښتنو ځپلیه ژبه کښې داسې هیڅ څیز نشته چه زمونږه قوم ترې څه
فایده اوچته کړې، مدرسه جوړه کړې او پښتون څه نه څه د دنیا د حالاتو نه خبر کړې.
لیکن زما دی خبری په دوی څه اثر ونه کړو. هر پښتون د ودی ورکولو ته تیار دی
لیکن نغد حساب ورکولو ته تیار نه دی. صرف درې کسان وو چه هغوی زما د خبری
سره اتفاق وکړو او کافی نغد حساب یې را کړو چه یوه می چاپی (د توره ښځه) بل

عباس خان و او ددریم عبدالله شاه میا او نورو ماسره اتفاق ونه کړه پخه دودی ماقبوله نه کړه او نغده دودی هغوی رانه کړه داز مونږ دپښتنو په لویه بلا قسمتی او ناپوهی ده چه مونږ بی ځایه خرڅونو، رسمونو او رواجونو باندې په زرګونو روپی خرڅوو (ګلکوو) او دقام، وطن او اجتماعی ښیګړو د پاره دیوې پیسې خرڅ کولو ته تیار نه یو. نورو ژوندی قومونه په هر څه کښی دقوم حصه کوی. په هندوه او زمونږ کلی کښی او سیده، بودی ښځه وه چاوې چه هر وخت دا اوریه اغږی نو یو موتی اوړه یل په کتوی کښی اچوي چاتری تپوس وکړه چه دا څه کوې هغې وې دا په قومی فند کښی وړکوم او زمونږ پښتانه ورونه په رواجی دودی زرګونه روپی ګلکوی خو دنام بنیادی فند کښی یوه پیسه نه ورکوی. دغه وجه ده چه مونږ ددنیا دټولو قومونو نه وروسته پاتی یو.

## دفخر افغان لقب:

انجمن اصلاح الافاغنه زما دا ټولو په خوشحالی دیوی لویې جلسې انتظام وکړه او دټولی صوبې خلکو ته یې دشرکت دپاره دعوت نامی واستولی. دجلسې په ورځ په زرګونو خلک په ډیر شوق او مینه محبت شریک شو، په اتمانزو کښی دټول قوم یوه (عظیم الشانه) لویه جلسه وشوه چه په هغې کښی ماله دقوم دطرف نه یوه سپاسنامه (Address) واکړی شوه، یوه تمغه او جوبه هم دقوم دطرف نه راکړی شوه او بله دا چه دټول قوم لطرف نه بی ماله دفخر افغان خطاب راکړه. چه زما د تقریر کولو وخت راغی نو اول ما دټول قوم او جلسې دکارکنانو ډیره ډیره شکریه ادا کړه نه پس یو مختصر تقریر وکړه او دقوم د داد او حوصلې زیاتولو دپاره مې ورته یوه قصه وکړه چه ما په مدرسه کښی په یو کتاب کښی لوستې وه ما ورته وویل چه ای پښتنو ورونو! تاسو باندی دهغه زمی نه شوی ده چه کوم

په کله وکښي لوی شوی وا و د کله وعادتونه يي اخيستي وو. په هغه کتاب کښي ليکلي وو
چه يو زمري د مور په ګېډه و چه موري د کله و په يو کنډک حمله وکړه د ور توپ کولو سره
بچي پيدا شوا و موديي مړه شوه او بچي تري پاتي شو دا بچي کله و سره لوی شو او څه وخت
چه لوی شونو ده کښي اکثر عادتونه د کله وو او د هغوی سره به خوړله او د هغوی په شان
بين بين اوازونه هم کول يوه ورځ يو زمري په دې کله ورا پيښ شو دده په ليد وګډې
دی خيل زمو کتي سره تس نس شوې او يو خوا بل خوا وتښتېدې د ځنګلي زمري په دی زمري
لو شو چه دده په ليد ولکه څنګه چه دا کله ی تښتي او بين بين کوی د غه شان د دې زمري
ين بين کول او تښتېدل ورته ډېر عجيبه ښکاره شو ده کله ی پرېښوې او ځان يي د غه
مري ته ورسولو او هغه يي راونيوه او ځان سره يي هلته يو نزدی د او بو تالاب ته راوستو
تالاب په غاړه يي و درود چه په هغه کښي خپل شکل ووينی او خپل ځان و پيژني چه ته هم
ما په شان زمری يي بين بين مه کوه او وغړ مبېږه! زمری چه خپل شکل وليد و نو ور ته
لومه شوه چه زه خو زمری يم او هغه وخت يي د بين بين په ځای غړمبېدل شروع کړل
ما دې پښتنو ته ووې ای پښتنو ورونو! تاسو هم زمری يئ نو بين بين مه کوئ
غړمبېږئ، د غلامئ دا زنځير وشلوئ، پاڅئ، ملا وتړئ او خپل ملک او قوم د غير
غلامی نه ازاد کړئ! زما دی تقرير په خلکو ډېر اثر وکړو او جلسه په ډېری کاميابی سره
مه شوه.

زما صحت په جيلخانه کښي ډېر خراب شوی و او وزن مي هم پنځه پنځوس پونډه
شوی و، کمزوری شوی وم او په ملا کښي مي هم درد دونه پيدا شوی وو. په دې وجه د
ی عطاءالله خان په مشوره او د هغه په ملګرتيا زه ديو څو ورځو د پاره د ارام او هوا بدلو

په غرض کوه مری ته لاړم قاضي صاحب هم راسره لاړ او دهغه ځای آب وهوا راته ډېره فا
ورسوله بیا دهغه ځایه دکلیاتو په لاره ایبټ اباد ته لاړو اوماخه ورځې په ایبټ اباد کښې
اوزما اوښې امیرد رحمان خان سره تېرې کړې او ددې هوا په بدلولو زما صحت ته کا
ورسېده . زه چه څه وخت واپس راغلم نو اتفاقاً دلاور خان مې ولیدو ، هغه زمونږ
کمشنر و ډېرې خبرې لې راسره وکړې په اخر کښې لې بیل کړم او راته ئې ووې چه کوفت
هم ستا تقریر ډېر خوښ کړې دی او ډېر خوشحاله شوی دی صرف دا یوه خبره پکښې
نه وه ماورته وې چه کومه ؟ نو ده راته ووی دا دزمری غږ مبهار ځکه چه خلک
دي او ددی نه څه غلطي نتیجې وېنه باسي او غلط مطلب ترې واخلي ، کوفت صا
ډپټي کمشنر و ماورته ووې چه ما دا تقریر د کوفت صاحب د خوشحالولو په خیا
کړې نه ددی پروا کوم چه هغه ددې په اورېدو خفه یا خوشحاله شي هغه مې د قو
د پاره کړې دی او دهغوی د اوچتولو په خیال مې کړې دی . دلاور خان چارسد
ډپټي کمشنر په دی خیال اسسټنټ کمشنر مقرر کړې وو چه زمونږ انجمن او ازاد
ته نقصان ورسوي او هغه چه دلته راغی نو اول ئې په انجمن کښې د بې اتفاقۍ پیدا
وکړه خو هغه په دې کښې کامیاب نه شو او مدرسې ته ئې هم د هیڅ قسم نقصان ور
شو . نو بیا ئې په حکومت باندې زمونږ د مدرسې په مقابله کښې په چارسده کښ
انګریزي سکول جاري کړو او ځای په ځای به ئې زمونږ د مدرسې په خلاف
کوله + ده برتش حکومت بعض ~~[illegible]~~ کسانو ووٹی چه څونګ
ده پاره مدرسه جوړه کړه بوه . کړ ... [illegible]
په بنو کښې د خلافت تحریک په خلکو باندې ډېر زیات ښه اثر کړې و ،
دبنو د ضلعې ټول ملایان په دې تحریک کښې داخل شوي وو بلکه د بنو د خ

[illegible]

نمبردارانو استعفاگانی ورکړې وې او په تحریک کښې شامل شوي وو. د پیرنګیانو سره د ېره ویره پیدا شوه او د ېر هیبت پرې راغی زمونږ د چارسدې اکبرخان هلته جج ؤ. د بنو د پټی کمشنر هغه راوغوښتو او ورته یې ووې چه ددې خبرې خنیوی په کار دی نو هغه ورته ووې چه دا زما کار نه دی، زما کار خو دا دی چه تاسو ونیسئ او ما ته یې راچالان کړې. زه به د مقدمې سماعت وکړم. د پټی کمشنر چه دده نه مایوسه شو نو بیا یې دلاورخان راوغوښتو، دلاورخان په بنو کښې مجسټریټ وو او یوه دوشوت مقدمه پرې هم وه او هغه ته یې چه ووې نو هغه ورته سینه وټیپوله هغه ملایان یې په چلول د غلول او نمبرداران یې هم دوکه کړل او هلته د خلافت هغه تحریک فیل شو. چونکه ده په بنو کښې یوه لویه فتح کړې وه دی یې زمونږ د ی تعلیمی تحریک او اصلاحی تحریک پسې چارسدې ته راولېږه چارسده یو د بې ام ځای دی دلته به همیشه اسسټنټ کمشنر انګریز و دیسی سړی به نه و. دلاورخان په مشن سکول کښې او د مشن سکول په بورډنګ کښې ما سره د ېره موده یو ځای پاتې شوی و زمونږ دواړو په شان یو د بل سره مینه او محبت ؤ او زمانه یو یا دوه جماعته روستو و. ساده خلکو ته به یې وې او اکثر به یې په دې دوکه کول چه په اتمانزو کښې چه تاسو پخپلو بچو سبقونه وایئ نو سند به ورله څوک ورکوي او نوکري کېږی به څنګه شی او مونږ به چه چپ و ته په علاقه کښې غم ښادی له لاړو نو چه ذې به خبر شو دې به هم راپسې راغی اکثر به د تعلیم متعلق د خلکو په مخکښې بحثونه شروع کړل قوم کښې لږ د ېر شعور (پیدا شوی ؤ) د خدای فضل وچه په هر ځای کښې به یې شکست خوړ. د ده د غلطی پرا پیګنډې باوجود په خلکو کښې د غلط فهمی پیدا کولو په ځای د خلکو

به زمونږ انجمن او مدرسې سره نوره هم زیاته همدردي پیدا شوه ددغه غلطه
پرا پیګنډه مونږ د پاره ډیره مفیده ثابته شوه او تر اخره پورې الله تعالی دغه خپلو
حیلو او حربو کښې کامیاب نه کړل او چارسده کې نه ارماني لاړو او زمونږ انجمن او مدرسې
ته یې دهیڅ قسم نقصان ونه رسولی شو. دلاور خان عجیبه سړې و. دی د پیرنګیا نو د پاره
هر قسم قربانۍ ته تیار دو. یوه ورځې زمونږ حجرې ته راغی او په حجره کښې نور هم ډېر میلمانه
وو، ده ډاکټر صاحب ته مخ کړو او ورته یې ووې چه و ګوره دې افغانستان ته څه څه
ظلمونه یې په قید یا نو شروع کړې دی که چرې پیرنګیا نو په افغانستان کښې حمله وکړه
نو زه به د ټولو نه مخکښې یم توره به راسره وي د پښتنو سره ونه به وهم. ډاکټر صاحب
ورته په جواب کښې ووې شاید زه به ستا په مخالفه ډله کښې یم ولې چه زه پښتون یم
زه به څنګه د پیرنګیا نو د پاره پښتانه ووهم! ددې په اورېدو غریب په هغه مجلس
کښې کېنه شو او بیا یې بل بحث شروع کړو.

## انجمن او مدرسې:

دانجمن په کوشش زمونږ د مدرسې په ملک کښې ډېر شاخونه قایم شوي وو
یو ډېر لوی شوق په پښتنو کښې د خپلو بچو د تعلیم پیدا شوی و ما او خادم صاحب
د هغو معاینه شروع کړه. مونږ چه به کله دا د ورې کولی، نو د ازاد سکول هلکان
به هم مونږ سره تلل، ولې او سعادت خان د ترنګزو به زمونږ دې جلسو کښې نظمونه
وئیل، دوی ډېر خوش اوازه وو. ولې به د ډېر ښکلې قرائت وئیلو او ددې به په خلکو
ډېر ښه اثر کېدو او د خپلو بچو د هر قسم تعلیم د کولو سره به یې شوق پیدا شو.

زمونږ دیوسف زو مدرسې به ډېر ښه حالت کښې وې او د هغې تولهٔ د صاحبزاده

خورشید خان صاحب، دادینه او نصرالله جان محنت قربانی اوکوششونه وو. دمشغو
و ددواوي نه پس مونږ دیوسف زو دوره شروع کړه او د تحصیل مردان او د تحصیل
صوابئ لټولي ملرسي موو کتلي، خادم محمد اکبر صاحب به امتحانونه اخیستل او ما به خپل
هغه وخت دخلکو سره په لیدلو، کتلو او تبادلهٔ خیالات کولو کښې تیرولو مونږ اول شروع
د مولانا شاه رسول صاحب د بالاکړي د ملرسي نه وکړله بیا ساول ډیر، کاټلنګ او
رستم ملرسي موو کتلي او په دې ځایونو کښې مولوي لويې جلسې هم وکړلې. او خلکو ته
و د اتفاق د دررولي، قامولي او د علم فایدې بیان کړې. په دې دوره کښې
صاحب زاده خورشید صاحب او نصرالله جان هم راسره وو. هغه وخت چه د ساول
یو نه، رستم ته رانیلو نو خادم صاحب او مولانا شاه رسول صاحب مونږ رستم ته
رخصت کړل او ما او نصرالله جان فیصله وکړه چه د سودم هر یو کلي کښې چه زمونږ
زاده راځي خه نه خه ساعت به پکښې تیروو او خلک به د خپلو اغراضو او مقاصدو نه
وو. مونږ پیاده روان شو او مونږ سره چه یو اس وهغه باندې مو مولانا صاحب سور
ولي چه هغه ډیر ضعیف ؤ، دا زما د سودم اوله دوره وه، په دې دوره کښې زما
بهادر خان د کوټر پاڼ او شا پسند خان د چار غولي سره ملاقات وشو، دوی سره
ډیرې خبرې وشوې او بعضې نورخانان مې هم ولیدل، زه د سودم د خانانو په لیدو
خوشحاله شوم او د دوی د اساده ژوند زما ډیر خوښ و. رستم ته مونږ ما ښام
سید و زمونږ خیال وچه دلته د شپې جلسه وکړو خو زمونږ د ملرسي سرپرست
په کلي کښې موجود نه و او بل ځوک د خلکو د خبرولو د پاره تیار نه و ما او نصرالله جان
هغه وخت ډوډۍ وخوړه نو زه د کلي په یو سر او هغه د کلي په بل سر شروع شو

هرې مجرى او هر جماعت له ورغلو او خلکو ته مو ووى چه په فلانی جماعت کښتى دماسختو

دلموڅ نه پس جلسه ده تاسو چه څه وخت لموڅونه خلاص کړئ نو دخدائ دپاره ها

راشئ چه خلک په جماعت کښى جمع شو نو مونږ ورته خپل مقصد او غرض بيان کړو . سبا

دهغه ځاى دملاسى امتحانونه واخيستل او شپې له کلياړى ته لاړو دلته زمونږ

يوه ډيره ښکلى مدرسه وه . دکلياړى نه نوى کلى ته لاړو او دنوى کلى نه اسميل

لاړو هغه ملاسى موهم وکتې او په اسميلا کښى نصرالله جان او صاحبزاده صاحب

يوى لويى جلسى انتظام کړى و او دټولى علاقى خلک يې راجمع کړى وو جلسه په

کاميابى سره وشوه . نصرالله جان زمونږ ډير قابل ، لايق ملګرى او دده په وجه زمونږ

دتحريک کار په پښتنو کښى روان و ، دپيرنګيانو دا خوښه نه وه او دغه شان به د

داکوشش وچه زمونږ ددې قسم مخلصانو ، کارکنان زمونږ نه جدا کړى ، دهغه ماما

پيرنګيانو نوکر وهغه يې مجبوره که چه نصرالله جان د بيرسټرى دپاره لندن ته و

او هغه لندن ته لاړ .

اصل کښى داځاى دټول يوسف زى د تحريک مرکز ؤ بيا مونږ دپښ

دعلاقى دوره شروع کړه او چه دپيښور دعلاقى له دورې نه فارغه شو نو بيا زه

او بنو په دوره لاړم . په کوهاټ کښى زمونږ دوه ملاسى وى ، دا ملاسى د

کارکنانو دا خلاص او کوششونو په وجه ډيرى په ښه حالت کښى وې ، په هنګو

مدرسه تيکدار صاحب على بادشاه جوړه کړى وه هلته مو يوه لويه جلسه وکړه

هغې کښى تقريباً دکوهاټ دهرې علاقى خلک شريک شوي وو . په هنګو کښى

دي ، دلته بعضى خودغرضو او سرکارى خلکو دشيعه او سنى تعقاتونه ډير نقص

دی دمینځ محبت په ځای پکښې د بد نفرت پیدا کړی دی. په جلسه کښې مایولوی تقریر وکړو، د په شیعه او سنی مسئله مې ډیره روښنایي واچوله، او له جنبره مې ورته داوکړه چه مونږ خو ټول پښتانه یو که شیعه دی نو هم پښتون دی او که سنی دی نو هم پښتون دی، یو قوم یو او یو مو ملک دی، یو مو خدای دی، یو مو رسول دی یو مو قرآن دی، او حضرت علی تاسو هم منئ، مونږ یې هم منو، نو بیا دا اختلاف پڅه؟ د هر چالا ده بېله بېله ده، خو دا ملک خو مو شریک دی، د دې ملک خدمت په شریکه په مونږ ټولو فرض دی او باید چه مونږ ټول د دې ملک خدمت وکړو. مونږ باید دا فکر وکړو چه دا ملک زمونږ دی او خدمت یې هم باید په ګډه وکړو، دا نفرت خو د غرضو خلکو په شیعه او سنی کښې پیدا کړی دی. زما دې تقریر په خلکو ډیر ښه اثر وکړو که شیعه وو که سنی و او څه نه څه د نفرت هغه اور چه خود غرضو خلکو لګولی وکم شو، زما پدې تقریر د هنګو خانان ډیر خپه شو او ما ته یې ووې چه زمونږ د شلو کلو نو خواری دی، په سیند لاهو کړه. ما ورته ووېل چه په دې بې اتفاقۍ کښې خو نه ستا سو خیر شته او نه د قام، او ملک ته ترې ډیر نقصان رسیږي که دې کښې فایده ده نو هغه خو دا انګریزانو ده، هغوی په دې خبری ښې ګرځي او د بې اتفاقي اور ته په هر ځای کښې بلې وهي.

د هنګو نه بیا تل ته لاړو د لته زمونږ ډیر ښه ملګری وو، د هغه ځای ملا صاحب مو هم وکتله وکوهاټ ته واپس راغلو، د کوهاټ په ټوله ضلع کښې چه د دې مدرسې د پاره څو مره قربانۍ او فداکاری د تل خلکو کړې ده، دومره هیچا نه ده کړې، د وی په تعلیمي او بیا په سیاسي سرګرمو کښې هم ډیره برخه اخیستی ده او زما سره یې

دېر امداد او کار کړی دی. د کوهاټ نه بیا بنو ته لاړم، بنو کښی می امیر مختار صاحب
چه زمونږ دازادی ملګرسی د هیډ ماستر پلار دی او یو دېر مخلص کارکن دی د هغه
په وساطت می د علاقی دوره وکړه او د دوه مکتبونه مو د ملا یانو په برکت پرانیستل او
دېر و خلکو سره مو لیدل کتل وشو او تبادله خیالات مو ورسره وکړل. د بنو په ښار کښی
ملک خدا بخش صاحب وکیل د پیښور د جېلخانی په کوارټین کښی څو ورځی ما سره
پاتی شوی وو او یو بل سره مو پیژندګلوی شوی وه د هغه په ذریعه حکیم عبدالرحیم
صاحب محمد جان بیرسټر، او محمد نواز خان وکیل سره می لیدل کتل او واقفیت
پیدا شو. زه چه څه وخت د لاهور په جېلخانه کښی وم هلته مو یو څو قیدیان د بنو
د ککی کلی لیدلی وو د هغوی سره ما د دی خبری فیصله کړی وه چه هر کله زه رها
(خلاص) شم او بنو ته درشم نو ککی ته به ضرور درځم. په هغه خیال زه او هیډ ماسټر
صاحب او د هغه پلار ککی ته لاړو په یو جماعت کښی مو لمونځ وکړو او بیا مو د خلکو
د راجمع کولو کوشش وکړو. په هغه ورځ د دوی چیرته څه لوبه (اتڼ ؟) وه دوی
ټول هغی لوبی له روان وو. ما ورته یو څو خبری وکړی چه: ای پښتنو ورونړو کافر
خیل کافر ورور نه وژنی تاسو چه ځان ته مسلمان وائی بیا ولی یو پښتون بل پښتون وژنی؟
او نه چری یو پیرنګی پچپل قوم مخبری نه کوی او نه ستاسو ملګرتیا کوی بیا ولی تاسو د خپل
ورور په سر هغوی له مخبری کوئ او د هغوی ملګرتیا کوئ او نه چری یو هندو د خپل
هندو پر خلاف ناحقه او د دروغو شاهدی کوي او نه د خپل هندو ورور د شرمولو
او بی عزتئ کوشش کوی. خو ای پښتنو ورونو بیا تاسو ولی په ناحقو شاهدو د یو بل
بی عزتی او شرمولو پسی روان یئ، لږ خو د خدای نه ویرېږئ او شرم وکړئ. یو کافر

خوخېل کافر وو. نه وژنی ، مخبری یې نه کوی او ستر موی یې نه او مونږ چه خان ته
مسلمانان وايو او پښتانه يو مونږ دې خېل پښتون مسلمان وررو وژنو ، شر موو
او مخبری د په پرې کوو . ماورته ووې چه دعا وکړئ چه مونږ له خدای پاک پوهه
او علم راکړی . از مونږ په زړونو کښې الله تعالی مینه او محبت ورورولی ، عزيزداری
ما مولی او اتفاق پیدا کړی . څه وخت چه مونږ د جماعت نه وو تو نو څو کسان را نه چاپېره
شو او زه یې دا سه تینګ ونیولم چه نن دې پرېږدو نه مونږ سره به ضرور شپه
کې ماورته وې چه زمونږ په مس د ېر زیات کار ونه دي او مونږ پاتې کېدای نه شو
نو هغوی هم را نه کلک شو چه دا خبره شونی نه ده ماورته وې چه اخر دا تاسو
ونږ ولی دومره مجبور وئ هغوی راته ووې چه خدای ګودا دومره ژوند
تېر شو نږ یرو کښې موسپین ولګېده لیکن د چامیا ملانه مو دا قسم خبری اوريدلی
دی چه تاسو پښتانه هم خېل کور کښې ورو نه یئ او که چیری یو کافر بل کافر نه
ژنی نو تاسو هم خېل ورور مسلمان مه وژنی خلک وایي پښتون ترقی و نه کړه په
انو لاړو زوال شوی دی لیکن حقیقت دا دی چه پښتنو ته چا سمه لار ښودلې
؟ چا دوی لره منع کړې دي او دوی منع شوی نه دی هی افسوس د نورو قو
نو په شان د دوی غمخور نشته ! د دوی شپون نشته څکه خرېلي شرمېنان
دي او ماتوی .

څه وخت چه زما دوره ختم شوه او زه کلی ته راغلم يوه ورځی زه عباس خان
اکرم او ما ته یې ووې چه د اکاخیل میا معروف د ېر خطرناک سړی دی
ورځی د هغه دا کوشش دی چه ما او تا کښې بې اتفاقی پیدا کړي . او د هغه يو خو خبرې

بي ماته وکړې چه زه دهغې بيا نول نه غواړم . هغه خبرې په دېښتياسره ډېرې خرابي
وې ماته نورو خلکو هم دمياں معروف صاحب ډېرې قصې کړې دي اوکه دعباس خان
اومقصودجان په منځ کښې چه زمونږ دهای سکول هيډ ماسټر وچه دا څه قسم ناچاقي
پيدا شوې وه هغه هم دده کارګذاری وه . ماته دا هم معلومه شوه چه دې زمونږ دانجمن
په ممبرانو کښې پرې جنبې پيدا کول غواړی او اول چه کوم دمينې محبت او اتفاق مظا هره
دانجمن په ممبرانو کښې وه نن هغه نشته بلکه دانجمن ممبرانو ديو بل نه ګيلې مانې او
شکايتونه شروع کړې دي . ميا صاحب زمونږ دانجن ديو ډېر فعال رکن ؤ دګډ
کار ده ته په حواله و دا خبره ورو ورو وګوښه او د ميا معروف غوږ وته هـ
ورسېده او څه ورځې پس هغه دانجمن دانسپکټری نه استعفا وکړه محمد
عباس خان زمونږ دانجمن صدر و دهغه دا خيال وچه زه دده استعفا فو
منظورومم ليکن ما ورته ووی چه ته لږ صبر وکړه او دا به ښه وي چه دده استع
انتظاميې ته پېش کړې شي بله ورځې ما مولانا محمد اسرائيل صاحب وليد ه
راته دميا معروف دا استعفا ذکر وکړه ده بانډی هم دميا صاحب تعليم اثر کړ
و ده راته ووې چه دميا صاحب خوله سورې ده هغه بله ورځ هم دلته خلک
لګيا و او دا نجمن خلاف يې خلکوته خبرې کولې هغه چه په هوشان وی رضا کول
په کاردی اوکه چېرې هغه مستعفی شي نو زمونږ انجمن ته به ډېر نقصان ورسي
زمونږ برخلاف په پراپيګنډه شروع کړې . ما ورته ووی چه داخو ته منې چه د
خوله سوړې ده دهغه پخپله خوله قبضه نشته بيا دا هسې سړې چه زمونږ انجمن کښې و
زيات خطرناک دی چه زمونږ دانجمن برخلاف پراپيګنډه کوي په ځای ددې

ملي نه بهوري و زمونږ برخلاف پراپیګنډه کوی نو په خلکو به يي دومره اثر نه وي
خلک به وايي چه دی خو په انجمن کښې نه دی نو بيا خلک دده په خولې دومره اعتبار
کوي او دی به مونږ ته دومره نقصان رسولو قابل هم نه وي لکه چه نن دی. بله ورځ
مونږ خبر شو چه عباس خان د هغه استعفا منظوره کړه ليکن کوم کر چه زمونږ په انجمن کښې
بیا صاحب کړي وُاو کومې جرړې چه زمونږ په انجمن کښې خوري شوي وې هغه ونه وتلې
زمونږ دا انجمن د بعضې اراکينو دا عادت شوی و چه څه وخت به يو ځاى شو نو
يو بل خلاف خبری به يي کولې او بيا وړو وړو زمونږ خادم صاحب او عبد الاکبر خان
دې درجې ته ورسيدو چه د ملاېسې ډهلکانو مخکښې به يي داسې فضول خبرې
ولې چه سړي به ورته حيرانيږ ويوه ورځ ماته هيډ ماستر صاحب ووې چه ناظم صاحب
سکرتری صاحب ډهلکانو په مخکښې داسې خبرې کوي، او ددې قسم خبرې کول په
کاره نه دي ځکه چه دا خو دا انجمن يو ذمه وار خلک دي او ددوی په داسې خبرو به خلکو
اب اثر کیږی او زمونږ انجمن او مدرسې ته ترې سخت نقصان رسيږی ماورته
وی چه هغوی څه خبرې کړي وې هغه راته ووې چه نورې خبرې خو پريږده هغه
ورځ ډهلکانو په مخکښې لګيا وچه ستا دوست قاضي عطاء الله خان ډيره ګنيانو
خبر دی او ده پسې يي لګولې دی او دی چه په کارکښې هغه دغه کوي دا د قاضي تعليم
ی چه په ده يي اثر کړي دی. زه ددې په اوريدو ډير خفه شوم چه ددوی په ما او
قاضي صاحب شکونه او الزامات لګوي ليکن ما څه کولی نه شو ددوی خولې بادې شوی
ی. ډير حله مادوی خان له پوه کړل چه ستاسو ددې قسم خبرو نتيجه به څه وی؟
ددوی نه پوهيدل.

د ۱۹۲۵-۲۶ع وخت ؤچه په پېښور کښې د جمعية العلماء هند جلسه وه مونږ ا
يي هم دعوت راکړی وزه مقصود جان د اتمانزو د ازاد سکول هيډ ماسټر او د دې
ازاد سکول يو څو هلکان دغه کنفرانس کښې شريک شوي وو په دې کنفرانس کښې غني
چه دغه وخت د ديارلسو کالو و تقرير کړې وچه د هغه تقرير په ټوله جلسه او د جمعية الع
هند په ليډرانو ډېر زيات اثر وشو. مولانا کفايت الله چه د جمعية صدر و را پاڅيد
او غني يي ډېر ښکل کړو. په دې کنفرانس کښې صاحبزاده عبد القيوم صاحب هم موج
و، چه جلسه خوره شوه نو صاحبزاده ماته ووېل چه زمونږ د اسلاميه کالج جلسه د
که ته هغې له راشې نو ډېره ښه به وي ماورته دا ووېل چه مونږ سره يو تعليمي نظم دی ک
ته مونږ له اجازه راکوې چه هغه نظم زمونږ د مدرسې هلکان هلته ووايي نو زه به د
مونږ به تاته دا نظم وښيو ته يي وګوره هغه يو تعليمي نظم دی هيڅ سياست پکښې نشته
صاحبزاده صاحب ته مو هغه نظم وليږلو او د کتلو نه پس يي مونږ له اجازه راکړه او مو
دې جلسه کښې شريک شو هلته زمونږ د مدرسې دوه هلکان پاڅيدل او هغه جلسه کښ
يي هغه نظم وويلو هغه نظم د جلسې په خلکو دومره اثر وکړو چه د اسلاميه کالج هلکان په ژړا
او په جلسه کښې د شريکو ډېرو پښتنو د سترګو نه اوښکې توی شوې او د انګرېزانو چه وو
کرهو کښې د اسې نيغ شوا ووېل چه دا هلکان څوک دي؟ Who are these boys
ماورته ووېل چه دا د اتمانزو د ازاد های سکول طالب علمان دي نو دوی ووېل چه ښه
ازاد سکول؟

## د حج سفر :

زه په ۱۹۲۶ع کښې د حج په سفر روان شوم، په دې سفر کښې بوزه وم، يوه مې خو

بل می اوبښی، زما دتره زوی عطاءالله خان و او بله می ښځه وه، پېښور ته ولاړو
او ډاکټرصاحب راته د سیکنډ کلاس ډبه ریزرف کړه او کراچی ته ورسیدو. مونږ
په کراچۍ کښې د حاجیانو په کیمپ کښې وو چه د عبدالله هارون صاحب. بی بی راغله مونږ
یې کورته بوتلو، د هغوی یو ښه مناسب کور و هلته یې ډېره کړو. د حاجیانو جهاز راغی
مونږ د پاره عبدالله هارون صاحب ډېر کوشش وکړو چه مونږ له د سیکنډ
وفسټ کلاس ټکټونه واخلی مګر هغه ټول ډک شوی وو د روانیدو په وخت کښې
هغه مونږ سره راغی اود جهاز کپتان ته یې ووې چه دوی ته سیکنډ او فسټ میلاو
نه شو، هغه ته یې ووې چه زمونږ خیال وساتی په دې ټهر د کلاس کښې یې خلک دکلاو
او په شان اچولی وو چه جهاز روان شو، سمندر په څپو کښې وو چه لږ غوندې د سمندر
څ ته شو نو دخلوقی شروع شو مونږ ټول په تکلیف کښې وو ولی دخور حالت می ډېر
خراب و مونږ د جهاز د پاس نه کوز ځای ته ور کوز شو خو هلته هم زمونږ تکلیف کم
نه شو بلکه زیات شو نو زه بیا د جهاز هغه کپتان له ورغلم او ورته می ووې چه مونږ
ډېر تکلیف کښې یو ته چه زمونږ نه څو مره کرایه اخلی نو مونږ به یې درکړو ته مهربانی
وکړه مونږ له یو ځای راکړه چه مونږ پکښې آرام وکړې شو او روپۍ می ورکړې په
زکښې یوه کمره وه چه سامان پکښې پروت و هغه یې خالی کړه او مونږ هغې کمرې
ته ورو دا خو ښه وشو چه مونږ ځان له شو ولی تکلیف مو کم نه شو. دوی درې ورځې
یاتی شو او زه د فسټ کلاس نه بهر لوی برنډه وه هلته لاړم، مونږ خو کپتان
ب له حساب ورکړې و نو ما ته چا څه نه وې، اوه یا اته ورځې پس عدن ته ورسیدو.
دلته جهاز یو شواردز ولاړ و ني. دلته شپه یخه وه زه یخنی و نیولم او انفلوینزا

ﻣﻲ ﺷﻭﻩ ﺯﻩ ﺩ ﻓﺳټ ﮐﻼﺱ ﻧﻪ ﺑﻬﺭ ﭘﻪ ﻫﻐﻲ ﺑﺭﻧډﻩ ﮐﺑﻧﻲ ﭘﺭﻭﺕ ﻭﻡ ﭼﻪ ﻳﻭ ﻋﺭﺍﺏ ﺯﻩ ﻭﻟﻳﺩﻡ
ﻫﻐﻪ ﺭﺍﻏﻰ ﺍﻭ ﺯﻩ ﻳﻲ ځان ﺳﺭﻩ ﺩ ﻧﻧﻪ ﻓﺳټ ﮐﻼﺱ ﺗﻪ ﺑﻭﺗﻠﻡ ، ﺯﻣﺎ ﻳﻲ ﺩﻳﺭﻩ ﺧﺩﻣﺕ ﻭﮐړﻩ ﭼﻲ
ﺯﻩ ﺑﻪ ﻳﻲ ﺗﻭﻝ ﻋﻣﺭ ﻳﺎﺩﻟﻭﻡ . ﭼﻪ ﺟﺩې ﺗﻪ ﻭﺭﺳﻳډﻭ ﻧﻭ ﺯﻩ ﻟﻭﻳﺩﻧﻪ ﺷﻭﻯ ﻭﻡ . ﺩ ﺟﻬﺎﺯ ﻧﻪ ﺭﺍﮐﻭ
ﺷﻭﻡ ﺯﻣﺎ ﺩﺍ ﻣﻠګﺭﻯ ﻫﻡ ﺭﺍﮐﻭﺯ ﺷﻭ ، ﻳﻭ ځاى ﺷﻭ ﺧﻭ ﺗﻭﻝ ﺳﺎﻣﺎﻥ ﭼﻪ ﺩﻭﻯ ﺳﺭﻩ ﻭﻭ ﻫﻐﻪ ﺗﻭ
ﭘﻪ ﺟﻬﺎﺯ ﮐﺑﻧﻲ ﭘﺎﺗﻲ ﺷﻭ ، ﻋﻁﺎءﺍﻟﻠﻪ ﺧﺎﻥ ﺧﻭ ډﻳﺭ ﺳﺎﺩﻩ ﺳړﻯ ﻭ ﻫﻐﻪ ﺑﻪ ﺧﻪ ﻧﻪ ﭘﻭﻫﻳډﻩ ﺍﻭ
ﺩﺍﻗﺩ ﺩﻯ ﻫﻡ ﻭﻧﻪ ﮐړﻩ ﺷﻭ ﭼﻪ ﻫﻐﻪ ﺧﭙﻝ ﺳﺎﻣﺎﻥ ﻳﻲ ﺩ ﺟﻬﺎﺯ ﻧﻪ ﺭﺍﮐﻭﺯ ﮐړﻯ ﻭﺍﻯ ﻣﻭﻧږ ﺧ
ﺳﺭﻩ ډﻳﺭ ﺳﺎﻣﺎﻥ ﺍﺧﻳﺳﺗﻲ ﻭﻭ ، ﺯﻣﺎ ﻫﻐﻪ ﺗﻭﻝ ﺳﺎﻣﺎﻥ ﺍﻭ ﺯﻣﺎ ﺩ ﺗﻬﺭﺟﺎﻣﻲ ﭼﻪ ﭘﮑﺑﻧﻲ
ﺳړﻭ ﺯﺭﻭ ﺗﻧﻬﻲ ﻭﻯ ﻫﻐﻪ ﻫﻡ ﻻړ . ﻣﺎ ﻫﻐﻪ ﻭﺧﺕ ﺯﻣﻭﻧږ (ﻣﻌﻠﻡ) ﺗﻪ ﻭﻭﻳﻝ ﭼﻪ ﭘﻪ ﺟﻬﺎﺯ ﮐﺑ
ﺯﻣﻭﻧږ ﺳﺎﻣﺎﻥ ﭘﺎﺗﻲ ﺷﻭﻯ ﺩﻯ ﻫﻐﻪ ﻻړ ﻭﻳﻝ ﻳﻲ ﺳﺎﻣﺎﻥ ﻣﻲ ﺑﻳﺎ ﻧﻪ ﻣﻭﻧډ ، ﺩ ﺩﻏﻪ ځاى ﻧﻪ ﺟ
ﻣﻭﻧږ ﻣﮑﻲ ﻣﻌﻅﻣﻲ ﺗﻪ ﺭﺍ ﻭﺭﺳﻳډﻭ ﻧﻭ ﻣﻭﻧږ ﺩ ﺭﭘﻭټ ﻭﮐړ ، ﺩ ﻏﻭﺭﻭ ﺧﻭ ﮐﺑﻧﻲ ﺩ ﺳﻌﻭﺩﻳﺎﻧﻭ ﺣﮑﻭﻣ
ﻧﻭﻯ ﺟﻭړ ﺷﻭﻯ ﻭ ﺷﺭﻳﻑ ﻣﮑﻪ ﻳﻲ ﭘﻪ ﻣﺧﻪ ﮐړﻯ ﻭ . ﺩ ﺷﺭﻳﻑ ﻣﮑﻪ ﭘﻪ ﻭﺧﺕ ﮐﺑﻧﻲ ﺑﻪ ﭼﻪ ﺟ
ﺣﺎﺟﻳﺎﻧﻭ ﺭﺍﮐﻪ ﻭﮐړﻩ ﻳﺎ ﻏﻼ ﻭﮐړﻩ ﻧﻭ ﭘﻪ ﻫﻐﻲ ﮐﺑﻧﻲ ﺑﻪ ﻭﺭﺳﺭﻩ ﺩﻯ ﻫﻡ ﺷﺭﻳﮏ ﻭ . ﺩ ﺩﻯ ﻋﻳﺎﺷ
ﻭ ﻭﻟﻲ ﺳﻌﻭﺩﻳﺎﻥ ﺩﺍﺳﻲ ﻧﻪ ﻭﻭ ﻫﻐﻭﻯ ﺑﻪ ﺩ ﺣﺎﺟﻲ ﭼﻪ ﺧﻪ ﻧﻘﺻﺎﻥ ﻭﺷﻭ ﺩ ﻫﻐﻪ ﺫﻣﻪ ﺩﺍﺭ ﺑﻪ
ﻣﻌﻠﻡ ګڼﻠﻭ ﺍﻭ ﺩ ﻫﻐﻪ ﺗﺎﻭﺍﻥ ﺑﻪ ﻳﻲ ﺗﺭﻯ ﺍﺧﻳﺳﺗﻪ ، ﺩ ﺩﻭﻯ ﭘﻪ ﻭﺧﺕ ﮐﺑﻧﻲ ﺩﺍﺳﻲ ﭘﻪ ﻣﻠ
ﮐﺑﻧﻲ ﺍﻣﻥ ﻭ ﭼﻪ ﺑﻳﺎﻥ ﻳﻲ ﺩ ﺭﺗﻪ ﮐﻭﻯ ﻧﻪ ﺷﻡ . ﺣﮑﻭﻣﺕ ﺯﻣﻭﻧږ ﺩ ﺭﭘﻭټ ﭘﻪ ﻭﺟﻪ ﻫﻐﻪ ﺯﻣ
ﻣﻌﻠﻡ ﺭﺍﻭﻏﻭښﺕ ﺍﻭ ﻭﺭﺗﻪ ﻳﻲ ﻭﻭﻳﻝ ﭼﻪ ﺩ ﻣﺎﻝ ﭘﻳﺩﺍ ﮐړﻩ ﺍﻭ ﮐﻪ ﺩﻯ ﭘﻳﺩﺍ ﻧﻪ ﮐړﻭ ﻧﻭ ﺗﺎ ﻭ
ﻭﺩﺭﮐﻭﻩ ! » ﻫﻐﻪ ﻣﻌﻠﻡ ﺯﻣﻭﻧږ ﺩ ﭘېښﻭﺭ ﺣﺎﺟﻲ ﺟﺎﻥ ﻣﺣﻣﺩ ﻟﻪ ﻭﺭﻍ ﺍﻭ ﻭﺭﺗﻪ ﻳﻲ ﻭ
ﺩﻭﻯ ﺗﻪ ﻭﻭﺍﻳﻪ ﭼﻪ ﻣﺎ ﻣﻌﺎﻑ ﮐړﻯ . ﺍﻭ ﭼﻪ ﺣﺎﺟﻲ ﺍﻭ ﻭﺭﺳﺭﻩ ﻫﻐﻪ ﻣﻌﻠﻡ ﺩ ﺟﺭګﻲ ﭘﻪ ﻁﺭ
ﻣﻭﻧږ ﻟﻪ ﺭﺍﻏﻠﻝ ﻧﻭ ﻣﻭﻧږ ﻣﻌﺎﻑ ﮐړ .

مونږ د حج مراسم د دینی احکامو سره مطابق په خپل خپل وخت ترسره کول چه د
معقوله تفصیلی ذکرونه تېرېږو، صرف دا يوه پيښه یادوم چه د حج په دوران کښې د سعودی
حکومت لخوا «موتمر عالم اسلام» په نامه يوه لويه جرگه جوړه شوه هغې ته د حاجيانو
نه د دنيا د هر ملک د مسلمانانو مشران را وغوښتل شو. د هندوستان نه مولانا
محمد علی، مولانا شوکت علی، مولانا ظفر علی خان او مولانا اسماعيل غزنوی او څينی نور
په دې موتمر کښې شامل وو زه هم پکښې شامل شوم. مولانا محمد علی او شوکت علی
وی دا خبره پيش کړه چه تاسو د دی مزارونو او قبرونو نه گنبد ونه جبې او قبې
لی وړانی کړې دي او اوار کړې مو دي هغوی ورته وويل دا د اسلامی شريعت
خلاف دی دوی وويل چه دا خو «آثار قديم» وو هغوی ځواب ورکړه چه آثار قديم
خو تاسو گوری چه د دې نه مسلمانانو ته فايده رسيدلی ده که نقصان؟
دوی يو بل تجويز هم وړاندی کړ هغه دا چه بايد د مکې معظمې د متولی توب د پاره
د متولی د نيا د مسلمانانو په خوښه يو مېشر مقرر شی نو هغوی ورته ووې چه فرض
چه د دنيا مسلمانانو د هندوستان يو مسلمان دې کار د پاره خوښ کړ نو آيا هغه
مکې معظمې حفاظت کولی شی؟ ځکه چه اوس دا دی مونږ او ليدل چه کله کافر پيرنگی
راغی نو د هندوستان مسلمانان هم د هغه په فوځ کښې هغه سره راغلل او زمونږ په
مقدسو مقاماتو هغوی د گولو چلولو نه انکار ونکړو، گولی يې او چلولی. د دی نتيجه
نوه چه موتمر ته د فايدې په ځای نقصان ورسيد او د هغه موتمر ختم شو.
کله چه د حج نه فارغ شو زه خو نا جوړه وم، زه او زما تبر طايف ته لاړو زما خور
نبي تا دی وه هغوی مدينې منوری ته لاړل. طايف ته چه تلو مونږ سره په لاره کښې

یو پښتون ملګری شو، د پېښبه سړی و، چه طایف ته ورسید د هغه مونږ خپل کور ته
بوتلو. د ده هلته ډېر ښکلی کور و. طایف ډېر ښکلی او اباد ځای دی، ښه آب و هوا
لري. مونږ څو ورځې هلته تېرې کړې. په دې ورځو کښې چه هلته وو به ورځ یو سړی
مونږ ته غږ وکړه چه: «د تعال تعال» یعني «د دلته راشئ». مونږ ورغلو هغه وویل
لا دا د حضور صلی الله علیه وسلم وینښته دی او د ابل په کته کښې د هغه د پښې د پل
نښه ده، دا وګورئ!!» ما ورته ووې چه مونږ خو طایف ته د دې د پاره راغلي یو چه دل
د حضور صلی الله علیه وسلم هغه عزم اراده عفو وکړو. چه هغه دلته د تبلیغ د پاره راغ
ؤ او خلکو په کاڼو ګټو وویشت، زخمي یې کړو، خو هغه په خپل عزم ټینګ ولاړ و او بیا
هغو خلکو ته دعا وکړه چه خدا یې ته دوی ته هدایت د نیکی وکړي. په طایف کښې ز
صحت ښه شو نو بیا واپس مکې ته راغلو په هغه وخت کښې موټرونه نه وو مونږ د اټک را
د اوښانو په سورلۍ کاوه. په مکه کښې می مولوی محمد اسماعیل غزنوی صاحب ولید ه
خو زما د جیلخانې ملګری و. د جېلخانې دوستان ډېر خواږه وي په خبرو خبرو کښ
ما ورته ووې چه مونږ مدینې منورې ته ځو، راته یې ووې چه راځه ما سره جدې ته لاړ
د جدې نه هم مدینې ته لاره تللې ده. ما ورته ووې زه په بله لار د مدینې ته ځم لیک
هغه مجبور کړم او ور سره جدې ته لاړو. چه جدې ته ورسیدو هلته یو لوی ام
سړی د ده اشنا ؤ هغه کره د ېره شو. په دې ورځو کښې د سعودی بادشاه جدې ته
او جدې کور ته راغی او مونږ سره یو ځای په هغه کور کښې د ېرا شو، هغه ډېر
سړی و مونږ سره به یې یو ځای ډوډۍ خوړله، یو ځای به ناست پاست وو
به مو سره مجلس کوو. ما په ده کښې یو ملک او خان هومره غرور نه لید، بلکه یو فقیر او

سمړی و. حالانکه چه دی بادشاه و، څو ورځی پس مونږ مدینی منورې ته روان
شو د سعودی باچا سکرتر مونږ ته لاری د مرکزونو په نامه یو خط راکړ چه د دوی دا رام
خیال وساتی. زمونږ ټوله قافله پنځه اوښان وو، څلور یا پنځه ښځی، دری یا څلور نارینه
و. کوم اوښ چه زما د پاره ؤ یوه کجاوه یې زما د تبر او بله یې زما وه؟ کجاوې لنډی
ی او زه پکښی تنګیدم، د شپی به اکثراً دا اوښ نه کوزیدا او د عربستان په هغو ږمو
کو مو پیاده مزل کاوه. د ې مزل ډیر خوند کاوه. په دی قافله کښی چه دا نور عرب
ونږ سره وو. دا هغه کسان وو چه ډیر زړی د راتګ په وخت کښی د شریف مکه په دور
بی د مدینی نه ترکو ته هجرت کړی ول او اوس واپس راغلی وو او مدینی ته تله. چه مونږ مدینی
و رسیدو نو په دوی کښی دیوکړه ډیره شو، زه په مسجد نبوی کښی د لسو ورځو د پاره
تکاف شوم، هغه جماعت کښی یوه ستن وه د هغی سره به ناست وم. یوه ورځ په دې
سجد کښی می حاجی محمد امین ولید، رو غبر مو وکړ، ما ترې تپوس وکړه هغه دا ته
ل چه دلته په دې مسجد نبوی کښی ما یوه کوټنی رپیدا کړې ده او اراده لرم چه دلته
و کال (چله) وباسم. ما ورته ووې چه د څه د پاره؟ وې چه د رسول الله صلی الله علیه
سلم د خوشحالئ د پاره. نو ما ورته ووې چه رسول (ص) په دی نه خوشحالیږی
رته ووی چه دا سی وکړه چه ته بیکا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زیارت کښی د
ن شریف تلاوت وکړه او دعا او بیا استخاره وکړه چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم
ی خوشحالیږی چه ته دلته هغه سره په کوټنی کښی ناست یې او که په دې خوشحاله
ی چه ته لاړ شی او د هغه پیغام خلکو ته ورسوې. چه د شپی ویده شوی دی نو
د وختی ماله راغی چه ستا خبره سمه ده سبا وطن ته ځم او خدمت به کوم او که

خیروی ته چه په خیر داغلی نو بیا به تا سره یو ځای کار کوم ، ما ور ته څه حساب هم ورکو

خو لار مونږ ځو ورځی دلته تېرې کړې بیا بیت المقدس ته روان شو ، د حجاز دیوا

بندر (پورټ) ، (رابغ) ، نه مصر ته ولاړو کله چه مونږ جهاز د سویز په بندرګاه کې د

او مونږ تری کوز شو نو زما اراده وه چه د قاهرې او اسکندریې ښارونه هم وګورو بیا

اراده زه وروغوندې یو مصری افسر ته ورنژدې شوم او د اخبره می ور ته وکړه او دا

هم ورته ووې چه مونږ ستاد اسلام ورونه یو امید دی چه ته به مونږ سره په دې کښې

امداد وکړې . د مسلمان ذهنی داور بل ومرغ هغه موسکی شو او ماته یې ووې چه

ستاسو ته وت دی ، نو زما مسلمان ورور یې او چه سبا پیرنګیان په مونږ حمله کوی بیا

مسلمانی او ورورولی چیرته لاړه شی ؟ تاسو د هندوستان خلک مسلمانی څه پېژ

ستاسو اسلام خو بیسه ده . تاسو داسی قوم یې چه د پېرنګی دیوه آنیز د پاره موټو

دنیا د پیرنګی غلامه کړه او دا مونږ هم چه د پیرنګی غلامان یو د اهم ستاسو دلاسه کېږي

اختیاد وی نو د ستاسی ناپاک او منحوس قدم به په دې خاوره بری نه ږدو ، د دې

او ر بلوزه چپ شوم . دلته مونږ لس ورځی په کورانتین (قرنطین) کښې تېرې کړې

دهغی نه پس فلسطین بیت المقدس او شام ته لاړو . په بیت المقدس کښې مونږ

د ورد ناکه حادثه را پېښه شوه ، دلته زما تبر د بیت المقدس د جماعت د پاو

نه وا پو بوته زخمی شوه او څو ورځی پس مړه شوه (انا لله وانا الیه راجعون) .

هلته دفن کړې شوه .

په فلسطین کښې یهودیانو ښکلی ښکلی نوی کلی ، ښارونه او باغونه جوړ کړ

او لګیا دي جوړوي یې لیکن مسلمانان یې لاهغه شان په غفلت کښې پراته دي

امام مهدی صاحب ته په انتظار کښې ناست دی چه مونږ به پخپله څه نه کوو هغه به راشي او هغه به د اله هر څه وکړي . دوی دومره بې علمه او بې خبره دي چه امام خو پرېږده چه پیغمبر راغلی دی او خپل قوم ورسره ملا تړلې نه ده نو پیغمبر کامیاب شوی نه دی .
په بیت المقدس کښې زما د مسلمانانو ورونو عربو سره په دې باندې ډېرې خبرې شوې وې زه چه به د بیت المقدس نه بهر ووتم کومه ځمکه چه به مې ولیده چه شاړه او ډیک دی نو چه تحقیق به مې وکړو نو معلومه به شوه چه د عرب ده او کومه ځمکه چه به اباده وه په هغې کښې به یو ورو کې غونډی بنګلې او باغ وو نو چه تپوس به مې وکړو وي دا د یهودی ده او د غه شان د کلو حال و . د یهودیانو بنګلې بنګلې آباد او پاک کلي او بنګلې ژوند وا او د عربو به د ړته څه ذکر کوم او بله دا چه سحر به ووتم یهودیان به بنځې ، نر کلیاوو کار ونه ړې کول او په بیت المقدس کښې چه به سحر هوټل له لاړم ځوک به پکښې نه وو چه غرمه به لاړم ځوک به پکښې نه وو چه ماز یګر به لاړم نو هوټل به ډک و بنګلې بنګلې میزونه به لګیدلي وو ، خلکو به بنګلې بنګلې پاکې ، صافې جامې اغوستې وې چا به چای څکله ، چا کافي ، او چا د انګورو او به او چه د عربو هوټل له به لاړم نو که سحر وم به خلک پکښې ناست وو که غرمه وه هم د خلکو نه ډک و او که ماز یګر وو هم به خلک پکښې وو غټ غټ چلمونه به پراته وو ، چیلم به هلته او ریډیو او س به یې یو ځای پروت د دوی په هوټل کښې هغه صفایي نه وه کومه چه د یهودانو په هوټل کښې وه او کلیا وو لوبې به یې کړلې زه پرې نه پوهېدم چه څه لوبې یې کولې یوه ورځ مې دی عربو ورونو ته ووې چه داتاسو په کومه دنیا کښې یې ګرځی ستر ګې خو د غړوئ زه چه تاسو په دې ملک ګرځم چه چېرته شاړه ځمکه وي او ډیک وي نو چه تپوس وکړم

چه دچاځمکه ده ؟ نووایي چه دعرب ده اوچه ښکلی آباده ځمکه او باغ او بنګله وینم
نوچه تپوس وکړم چه دادچا ده ؟ نووایي چه دا دیهودی ده - تاسو دې خپل ژوند
ته وګوری او دهغوی ژوند ته وګوری که علم مونښته نوستړګی خومونښته. نو
هغوی کښې یوکس جواب راکړو چه مونږ داشاړی ځمکې په یهود یانو باندی خرڅ
چه ابادې یې کړې او اوس اخري صدئه ده امام صاحب به راشي او دا هر ځ
به زمونږ شي . زما خیال وچه ملا صاحب کیني یوازی مونږ پښتانه امام صاحب
ته کښینولی یو لیکن عرب غربیانان یې هم ورته کښینولی دي . اوس مې کلهٔ ناکله خیال
پیدا شي چه فلسطین ته لاړ لې او دعربونه مې تپوس وکړای چه هغه ځمکې ستاس
شوی اوکه دیهود یانو شوې ؟ خو ادلسمه صدی خلاصه شوه .

یوه ورځ زه د بیت المقدس نه باهرسیل ته ووتم یو ځوان عرب را س
ملګری شو ماله لږه لږه عربی راتله هغه سره مې خبری شروع کړې ورته مې ووی
بیت المقدس خو ډېره ترقي کړې ده نوې نوې سړکونه پکښې پیرزنلیا نوجوړکړل او نو
نوی ابادی یې پکښې وکړې هغه ماته وکتل څه یې ویل لیکن چپ شو او ماله یې هی
جواب رانه کړو ماورته ووې چه ولې چپ شوی نو هغه رانه پوښتنه وکړه چه ته
یې ؟ خو ماورته ووې چه اخرستا مطلب څه دی ؟ هغه راته ووې چه هندیان د
خراب خلک دي دهغوی کار بغیر دمخبری نه نور هیڅ نشته په دې قول ملک
کښې خلک هندوستاني ته په ډېر نفرت سره ګوري دوی ته ډېره ګناه نه وه ځ
د دنیا په لوی جنګ کښې دی خلکو سره هندوستانیانو او دهندوستان فوج ځ
کړې دي ، دهغې سزادې دوی له خدای ورکړې . ددی هندوستاني فوج ا

د مسلمانانو و ماورته ووې چه زه تاته لم اذکم دومره ویلی شم چه زه مخبر نه يم هغه
راته ووی چه مونږ به سر کونه او آبادی څه کړو مونږه او زمونږ ملک ورځ په ورځ
په پرپوتو او دغربت طرف ته روان دی خکه چه ترکو به دقسطنطنیې دخزانې نه
روپۍ دلته لګوې او پیرنګیان لکه دجورو په مونږ لګیا شوی دی . زمونږ مال خوري او
ولایت ته یې لیږي او بیا یې یو سوداسو یلی وکړی چه مونږ څه ترکو سره وکړه اوس الله تعالی
مونږ ته دهغې ناشکرګذاری سزا راکوی اوس مونږ ترکو پسې دپردا مانونه کوو لیکن
وخت تېر دی الله دې مونږ ته عفو وکړي . او ددې ظالمانو د پنجې نه دې مونږ خلاص
کړي دغه حال دشام هم دی .

دشام ملک په دوو حصو تقسیم دی ، دیوې حصې چه (اوس ورته لبنان وايي)
دار الخلافت بیروت دی ، دا دسمند ر په غاړه یو مزیدار ښار دی دلته دعلومو
وفنونو دزده کوو د پاره امریکي یو لوی دار العلوم قایم کړی دی دشام په دې حصه
کښې داوبو کمی دی غرونه هم پکښې ډېر دي لیکن خلک پکښې دومره تکړه دي چه غرا و
سمه یې ټوله اباده کړی ده او اکثر غرونه یې دانګورو باغونه کړي دي ، کلی او باغونه ډېر
اعلی طریقه باندې جوړ دي خلک یې ډېر ښه او اسوده دي په کومه علاقه کښې چه د
مسلمانانو ابادی زیاته ده ، دهغې دار الخلافه دمشق ښهر دی . دمشق هم یو ډېر مزیدار
ښار دی ، کور په کور او کوڅه په کوڅه او به بهیږی او به پکښې ډېرې زیاتې دي څمکې یې
ډېرې ښې دی لیکن خلک یې هغه شان محنت کښ او آباد کار نه دی او نه یې خلک
هغه شان ترقی یافته دي او نه یې هغه شان پاخه کلي دی . په دې ملک کښې دفرانس
حکومت دی ، دلته په دې خلکو کښې دا دصفت یوه خبره ولیده چه په عیسایانو او

په مسلمانانو کښې مینه او محبت دی او په دوی کښې هغه بې اتفاقي او نفرت نشته لکه چه ننګه د فلسطین په مسلمانانو او یهودیانو کښې مالیدلې دی. زما په خیال په فرانسیانو کښې لکه د پیرنګیانو په شان دا بد عادت نشته دی چه د خپل مطلب دپاره په خپلو رعایا وو کښې نفاق او نفرت پیدا کوی. د پیرنګیانو پالیسي خو د (Devide and rule) خلک بې اتفاقه کړي او بیا پری په مزه حکومت کوی.

د بیروت په یو هوټل کښې می د یو مسلمان عرب سره خبری شوې هغه دا ته وې چه زه دلته د یوی کمیټۍ دپاره راغلې یم چه هغه کمیټۍ د فرانس حکومت د دې دپاره مقرر کړې ده چه په دې خبره غور وکړي چه تش تعلیم د رعایا دپاره مفید نه دی. دی سره صنعت او حرفت هم په کار دی. زه حیران شوم چه د فرانس په دې ملک لس کاله لا د حکومت شوی نه دی او بیا د دوی د صنعت او حرفت ورسره فکر او خیال دی او په هندوستان د انګریزانو د پاچایي تقریباً دوه سوه کاله وشو غریب رعایا هره ورځ د صنعت او حرفت چغې وهي لیکن څوک پرې غوږ نه نیسي ... نه دي. د شام نه زه عراق ته لاړم، په موصل کښې مو دوه ورځې تیرې کړې. دا یو ډیر وړوکی مزیدار ښار دی او سینډ پکښې ښه جوړ لی دی، خلکو کښې شراب خوری او عیاشي زیاته شوې وه که څه هم د پیرنګیانو حکومت په دې خلکو ډیر موده پاتې شو نو زما په خیال دا خلک به بالکل تباه او برباد شي. د موصل نه بغداد ته لاړلم بغداد کښې می کافي ورځې تیرې کړې. په دې ښار کښې هم بې شماره ښار وې، د ښار او اکثر دکانونه د هندوستانیانو دي چه د پیرنګیانو قبضه کیدو سره هلته تللې دي. د دې ښار اخلاقي حالت ښه نه وو او پیرنګیانو ډیر ارمینین هم دا

آباد کړې دي. بغداد يو ډېر مزيدار ښار دی او د ښار په منځ کښې يو لوی سيند
بهېدلی دی. د بغداد نه کربلا ته او نجف ته لاړم، دا دواړه ډېر متبرک ځايونه دي.
او دلېرې لېرې ملکونو نه مسلمانان خصوصاً شيعه کان د حضرت علی (رض) او د امامانو
زيارتونو له ورځي، دا زيارتونه په يوه لويه پيمانه باندې ډېر مزيدار جوړ دي په ليدو
يې د سړي زړه خوشحاله شي. شيعه کان غريبانان ترا و سه پورې هغه شان هلته ځانونه
ټکوی او جنګل سره د غمې وهي او په زاد زاد ژاړي. د دې په ليد و سړي ته هغه پخوانی
حالت را په مخکښې شي. د نجف نه بيا زه کوفې ته لاړم. کوفه نجف ته نږدې ده کوفه
يو وړوکی غونډی ښار دی او د سيند په غاړه آباد دی د نه ترقی وجه يې خلک
دا بيانوي چه د دې ښار د هغه وخت او سېدونکو حضرت امام حسين صاحب
او د هغه اولاد سره غداری کړې وه نو الله تعالی د دې ښار او سيدونکو ته دا
سزا ور کړه. که چېرې د دې خلکو حضرت امام حسين سره وفاداری کړې وای
او هغوی کامیابه شوی وای نو د دې ښار به دا حالت نه و او دا ښار به د بغداد
په ځای د عراق دارالخلافه وای په دې ملک کښې پيرنګيانو ډېر نهرونه جاری
کړې دي او جرګومو ځمکو ته د نهرونو په ذريعه اوبه ښې رسېدلی نو هلته يې په
سيند باندې ماشينونه لګولي دي د هغې په ذريعه اوبو خور کيږي. يو ځوان عرب
ما سره په ريل کښې سفر کوو هغه ته مې ووې چه د پيرنګيانو په راتلو خو ستاسو ملک
ښه اباد شو او تاسو ته ډېرې فايدې ور سېدې هغه زما دی خبرې پورې وخندل
وولی وې چه بې شکه دا د يو قوم د غافلولو د پاره ډېر ښه ترتيب دی دا نه چه
ترقی وايي، دا د يو قوم او ملک د پاره اصلي ترقی نه ده او نه دا پيرنګيانو زمونږ.

د ترقی د پاره کړې دی، د دې نه مطلب دهغوی زمونږه او ده کول او غافل
کول دی چه مونږ په دی مشغوله شو او هغوی په مزه زمونږ په ملک حکومت
کوي داخو په حقیقت کښې دغلامی یو جال دی چه زمونږ دغلامی د پاره هغوی
خور کړی دی په عراق کښې یهودیان او عیسایان خو نشته خو هلته پیرنګیانو
شیعه او سنی په جنګ کړې دی. چه په کومو ښارونو کښې سنیان زیات دی
او شیعه ګان پکښې لږ دی نو هلته دوی د شیعه ګانو ملګري دي او چه په کومو
ښارونو کښې شیعه ګان زیات دي او سنیان کم دی نو هلته د سنیانو ملګري
دی لیکن د دوی دا پالیسی کامیابه کیدی نه شی ولی چه په عراق کښې د شیعه
ګانو ابادی ډیره کمه ده.

بیا زه بصرې ته راغلم او دڅو ورځو قیام نه پس په جهاز کښې سور شوم
په کراچۍ کښې کوز شوم.

په عربو کښې چه څه وخت د پیرنګیانو حکومت قایم شو نو یا دی نو د نورو څیزو
نه علاوه دوه څیزونو له دوی ډیره ترقی ور کړې ده یو شراب خوری او بله دم بازی
په هر ښهر کښې د شرابو دکانونه دي او د دمو بازارونه دي باجی دی، عیشونو
او سرودونه دي او دخلکو اخلاقي حالت يې ډیر خراب کړې دی، یوه ورځې د بصرې
په بازار کښې ګرځیدم چه څوک ته ورسیدم نو په چوک کښې می پهانسی لګه ولیده
د تحقیق نه راته معلومه شوه چه په دې پیرنګیانو ډیر قوم پرست عرب پهانسی
کړې دی او ډیر ظلمونه یې عربو سره کړې دي، د هندوستان په اخبارونو کښې
به مود شام د ظلمونو قصې لوستې چه فرانس په عربو باندی کړې وو، لیکن په عراق

کښې چه پېرنګیانو په عربو کومې لوبې کړې وې ، د دې متعلق مونږ چېرې د هندوستان
په اخباراتو کښې څه لیدلي نه و. معلومېږي دا چه د هندوستان ځینې اخبارات
څه خپل ضمیر نه لري او چه پېرنګیان ورته څه وایي هم هغه لیکي. دلته هم د هندوستانیانو
نه ډېر نفرت دی ولې چه دوی د اسلامي اخوت په جامه کښې پېرنګیانو ته ډېرې مخبرۍ
کړې دي او ډېر عرب یې په پهانسي کړي دي. په کار دی چه د داسې قوم نه نفرت
وکړي او که لږ قدري د عراق اختیار خپل شو د هغوی اول کار به دا وي چه دلخلک
خپل ملک نه وباسي.

څه وخت چه کراچۍ ته ورسېدم نو په بندر کښې زمونږ د نوښار د یو پښتون تانه دار
هغه چه څه وخت په جهاز کښې ولیدم نو را ترغاړه وتو او په زوره یې خپل ځای ته بوتلم.
مونږ د طورو نواب زاده امین الله خان هم په کراچۍ کښې و دی په ریل کښې د ډېر لوی
سړو چه هغه خبر شو هغه راغی نو بیا هغه زه خپل ځای ته بوتلم ، یو دوه ورځې مې ډېرې
مینه او محبت سره هغه سره تېرې کړې بیا وطن ته را روان شوم او کلي ته په خیریت
را ورسېدم.

## پښتون (اخبار-مجله):

په جېلخانو کښې ما د خپل قوم په حالاتو باندې په ښه شان سره غور کړې و زه
ې نتیجه ورسېدم چه په دنیا کښې هیڅ قوم بغیر د خپلې ژبې نه ترقي کولی نه شي
هغوی کښې علوم او فنون پیدا کېدای نه شي. ما دا اراده کړې وه چه ضرور به یوه
له په پښتو کښې د خپل قوم د پوهولو ، د دنیا د حالاتو نه خبرولو او د خپلې ژبې طرف
مایل کولو (مخ کولو) د پاره جاري کوم او د دې کوشش به هم کوم چه انجمن بخپله

ژبه کښې د بچو د پاره د ابتدائي تعليم انتظام وکړي. حقيقت دا دی چه د غه دخت
په پښتو ژبه کښې هيڅ نه و او نه پښتو د چا يا ده وه او پښتون قوم د ومره نا پوهه
وچه د اخپله ژبه ورته سپکه ښکار يده او چه کوم قوم ته خپله ژبه سپکه شي نو هغه سپک
شي، او چه خپله ژبه تری ورکه شي نو ورک شي. ذراتلو سره مادا د داره خبری انجمن
پيش کړي، انجمن دی خبرو سره خو اتفاق وکړو، ليکن د مالي مشکلاتو په وجه پر
علی قدم فوراً اخيستلی نه شو. د رسالې ذمه واری ما خپل سر واخيستله او عبدالا
خان او عبدالله شاه ته دا خبره حواله شوه چه د رسالی د جاری کولو د پاره اجازت نا
دې د حکومت نه واخلی ليکن په مينځ کښې دری کاله تېر شوا و هغوی د اجازت نامې
يو درخواست قدری هم ونه کړې شو. زه پوه شوم چه بغير زما نه دا کار نه شی کېدی
د ۱۹۲۷ع په اخر کښې مادې کار ته پخپله ملا وتړله او دا کار می پخپل لاس کښې واخيسته
د اجازت نامې د پاره می حکومت ته درخواست ورکړو، اجازت نامې حاصله کړې او
۱۹۲۸ع کښې مې د پښتون په نوم يوه رساله د پښتو په ژبه کښې د اتمانزو نه جاری کړه
خو په دې دی چه پښتون دومره لوی قوم او خدای ورله د نعمتونو او دولتونو د ملک
دی، نه د ده پخپله ژبه کښې يوه رساله او نه يو اخبار شته دا د پښتو ژبې او لنۍ ره
ده چه د پښتنو په ملک کښې جاری شوه. پښتون قوم د بهر خراج دی ليکن دی قسم
خيزونو باندی پيسې نه لگوی او په دی قسم خيزونو خرڅ کولو سره نا اشنا او نابلد و
د پری پيسې ما د خپل جيب نه پری خرڅ کړې دی رسالی د پښتنو په ښځو او نورو کښې
نوی ژوندگی پيدا کړه او دا رساله په پښتنو کښې د پره هر دلعزيزه شوه دا خپل ملک خو پرېږ
پښتانه په يورپ، امريکه او استريليا کښې د دی نه خبر شو نو هغوی به غوښته او ما

هم ورسره کوو دپښتنولي پښتوطرف ته شوق پيدا کړ او په افغانستان کښې هم سنه
وستل کيده . عبدالهادی خان داوی ماته قصه کوله چه پښتون اخبار به کابل ته راغی
په قوميت (مليت) چه به کوم مضمونونه ليکل شوي وو هغه به يې مونږ لوستل او دافغانستان
په خلکو کښې هم پښتو طرف ته رغبت زيات شو او په امان الله خان خولې دوموه اثر وشو
په هغه اعلان وکړو چه خلکوله په کاردی چه پښتو ژبه زده کړي ، دسې کاله پس به په
ې ملک کښې پښتو تعليمي او سرکاري ژبه وي او عبدالهادی خان داراته هم ووې چه
ونږ هم ديوی رسالې بنا وکړه او دهغې نوم موهم پښتون کېښوده نو امان الله خان راته
وې چه دپښتنو به لبس دغه يو پښتون وی نو ما بيا هغې خپلې رسالې له « دپښتون ږغ »
م کېښود . ليکن افسوس چه پيرنګيانو داخبره برداشت نه کړه شوه او هغه ووې چه
دې رسالې يو څو نمبره وتي وو چه افغانستان کښې بغاوت وشو ، امان الله خان لاړو
دهغه په ځای « بچه سقه » دغه وخت دپاره دافغانستان په تخت کېښناست .

زمونږ انجمن دپښتو دترقی دپاره او دشاعرانو دخيالاتو بدلولو دپاره دمشاعرو
ظام وکړو او دښو ښو نظمونو او بيتونو له پاره يې انعامونه مقرر کړل او په کال کښې يو ځل
د مدرسې کاليزه جلسه به کېده ورسره دمشاعرې دپاره هم انتظام کېدو . ددې به
به په پښتنو شاعرانو کښې يو عظيم الشان انقلاب راغی او دخال وخط په ځای دانفاق
ورې ، او قومي ترقی دور شروع شو ، په قوم او ملک کښې يې دانقلاب دپاره يو نوی جذبه
اکړه او په ښځو ، نرو کښې يې داسې جوش پيدا کړو چه دجلسې به ورځ به دجلسې په ځای
ې ځای مونډل ګران شو او دملک دهرې علاقې او تپې خلک که خان وکه غريب ودانجمن
جلسه کښې يې شرکت خپل فرض ګڼلو ، دښځو دپاره خاص دپردې انتظام وا وپه سوونو

سنځي به هم په دې جلسه کښې شریکیدې لیکن افسوس چه د انجمن ذمه دارو خلکو
خپله اصلاح ونه کړه شوه او زمونږ د کور اختلافات دومره زیات شوي وو چه زمونږ
نه د بهر کار د پاتي نشو که څېرې مونږ د انجمن هغه تبلیغ او اشاعت او په ملک کښې
د دورو هغه کار جاري ساتلې واې نو مونږ به د دې نه هم زیاته ترقي کړې وه او زمونږ
قوم او زمونږ ملک ته به زیاته فایده رسیدلې وه لیکن دا زمونږ او زمونږ د قوم بد
قسمتي وه چه انجمن ته د خپلو جګړو نه دومره فرصت نه و چه خپل قوم او ملک کښې کرخیدلې
واې او بې خبره او اوده پښتون ورورولې خبر کړې او بیدار کړې واې. اخر دا چه خادم
صاحب، عباس خان او عبدالاکبر خان خپلو کښې او جنګول. نو دې انجمن ته نور هم
زیات نقصان ورسولو بیا خادم صاحب زما او د عباس خان د جنګولو کوششونه
شروع کړل لیکن تر ډېرې مودې پورې کامیاب نه شو په یوه کړې کښې زه کوه مرۍ
ته لاړم خادم صاحب ته میدان خالي شو او د عباس خان او زمونږ بعضې نور د
انجمن ورونو په د ماغو کښې یې دا خیال پیدا کړو چه د لویې وني د لاندې وړه
ونه وده کولې نه شي او د هر قسم قرباني او خدمت چه تاسو کوئ تو نوم یې د
هغه کیږي. څه وخت چه زه د مرۍ نه واپس راغلم او د انجمن د بعضې ذمه دارو
خلکو رویې ته مې کتل. زه ډېر پریشانه شوم، هر ځاې زما بر خلاف پراپیګنډه کیده
ما حاجي عبدالغفار خان سره مشوره وکړه، دا خلک مې د هغه په ذریعه راجمع
کړل او په ډېر منت سره مې دوې ته ووې چه دا کار ښه نه دې او د دې نتیجه
به زمونږ د انجمن برباد دې وي، او خداې د پاره په دې خپل قوم رحم وکړئ
دې خو ډېر برباد شوي دې او په کار خو نه دې چه مونږ یې نور هم برباد کړو او

یو بل باندی دده وغوالزامونه مه لګوئ او دیو بل غیبت مه کوئ او هرڅه چه وایئ خو دهغه سړي په مخکښي وایئ چه دچانه ستاسو شکایت وي یامو په هغه دڅه قسم شک وي او یاستاسو په خیال هغه څه غلط کار کړی وی په ځای ددی چه تاسو پس شاخلکو پسی خبری شروع کړی دی نو دا دفایدی کارنه دنقصان دی نو عبدالاکبر خان او میاعبدالله شاه به وخندل او خادم صاحب ته به مخاطب شوا وورته ویل به یي چه خادم صاحب مونږ به پسی ښادچا نوم اخیستی شوکه نه ؟ خیر دا خبری دوی په خندا په توقو کښي تیری کړی. دشپی چه څه وخت دحاجی عبدالغفار خان په ځای کښي ډ ډ ې وخوری شوه نو زمونږ بعضي ممبران دعباس خان سره دخملاستو دپاره تلل نو ماهم ځان ددوی سره ملګری کړ هلته هم ما دابحث شروع کړو چه تاسو سره دپوهي ځانونه ولی داسی نادانه کړی دی ؟ نو عباس خان راته صاف جواب راکړو چه یو ه ونه چه ډیره لویه او کوره شی نو دهغی دلاندی نوری ونی وده کولی نه شی کومی پوری چه دهغی ونی شاخ تراشی ونه شی نو مونږ داغوارو چه ستا لږه شاخ تراشی وشی ماورته په خندا خندا کښي ووی چه هسی نه چه هغه توقه دی پاندی وشی چه دیوی ونی خوځه نه څه سوری پیدا شوی دی او دپیښتنو نځي دهغی سوری دلاندی ناست دی او که دهغی ونی شاخ تراشی وکړی او هغه بله ونه کښي دو مره طاقت نه وی چه هغه ستاسو دبچو دپاسه سوری شی نو نتیجه به یي داوي چه ستاسو بچي به په نوردلمر شی ددې دپاسه ما بیا هم ډیل کوشش جاری وساته چه اخر به ددې اصلاح وشی لیکن اصلاح ونه شوه. اخر دعبدالاکبر خان دکلي په جلسه کښي عباس خان یي ماسره و جنګولو. چه زه کلی ته واپس راغلم نو زه په دی نتیجه ورسیدلم چه دموجوده جماعت

اصلاح مشکله ده په دې وجه ما دا فیصله وکړه چه دانجمن د «دانتظامیه» نه استعفا وکړم هم په استعفا کښې مې دا ولیکل چه ما ځکه اول چنده ورکوله په هغې کښې به کمی نه راولم بلکه د هغه نه به زیاته درکوم او زه به دانجمن د نورو ممبرانو په شان یو عام ممبر یم او دانجمن د هر قسم خدمت دپاره به تیار یم لیکن د نن نه پس به زه دانجمن په انتظامیه جماعت کښې نه یم او نه به دانجمن په انتظامیه جلسو کښې شاملیږم. حکومت نه چه څومره کوششونه کیدې شو هغه لګیا و زمونږ دانجمن د بربادلو دپاره یې کول لیکن دې دومره زور ور حکومت هیڅ قسم نقصان زمونږ انجمن ته ورسولی نه شو بلکه زمونږ انجمن ورځ په ورځ مخ په ترقی ولیکن زمونږ د کور په بې اتفاقۍ زمونږ دلاسه چه څومره نقصان زمونږ انجمن ته ورسیده هغه هومره نقصان ورته پیرنګیانو ورسولی نه شو انجمن هسې په نوم پاتې شو او ځای په ځای شاخونه یې په بند بند شو او دانجمن سالانه جلسې هم پاتې شوې، زما د استعفا نه پس عباس خان هم څه د پرې ورځې په انجمن کښې پاتې نه شو، هغه هم دانجمن نه مستعفی شو او خپل مالی امداد یې پرې هم بند کړو او د خپل ورور فیض محمد خان امداد یې په زور په هغه بند کړو حالانکه چه فیض محمد خان په دې ډیر زیات ناراضه و او څو ځله یې ما ته خپله ناراضی ښودلې وه لیکن د مشر ورور مخې له ورتلی نه شو. عباس خان دانجمن او زما برخلاف پراپیګنډه شروع کړه لیکن په هغې کښې کامیاب نه شو.

چه څه وخت دانجمن حالت په ابتری شو نو خادم صاحب له هله هوش ورغی او بیا ماسره تګ ودو او تله راتله شروع کړه هره ورځ به یې راته څه نوی قومی راګ غږو ولیکن د هغه راګونو په ما اثر کولی نه شو، ولې چه د ټوله تباهی د هغه د لاسه په انجمن راغلې وه. چه سړی خبرې

یوشان کوی اعمل یی بل شان وي نو د هغه خبری په خلکو بنه اثر نه کوي اخر چه به کله
ناکله ده زه ډېر تنګ کړم نو سپینه خبره می ورته وکړه چه خادم صاحب داقوله تباهي
په انجمن تادراوستی ده او ددی قولی تباهي به خدای او قوم ته جواب ده او ذمه وار
یی. یوه ورځ یی راته وویل چه انجمن ښه او دانجمن په شان ځان کښی طاقت پیدا کړه او
داقولی کوټی ځان پسی راکاږه ماورته وې چه خادم صاحب انجمن هغه کوټی راښکلی
شی چه کومو کوټو ته بریکونه لګیدلی نه وی او چه په کومو کوټو ته بریکونه لګیدلی وي یا لګی نو
بیا ممکنه نه ده چه انجمن هغه کوټی راکاږي کله ناکله به یی راته په علاقه کښی د ګرځیدو
قصه رامخکښی کړه لیکن زما ورته هم هغه یو جواب وچه تاسره دوري کولی نه شم او که
چیری انجمن ماله حکم راکړي نو زه هر وخت حکم منلو ته تیار یم. هغه د پښتو خبره
چه خادم صاحب ته می ده کړی بنه ، راښکله نو ایله هغه څه ناڅه پخپلی غلطی پوه شو او
محسوسه یی کړه.

سره امان الله خان د افغانستان نوجوان بادشاه [illegible]
[illegible]

## امان الله خان:

څه وخت چه افغانستان کښی شورش شروع شو دا انقلاب نه و، شورش و [illegible]
امان الله خان قندهار ته لاړو، په کابل بچه سقا قبضه وکړه، انګریزی اخبارا تو د افغانستان
بر خلاف قصی، طعنی او خوشحالی شروع کړې! نو زه پوه شوم چه پېرنګیان چه په افغانستان
کښی د پښتنو ترقی ته کتی نه شی نو مونږ به تری دلته په سرحد کښی څه ترقی وکړای شو!
او فوراً می دا اراده وکړه چه په دی راز پښتانه پوهول په کار دی او دوره می شروع کړه
کلی په کلی، ښار په ښار او علاقه په علاقه وګرزیدم، جلسی می وکړې. د خدای په فضل تول
پښتون یکدم د خوبه رابیدار شو پوه شو او د خپل قوم تباهي او بربادی یی محسوسه

کړه او د افغانستان د خدمت د پاره یې ملا وتړله. په بعضی علاقو کښی ملایانو چه څه
نه څه مخالفت شروع کړو لیکن چه د قوم په جذبه پوه شو نو مخالفت یې پرېښود. که بعضی
ملایان د خپلو ذاتی فایدو په وجه قلاړ نه شو نو قوم په زور او بی غرتی د هغوی خولی بندی
کړې، مونږ سره په دی معامله کښی د قوم شاعرانو هم ډیر زیات امداد او اخلاص
کړې او د قاموس یوه نوی جذبه یې په قوم کښی پیدا کړې وه او په دی معامله کښی
تور سم خان د دوپه زمونږ سره ډیر مدد کړې و. د ده به اشعار جوړول او مونږ به
په پښتون اخبار کښی شایع کول چه د هغی نه یو بیت دا دی:

«ماوي داسړی زمونږ قوم کښی خلل کړی     اوس دې ولید چه ډیری خاوند لغل کړی»

دا بیت دومره مشهور شو چه ډیری والا به چه خلکو لیدل و چغه به یې کړه، ډیری
والا غل، او په دې ورځو کښی د قصه خوانی په بازار کښی د ډیری خاوند کړه جیل نه شو.
او خانمیر هلالی خوز ماسره په ټولو دورو کښی شریک د او داسی نظمونه یې جوړ کړي وو او د
افغانستان یې پکښی داسی خاکه راښکلې وه چه د هغی په اوریدو و تقریباً هر پښتون پوه
شو او ماته هم په تقریر کښی د هغوی د پوهولو ضرورت پاتی نه شو او په دی کښی زمونږ
د مدرسی هلکانو ډیره حصه اخیستی وه، زمونږ انجمن هم هر قسم مالی او جانی
خدمت ته تیار شو، د افغانستان د پښتنو بربادی او غم د سرحد پښتنو خپل غم
او خپله بربادی گڼله ځکه چه مونږ یو وروڼه او یو قوم یو. او د سرحد په پښتنو
کښی د افغانستان د وروڼو د امداد او همدردی یوه داسی جذبه پیدا شوه
چه زه د هغی بیان کولی نه شم که امیر و او که غریب و، که تعلیمیافته و او که بی علمه
و ښځې وې او که نر وو د افغانستان په مصیبت ډیر خوړو او د امان الله خان د وبا

حکومت قایمولو دپاره هرخدمت ته تیار وو او خلکو به دعاگانی کولی چه ای الله
ته زمونږ غمخور باد شاه امان الله خان ته کامیابی ورکړې. په پښتنو کښی ډېر
باد شاهان تیر شوی دی لیکن د پښتنو ښځو، نرو چه څومره مینه او محبت د
امان الله خان سره ؤ هغه بل باد شاه سره نه و. امان الله خان به وی چه
زه د پښتنو انقلابی باد شاه یم او دهغه داخبره بالکل رښتیا وه چه هغه به
پښتنو کښی یو عجیبه انقلاب پیدا کړی او زه چه نن پښتنو ته گورم نو حیرانېږم
چه په پښتنو کښی دا دومره زر دا تبدیلی د قوموله او ورورولی احساس پیدا
شو او سیاسی شعور پکښی راغی. انقلاب یو سیلاب وی چه داشی نو او ده خلک
یو سی او ولیبنو نری فایدی اوچتی کړې. دافغانستان انقلاب کښی د افغانستان
ښتانه لاهو شو مونږ کوز و پښتنو تری فایدی اوچتی کړې، ولی چه مونږ ه ویښ
و بیدار وو د کوز و پښتنو زړه چیر ته په تش دعاگانو او جلسو باندی قرار نه هغوی
افغانستان بردی غم او مصیبت کښی عملی شرکت غوښتو او ددی خبری
خواهش پی لرلو چه افغانستان ته لاړ شو او خپلو ورونو سره په دی غم کښی شریک
شو او د خپلو زخمیانو ورونو دارو درمل هم وکړې او دهغوی پس ماندگانو سره
مداد وکړو چه څوک مړه دي او بچی او ښځی یې پاتی شوی دي ددی د پاره مونږه کمیټه
جوړه کړه چه دهغی نوم «د افغان هلال احمر» و او ددې کمیټی کار د افغانستان
پښتنو طبی او مالی خدمت ؤ کلی په کلی، علاقه په علاقه خلکو ددی کمیټی د پاره د
ند ی جمع کولو انتظام وکړو او په یو لږ وخت کښی یو طبی وفد تیار شو چه هغه زماد
شرور ورور داکتر خانصاحب په سرپرستی کښی تللو ته تیار شو. د افغانستان په امداد

کبنی یو پښتون هم څه کمی کړی نه دی لیکن د بنو خلک د ډېره اسماعیل خان کونډ
خاندان د سودم خانان د بائیزو خانان، قاضی عطاء الله خان، علی اصغر خان
علی گل خان او میا احمد شاه صاحب د ډېر تعریف وړ دي. لیکن پیرنګیا نو داخبره
خوښوله، دهغوی په زړه دا چېرته ځائیدی شوه چه د افغانستان د امداد د پاره
دی د سرحد پښتانه لاړ شي ولې چه په دی طریقه خو زمونږ ورور ولی او قومولي
قائمیده او هغوی چېرته دا غوښتل.

مونږ له لي اجازه رانه کړه. ما خو ډېر دا کوشش وکړ چه د دوی د اجازی
بغیر مونږ له افغانستان ته تلل په کار دی مونږ ته د پیرنګیانو د اجازی او د پاسپورټ
څه ضرورت نشته، ولی زما دا خبره کمیتی ونه منله او ما دا هم کمیتی ته وویل چه څو
امان الله خان په افغانستان کښی وی مونږ له انګریزانه د تلو اجازت افغانستان
ته نه راکوي، خو کمیتی به وېل چه مونږ خو که بغیر د انګریزانو د اجازت نه لاړ شو نو بیا
به په مونږه دارو او درمل بند کړي. پیرنګیانو خو اول دا اعتراض او چت کړ چه
تاسو خو د امان الله خان امداد د پاره ځئ، لیکن که هغه هم ستاسو د امداد خواهش
وکړي. که چېری تاسو د هغه اجازت نامه راوړه بیا مونږ تاسوله د تلو اجازه درکوو
زه او میاں جعفر شاه د دی کار د پاره مقرر شو چه امان الله خان نه لاړ شوا و اجازت نامه
ترې راوړو ولی ما کمیتی ته وویل چه مونږ خو د قوم او خپلو وروڼو د امداد د پاره
ځو، په دی کښی د امان الله خان د اجازی څه ضرورت دی او مونږ خو د پښتنو د امداد
د پاره تلو.

مونږ اول د پېښور د وکیل تجارت له لاړو چه هغه زمونږ د پاره اجازه راوغواړي

لیکن چه څو ورځې تیرې شوی او هغه اجازه را ونه رسیده نو مونږ کند هار ته د تلو اراده
د کړه چه د امان الله خان نه اجازتنامه را وړو. په شاهی باغ کښې د پښتنو یوه عظیم الشانه
جلسه وشوه، ما او جعفرشاه د خپلو تلو نه خبر کړل لیکن دا مې ورته هم ووې چه دا تولی
د پیرنګیانو بانی دی هغوی پخپل وس زمونږ وفد له د تلو اجازت نه راکوی او دا به
تاسو ته د پېر ز معلومه شی، مونږ شپې له نوښار ته لاړو، شپه مو هلته تېره کړه
د شپې یوه لویه جلسه وشوه او سباله مونږ د نوښار د سټیشن نه ریل کښې سواره شو
د راولپنډی سټیشن ته ورسېدو، مولانا اسحاق صاحب هزاروی او د ښار
د ډېر مسلمانان زمونږ د لیدو د پاره سټیشن ته راغلي وو او څه وخت چه زمونږ ګاډی
لاهور ته راورسېدو نو مولانا ظفر علیخان او د مسلمانانو او هندوانو ډېر لیډران
زمونږ لیدو له راغلی وو، مونږ یې د ګاډی نه راکوز کړو او د لاهور ښار ته یې بوتلو او یو لوی
جلوس یې او بکلو حالانکه زه د دی نه مخالف وم. په سباله په لاهور کښې د هندوانو
او مسلمانانو یوه لویه جلسه وشوه چه په هغې کښې د حکومت د ملامتیا او مونږ سره د
امداد او همدردی تقریرونه وشو او قرار دادونه پاس شو. بله ورځ مونږ د کراچي
په میل کښې د لاهور نه کوټې ته روان شو چه سکهر ته ورسېدو، د سنده حضرت
مولانا او بعضې د سندھ مسلمانان زمونږ لید لوله راغلي وو، هغوی سره مو ډېرې خبرې
وشوې. دلته زمونږ ګاډی بدل شو او مونږ کوټې ته روان شو. سحر وختی زمونږ
ګاډی سیبوی ته ورسېدو، زمونږ ګاډی ولاړ دی او مونږ په دې فکر کښې یو چه چای
به څنګه وڅکو چه په دی کښې زمونږ د بی تکټان صاحبزاده خورشید چه د بلوچستان
پولیټیکل ایجنټ او بل ورسره د پیبو یو خان چه پولیس کپتان وو را ننوتل زما په زړه کښې

څه شک پیدا شو کنی دوی مونږ پسې راغلي دي، هغوی مونږ سره کپ شپ شروع کړو او بیا یې مونږ ته ووې چه راځئ دلته مونږ سره په ارام چای وڅکئ نو بیا به ګاډی کښې کښېنئ کوټې ته به لاړ شئ مونږ اصرار وکړو او ورته مو ووېل چه ستاسو مهربانی ده ګاډی به رانه لاړ شي هغوی چه دلته ګاډی د یو ساعت ولاړ دی نو مونږ هغوی سره روان شو، د کپتان خورشید بنګلې ته لاړو چای مو وڅکله، مونږ ته دا ی کوله چه ګاډی رانه لاړ نه شي مونږ ته معلومه نه وه چه حکومت مونږ نه ګښېني تلو ته نه پرېږدي، ګاډی لاړ او مونږ پاتې شو، زمونږ او د دوی په مینځ کښې ډېرې خبرې وشوې، د ډوډۍ وخت راغی، ډوډۍ مو وخوړه. حکومت صاحبزاده صاحب او د پېبو خان د دی دپاره راپسې لېږلي وو چه مونږ په دې رضا کړي چه په خوښه سره واپس پېښور ته لاړ شو د هغوی او زمونږ په مینځ کښې ډېرې خبرې وشوې ولې مونږ په واپس تلو رضا نه شو او چه مونږ رضا نه شو نو ما زیګر چه کوم ګاډی راغی په ذور یې په هغه ګاډی کښې کښېنولو. پولیس ته یې په حواله کړو چه مونږ د بلوچستان د علاقې نه بهر وباسي او چه جیکب اباد ته راورسېدو نو هلته پولیس مونږ په سټیشن د ګاډی نه کوز کړو هغوی رانه لاړل او مونږ پاتې شو مونږ جیکب اباد ته لاړو او یو وړوکی غونډی ځای مو په کرایه واخیستو او پېښور ته مو اطلاع ورکړه چه مونږ حکومت کوټې ته پرې نه ښودو او د سیوۍ د سټیشن نه یې راواپس کړو او مونږ کنډهار ته نه پرېږدي او مونږ اراده کړې ده چه د حکومت دا ناجایزه حکم ونه منو او سبا به یا د کنډهار په طرف روانېږو. په سبا له مونږ د بلوچستان د ژدنت لېوتار ورکړو چه مونږ ستاسو د دې قسم ناجایز حکم منلو ته تیار نه یو او مونږ تاخبر وو چه سبا له به بیا مونږ

کویټی ته رسوانیږو. دشپې په ګاډی کښې مونږ بیا روان شو او چه سحر بیا زمونږ
ګاډی دسیبی سټیشن ته ورسیدو نو څه ګورو چه مسلح سپاهیان سره دیو پیرنګی
ولاړ دی ګاډی چه ودریدو هغه پیرنګی زمونږ ډبې له راغی او مونږ یې ډبې نه کوز
کړو داخل صحبزاده صاحب او دپیوخان د دوی سره نه وو زمونږ خو دا خیال و چه
جیلخانی ته مو بیا یې لیکن هغه پیرنګی مونږ په ویټینګ روم کښې کښېنولو او په ویټینګ روم
یې یوه ډبله پیره و درولو دا پریوشریف پیرنګی و ما ته یې په خبرو خبرو کښې ووې چه زه
ددې حکومت په پالیسی نه پوهیږم یو طرف ته خو وائي چه مونږ غیر جانبدار یو او تاسو ته
وائي چه لاړ شئ مونږ له د امان الله خان نه اجازتنامه راوړې نو تاسو به پرېږدو او بل
طرف ته ماله حکم راکوي چه پام کوه چه دا سړی درنه مخکښې لاړ نه شي او بیا تاسو دا سې
کار نه منع کوي وستاسو طبي وفد نه پرېږدي چه په دې کښې دخدای دمخلوق دخیر نه
بل هیڅ شی نشته. ما ذکر چه بیا هغه ریل ګاډی واپس راغی نو مونږ یې پکښې کښېنولو او
دجیکب آباد پسټیشن یې بیا کوز کړو مونږ ته معلومه شوله چه مونږ حکومت په هیڅ
قسم کندهار ته تلو ته نه پرېږدي نو هسې تلل راتلل مو مناسب ونه ګڼل او اراده مو وکړه چه
دهلی ته به لاړ شو او دافغانستان کونسل جنرل سره به ووینو که هغه زمونږ د پاره څه د اجازه
نامې انتظام وکړای شي دهلی ته روان شو، دهلی ته ورسیدو او کونسل جنرل صاحب مو
ولیدو او خبری اتری مو وشوې، مونږ سره یې ډېره همدردی ظاهره کړه او امان الله خان
ته یې تار ورکړو او د تار په ذریعه یې مونږ له اجازتنامه راوغوښته په دغه ورځی مونږ ته
په دهلی کښې معلومه شوله چه پیرنګیانو د شور بازار د حضرت ورور چه په هندوستان کښې
په کاټهیاواړ کې اوسی راغوښتی دی او هغه پاوندولیږی چه د هغه مریدان دي د

امان الله خان برخلاف افغانستان ته لېږي ځکه چه پېرنګيانو ته معلومه شوې وه چه د
خلکو څه نه څه حمله دی د امان الله خان سره پیدا شوی ده او هسې نه چه هغه چېرته کامیاب
شي. مونږ د کونسل جنرل صاحب نه رخصت واخست او سرحد ته راروان شو څه وخت چه
مونږ پېښور ته راورسېدو نو مونږ ته معلومه شوه چه د افغانستان وکیل تجار له هم د کندهار
نه زمونږ د پاره د امان الله خان پخپل دستخط فرمان رالېږلی شوی دی. د دی د پاسه
به بیا هم حکومت چل ول کووا وبه مونږ. به يې وخت اړوه څه وخت چه زما بالکل دا یقین
راغی چه حکومت په هیڅ طریقه زمونږ وفد له اجازت نه ورکوي تو ما خپلو د جماعت ملګرو ته
ووې چه د حکومت دا ټولی اني باني زمونږ د پاتی کېدو د پاره دی او که چېری تاسو د حکومت
اجازت ته ناست یئ نو هلته غه شان به ناست پاتی شئ او هیڅ قسم د افغانستان امداد د
به نه کړی شئ او بله دا چه ایا افغانستان کښی د دوی سفارت نشته؟ نو بیا د پاسپورت
ضرورت څه دی؟ مونږ خو افغانستان ته د پېرنګیانو په ذمه وارئ نه ځو، مونږ که
افغانستان ته ځو نو پخپله ذمه واری ځو نو بیا د پېرنګیانو د راه داری مونږ ته څه حاجت
دی؟ لیکن زما د اکثرو ورونو دا خیال و زمونږ تلل او راتلل به بند شي او زمونږ د دی
وفد په لاره کښی به د ډارو راغوښتلو په سلسله کښی مشکلات پیدا شی او نه به مونږ
د افغانستان ورونو سره مالی امداد وکړی شو. ما ورته ووې چه په دی صورت کښی به مونږ
د غه شان په انتظار کښی پاتی شو، د افغانستان به اړود هیڅ قسم امداد و نه کړی شو او
امان الله خان چه ترکومی پوری په افغانستان کښی وی نو دوی مونږ له اجازه نه راکوی
او چه هغه د افغانستان نه لاړ نو بیا به مونږ له اجازه راکړی.

ما او زما یو څو ملګرو دا اراده وکړه چه مونږ بغیر د پېرنګیانو د اجازت نه د افغانستان

دامداد د پاره روانیږ. او په دې غرض مونږ په پېښور کښې یوه جلسه وکړه او قوم ته مو دا حقیقت ښکاره کړو چه پیرنګیان مونږ له راهداری نه راکوی او مونږ د دوی راه داری ضرورت هم نه لرو ځکه مونږ افغانستان ورور دی او مونږ خپلو ورونو له پخپله ذمه واری باندې ځو چه څوک تلل غواړی او تلو ته تیار دی چه فوراً افغانستان ته روان شو. خلکو وې چه مونږ تیار یو څه وخت چه د دې جلسې رپورټ حکومت ته ورسیدلی دې چه مونږ بغیر د اجازت تلو ته تیار شو نو فوراً یې ماله تار راکړو چه څوک څوک چه افغانستان ته په طبی وفد کښې ځی نو فوراً دې مونږ له د راهداری له پاره درخواست راکوی او خپل تصویرونه دې ورسره راولیږی. زه د حکومت په دې خیال پوه شوم لیکن د جماعت اکثر خلکو راته ووې چه ستاسی د دې حکومت نه نفرت دی او د دوی څېره درته د چل او دروغ ښکاری. زه چپ شوم او د راهداری نه بغیر تلو خیال مې پرېښوده او د راهداری د پاره مو تصویرونه او درخواستونه ورکړل.

## نادرخان:

د دې دورې خونه په دې ملک کښې داګونګوسې وُ چه نادرخان د خپلو ورونو سره د فرانس نه را روان شوی دی، بلکه ورځې راته معلومه شوه چه نادرخان سره د خپلو ورونو پېښور ته راورسیدلی دی او د وکیل تجار په کور کښې دی. زه او ډاکټر صاحب یې هم د لیدو د پاره لاړو. نادرخان او هاشم خان ما د اول نه پېژندل په منه شان سره مو ملاقات وکړو. د دې خلکو پرې زور ونکو چه قندهار ته لاړ شه او امان الله خان ورپسې په استاذی را ولیږل لیکن نادرخان د قندهار د تلو د پاره تیار نه شو. یوه ورځ زه او نادرخان یوازې یوه کمره کښې ناست وو، د افغانستان په مستقبل مو خبرې کولې چه ده ماته ووې زه چه

هر څه کوم نو د امان الله خان د پاره یي کوم ما ورته ووې چه خلک وایي چه د حبیب الله خان هغه زوی چه ستا خور یي دی تا سو د هغه په حکومت باندی د کښېنولو د پاره کوشش کوئ ده راته ووې چه ته به هم ژوندی یي او زه به هم ژوندی یم که چیری ما هغه بادشاه کړه یا ځپله باد شاه شوم نو ته راشه او مخ راله تور کړه او راته ووایه چه نادر خپله وعده دی پوره نه کړه. څه ورځې پس هاشم خان جلال اباد ته او نادر خان او شاه ولي خان خاځیو ته روان شو، زه یي په دې خبره مجبوره کړم او وعده یي راته واخسته چه سبا به مونږ تل کښی یو. نه سبا له هلته راشه او ما ضرور ووینه. زه سبا له تل ته لاړم لیکن نادر خان په مخه تللی ؤ او تل کښی ایسار شوی نه و، دا روانېدلو په وخت کښی حکیم می په موټر کښی ولید وچه د نادر خان د لیدو د پاره خاځو ته روان و، هغه له می یو خط ورکړو او په هغی کښی می نادر خان ته ولیکل چه اوله وعده خو دی پوره نه کړه شوه نو چه د بلی وعدی به دې څه حال وي، بغیر زمانه د ټولو خلکو دا خیال وچه پېرنګیان به د افغانستان د ټولو امداد د پاره مونږ له اجازت راکړی لیکن زما دا خیال نه و ولی چه دوی د امان الله خان غوندی د پښتنو خیر خواه بادشاه په افغانستان کښی نه غوښتو او زمونږ خوش اعتقاده ورونه په دې امید کښی پراته وو چه نن دی که سبا دی اجازت به راشی د فصل وخت ؤ مونږ د افغانستان د پاره چنده جمع کولو په خیال د باځیزو په دوره وو خلکو راسره ډېر په اخلاص او خوشحالی د ټول زکوة د راکولو وعدی وکړې، پښتانه د افغانستان د ورونو هر قسم امداد کولو ته تیار وو. زه او خوشحال خان د بادی کاؤ د سخاکوټ په لاره مردان ته را روان شو، چه مردان ته راورسیدو نو خبر شو چه امان الله خان د جنګ خیال پرېښودی دی او کوېټی ته راغلی دی، د دی خبری په اوریدو به ما ډېر غم او خفګان راغی خوشحال خان

کلي ته رخصت شو او زه د قاضي عطاء الله خان ځای ته لاړم او په یو کټ کښې ویده پری
وتم څو ورځې پس څه وخت چه امان الله خان بمبئ ته ورسید و زه ډاکټر صاحب او نورو
دوستانو مجبوره کړم چه بمبئ ته لاړ شه امان الله خان ووینه او د افغانستان متعلق مشوره
ورسره وکړه او دا خبره معلومه کړه چه که مونږ د افغانستان سره د څه قسم امداد کول غواړو
نو د چا سره وکړو او دا هم معلوم کړه چه د نادر خان او د هغوی د ورورو متعلق د هغه څه خیال
دی زه بمبئ ته لاړم. عبدالهادي خان داوي هم هغه سره و او د هغه په ذریعه مې د هغه
سره ملاقات وشو خبرې مو وشوې. ما افغانستان ته د واپس د تلو خبره وکړه لیکن هغه
د افغانستان نه مایوسه شوی و او د افغانستان خیال یې پرېښې و د پښتنو نه ډېر موړ معلومېده
زما چه د هغه سره ملاقات وشو نو ما سره یې په پښتو کښې خبرې وکړې، د ګفتګو په دوران کښې
د نادر خان ذکر هم راغی او ما ورته دا وویل چه مونږ سره چه د افغانستان د پاره
کوم حساب جمع دی هغه چا له ورکړو؟ نو په جواب کښې ده راته ووې چه تاسو یې نادر خان
ته ورکړئ او د نادر خان امداد وکړئ. ملاقات ختم شو په ډېر خفګان سره مونږ د یو بل
نه جدا شو په هغه هوټل کښې هغه سره نور هم ډېر سرداران وو هغوی سره مې هم لیدل
کتل وشو او د شپې عبدالهادي خان د بمبئ د کونسل په کور کښې زه میلمه کړم او د ډوډۍ
په وخت کښې مې نورو ډېرو سردارانو سره خبرې اترې وشوې. د دې خلکو دا خیال و چه
امان الله خان به ضرور واپس افغانستان ته راځي ځکه چه په موجوده جنګ کښې کوم
کوم جرنیلان د بچه سقه د لیرې کولو کوششونه کوی هغوی په کور کښې بې اتفاقه دی او
په یو او بل اتفاق کولی نه شي او د ټولو اتفاق په امان الله خان راتلی شي د غه جرنیلان
نو نادر خان و چه د څاځو په مرسته یې کابل اخیستو او بل غلام نبي خان و چه د ترکستان

د طرف نه په کابل د حملې کولو د پاره رادروان و. زه د بمبیٔ نه واپس راغلم دا ټولې
خبرې مې انجمن هلال احمر ته ورسولې او د امان الله خان خیال او رأی او د نادر خان
متعلق خبرې مې هم هغوی ته ظاهرې کړې او دا تجویز مې پیش کړو چه دا څومره روپۍ هلال
احمر سره جمع دي او کوم سامان چه د طبي وفد د پاره مونږ ته خلکو ورکړي دي دا ټولې
نادر خان له لېږل په کار دي لیکن په دې کښې بعضې وکیلانو چه د هغوی سره شېخ ابراهیم
خان د چیني د مخالفت وکړو زما په خیال د هغوی د خپلو چندو د واپس اخستو د پاره
دا بهانه وه اخر فیصله په دې وشوه چه څوک خپلې روپۍ نادر خان ته لېږل نه غواړي نو
هغوی ته دا حق حاصل دی چه خپلې روپۍ واپس واخلي حالانکه د هلال احمر د قانون
نه دا خبره خلاف وه او تقریباً اکثرو وکیلانو چه مونږ له څه نه څه چنده راکړې وه واپس
یې واخیسته بیا هم مونږ نادر خان له پنځوس زره نغدې روپۍ او هغه ټول سامان
چه مونږ له خلکو راکړی و ولېږه او په علاقه کښې مو د چندې د پاره انتظام هم وکړو
په دې ورځو کښې هر سړي په جوش کښې و، زمونږ د اسلامیه کالج په هلکانو کښې هم
یو زبردسته جذبه راوچته شوې وه، د افغانستان د پاره چنده مې هم راجمع
کړې وه، دسمبر میاشت وه کالجونه بند وو زما د یو طالب علم دوست میا اکبر شاه
د بلدشو دا خیال ؤ چه د پښتنو د ځوانانو یو انجمن قایمول په کار دي. هغه یوه ورځ
د میا احمد شاه صاحب په ځای کښې ما سره دا ذکر وکړو چه مونږ د صوبه سرحد ځوانان
راجمع کړو او که چیرې ته د ملګرو د پاره انتظام وکړې نو دا به په مونږ یو لوی احسان
وي ما ورته ووی زه هر وخت ستا سو خدمت ته تیار یم لیکن که د پښتنو په ځای
اتمانزو کښې راجمع کېږي نو دا به بهتره وي. هغه زما دې خبرې سره اتفاق وکړو

او په اتمانزوکښې را جمع شو زما د انجمن بعضې ممبران هم دوی سره د تبادله خیالاتو د پاره ما دا غوښتنې وو بحث شروع شو چه په صوبه سرحد کښې یو لیګ (Youth league) جوړول په کار دی. د بعضې خلکو دا خیال وچه دیو ته لیګ په ځائ دی دهغې نوم د صوبه سرحد د ځوانانو جرګه وی لیکن زمونږ د انجمن صدر عبدالاکبر خان او سکرټری خادم محمد اکبر ددی مخالفت وکړو چه د پښتنو یو جماعت خو قایم دی چه ستاسو او دهغه په اغراضو مقاصدو کښې فرق نشته په دی وجه د نوی جماعت د قایمولو ضرورت نشته، دغه جماعت له ترقی ورکول په کار دی، لیکن ځوانان ډیر په جوش کښې وو هغوی دی خبری سره اتفاق ونه کړو. زمونږ د خلکو دا خیال وی چه کښې ترقی دیولوی انجمن قایمولو سره لګیږی د نادرخان مارماله راغی چه کابل فتح شو او چه خلک خبر شو چه کابل فتح شو نو یو قسم خوشحالی په خلکو راغله چه بیان یې کولی نه شم. بلکه دا چه دقوم حوصلې زیاتی شوی او د ملک د بر سرا و دکوز سره نه جلوسونه او جنجونه را روان شو په جلوسونو کښې خلک کم بدل خلکه چه ډیر خوشحاله وو دغر بینونو ډزی وی تو یکی هم خلاصې دی.

دا اتول جلوسونه په اتمانزو کښې یو ځای شول او یوه لویه جلسه وشوه په جلسه کښې نوروز موتږ ملکرو هم تقریرونه وکړل او ما هم په اخر کښې تقریر وکړو، د تقریر په دوران کښې می پښتنو ځوانانو ته ووی دکابل دفتحی نه سبق واخلئ د افغانستان دفتحی په سلسله کښې ډیره حصه ستاسو دکوششونو ده. په دنیا کښې داسی هیڅ کار نشته چه هغه کیدلی نه شی خو چه خوک یې کولو پسی ملا وتړی، نپولین به وې چه زما په دایری کښې د ناممکن لفظ نشته تاسو او ده یئ د دنیا نه بی خبره یئ زه مو خبروم.

کابل د ۱۹۲۹ع کال په اکتوبر کښې فتح شو او نادرخان دخپلې بادشاهئ اعلان وکړو.

په دې خبره باندې مونږ ډېر حیران شو. ولې چه داسې کارې وکړه چه ترمونږ په خواب او خیال کښې نه ؤ ځکه چه هغه خو مونږ سره وعده کړې ده چه زه به نه باچا کېږم. مونږ خو پرېږده چه ښېلو خلکو سره یې کومې وعدې کړې وې هغه یې هم ماتې کړې.

په دغو ورځو کښې عبدالهادی خان چه کابل ته روان وو مې لیده و زما په لیدو سره یې وخندل او ویې ویل چه کم بخت په یوه وعده هم ټینګ نه شو که باچاهي یې خوښه وې نو کم از کم کانستیټیوشنل مانرکي اعلان به یې کړې وای. دنادرخان بې وفایي زمونږ په خلکو ډېر خراب اثر کړې و، لیکن مونږ څه کولې شو، مونږ داخبره خدای ته پرېښوده چه خدای دې سزا ورکړي. چه بیا ځوک توم سره داسې قصه نه کوي. دافغانستان دفیصلې نه پس مونږ وزګار شو

میا احمد شاه صاحب مې هم راضي کړه او مونږ دخپلې

صوبې د دورې اراده وکړه. زه او عبدالاکبرخان

او احمد شاه دکوهات، بنو، ډېره اسمٰعیل خان

په دوره ووتو، ددې تقریرونه

به په جرګه یعني یوتھ لیګ (youth league) باندې وو او ما به خلکو سره دقوم او وطن خبرې کولې او په هرځای کښې زمونږ دا دوره ډېره کامیابه ثابته شوه.

# منظم سیاسی، جد وجهد
# خدائي خدمتگاري

لاهور کښې د آل انډیا کانګرس، جلسه سنه ۱۹۲۹ ع

خدائي خدمتګاري، دوړې او سرې جامې

د مردان، بابي زی، سودم، اکبرپوره، نوښار

خیشکي، تسته.) سالاران

مرغز کښې لویه جلسه او یوه قامي پرېکړه، اتمانزو

کښې لویه جلسه او مشاعره

## لاهور کښې د کانګرس جلسه ۱۹۲۹ع :

په دسمبر ۱۹۲۹ع کښې په لاهور کښې د کانګرس سالانه جلسه وه او چونکه لاهور د صوبه سرحد ته ډیر نزدې ؤ په دې وجه د صوبه سرحد ډیر خلک د کانګرس د جلسې لیدو له پاره لاړل. ما او امیر ممتاز خان زمونږ د آزاد سکول هیډ ماسټر د تللو اراده وکړه. مونږ کانګرس کښې نه وو مونږ خو خلافت کښې وو او مونږ تماشې له تللي وو، د کانګرس جلسې زمونږ په ځوانانو باندې ډیر ښه اثر وکړو او بیا دې خبرې پورې ډیر اثر وکړو چه ځوانان خو پریږده د هندوانو جینکو هم د ملک د ازادۍ او د خدمت د پاره ملا تړلې ولاړې دي. مونږ هم د کانګرس په پنډال کښې ځای په ځای ګرځیدو، مونږ ج د جینکو والنټیرو (رضا کارانو) د اقومي جذبه ولیدله نو ددې نه ډیر متاثر شو مونږ د صوبه سرحد نه تللي تول ملګري هلته راجمع شو ما ورته ووې چه سړي خو د هندوانو ښځې هم بیدارې شوې دي او د ملک د ابادۍ د پاره یې ملا تړلې ده پښتون د ښځو ډیر اثر کیږي، ددې خبرې په هر یو ډیر اثر وشو او هر سړي چه لاهور ته تللي و نو په زړه کښې یې د قام او وطن احساس پیدا شوی ؤ. جلسه ختمه شو

## خدایي خدمتګاري :

مونږ چه د لاهور نه واپس شو نو په اتمانزو کښې مو لویه جلسه وکړه، زه په جلسه کښې پاڅیدم او خلکو ته مې ووې چه تاسو خواوده یئ او سړي یاخه کوئ چه د هندوانو ښځې هم بیدارې شوي او هغوی سړه سړه یو ځای د ملک د ازادۍ د پاره ملا تړلې ده جد وجهد کوی. تاسو خولږ دې لمر خاته ته وګورئ څومره لوی سیلاب راروان

اوسیلا بونه هیشه او ده قومونه وري پاځئ ، ویښ شئ اوملا وتړئ ، تاسو خو وګورئ ، پیرنګیان وایي چه هندوستان مونږ په توره فتح کړی دی دا زمونږ دی او مونږ به پری حکومت کوو اوګته وته یې زمونږ ده ، هندوان پیرنګي ته وایي چه تاسي مونږ په زوره نیولی یو ، اوس چه مونږ پوه شو او متفق شو خپل وطن د هغه اخلو دا زمونږ وطن دی اوس به پری مونږ حکومت کوو . تاسي ددې نه خبرېږئ که نه ؟ زه مو خبروم چه خبر شئ دهندوانو او پیرنګیانو په دې جنګ دی چه پیرنګي وایي چه هندوستان کښې به بادشاهي مونږ کوو او هندوان وایي چه دلته به بادشاهي مونږ کوو او مسلمانان دغفلت په خوب اوده دي ، نوای پښتنو ورونو زه ستاسو نه پوښتنه کوم چه تاسو به څه کوئ ، تاست به يې دواړو ته به دعا کوئ او دغلامۍ او پېتي توب ژوند به تېروئ . ( مونږ چه هلکان وو ، غوزان به مو کول . لویه دایره به مو راښکله او په هغې کښې به مو غوزان کښېښودل . ګټه بایلات به د دوو لوبغاړو ویو دریم سړی به دواړو له غوزان راټول هغه سړي ته به یې پېتي ویلو چه چا به غوزان وګټل نو هغه ته به یې د وه غوزان د ګټې ورکول . ) نوای پښتنو تاسي ته وایم دا د پېتي توب ژوند خوښوئ او که تاسو هم ځان د دې وطن مالکان ګڼئ ؟ نو پاځئ او ملا وتړئ او دا خپل ملک خپل کړئ . جلسه په ډېر جوش وخروش ختمه شوه او پښتنو زما تقریر ډېر ښه اثر وشو . دشپې زمونږ د کلي محمد اکبر خان ، سرفراز خان او حجاب ګل او یو څو نور هلکان زما دلیل و د پاره زمونږ حجرې ته راغلل او ما سره یې دیو جماعت دجوړولو مشوره وکړه ما هغوی په ښه شان پوه کړل چه دا لوبې توکې نه دی دا ډېر مشکل کار دی ، ددې په لار کښې ډېر اغزي دي په تاسو به زما د

تقریر ډیر اثر شوی وی، خولاړ شئ. په دی معامله سنه غور او فکر وکړئ، هغوی
می رخصت کړل، بلکه شپه بیا راغلل. ماورته ووې چه ستاسو په ذهن کښی زما
هغه تقریر لا اوس هم ناست دی. تاسو د دنیا تاریخ وګورئ په دنیا کښی چه څوک
د خدای د مخلوق د خدمت د پاره پاڅیدلی دي نو په هغه مصیبتونه او تکلیفونه
راغلي دي تاسو بیا په دریم ځل په دی سنه غور او فکر وکړئ بلکه شپه بیا راغله او دا ته
یې ووېل چه مونږ په دی کار ډیر غور او فکر وکړ، مونږ د قوم او ملک د خدمت د پاره
د هر قسم تکلیفونو، مصیبتونو او قربانیو ته تیار یو، بیا مونږ کښېناستو او په دی خبره
مو غور کولو چه د دی نوی جماعت نوم دې څه وي. زما دا خیال وچه په دی پښتون
کښی د خدمت خیال نشته، په دی جماعت مونږ یو داسی نوم کښېږدو چه د پښتنو
په دماغ کښی د خدای د پاره د خدمت خیال پیدا شی. قسم قسم نومونه پیش شول خو
زمونږ خوښ نه شول، د شپی زما په زړه کښی د خدایی خدمتګار نوم راغی. چه سبا
له دوی راغلل نو ما ورته دا نوم وړاندی کړ. د دوی هم خوښ شو او دعا د خیر پری وشوه
دی نوم زمونږ په زړونو کښی یو قسم اطمینان پیدا کړو، مونږ پښتانه خدایی کار او خدمت
هغه کار او خدمت ته وایو چه بی د کومی طمعی، غرض او اجرت نه د خدای د پاره کوو او
خدای خو خدمت ته ضرورت نه لري، د خدای د مخلوق خدمت د خدای خدمت دی.

زمونږ په علاقه کښی ملایانو، د ولکی او سرنا بند کړی وو د د ماتو پوستی د هغه
خپلو کشرانو ته ویلی وو چه بچو دا ډول د بلیځ د کوتهی په تیر کښی کښېږدی. د دې اخر به خدای
مسلمانی راولي، نو د ماتو ته مو ووېل چه هغه خپل ډول د بلی راواخلئ هغوی ډیر
خوشحاله شو هغوی هم مونږ سره خدایی خدمتګار شول او مونږ د هشنغر او بیا د

دواوې په دوړه روان شو او چه یو کلي ته به نژدې شو نو د ډول به مو وواهه. چه خلکو به د ډول او سرنا اواز واورېدو نو حیران به شو ولې چه د ډول او سرنا خو ملایانو بند کړي وو نو چه چا به اورېده ښځې، نر، بچي به راغونډېدل او مونږ پسې به را دوان وو مونږ چه به د کلي مېنځ ته ورسېدو نو د ډول او سرنا به مو بند کړل. د کلي اکثر خلک به راغونډ شوي وو او دې کار مونږ سره ډېر مل دو کړل نو ما به ورته یو مختصر غونډې تقریر وکړو چه پښتنو ورونو! مونږ ستاسو ورونه یو، ستاسو خدمتګار یو، ستاسو خدمت له راغلي یو راځئ چه داخپل وران کور جوړ کړو، تاسو لږ دې دنیا ته وګورئ که علم مو نشته نو سترګې خو مو شته. د دنیا خلک او قومونه اسمانونو ته وختل او مونږ په ځمکه پاتې شو. هغوی چه زمونږ په شان بنیادم دي، مونږ ورته لاس نیولې دي چا نه دالې غواړو چا نه پیسې غواړو، مونږ له خدای د جنت په شان ملک راکړې دی، د دولتونو او نعمتونو نه ډک دی او زمونږ پکښې څه حال دی؟ د جوارو ډوډۍ نشته چه په مړه ګېډه یې وخورو هغوی ولې اباد شو؟ او مونږ ولې پاتې شو؟ هغوی کښې ورورولي ده، قامولي ده، او اتفاق دی، په مونږ کښې پرې دي جنبې دي او بغض دی، کینه ده، نفاق دی. دا نن دنیا د قامولۍ دنیا ده که قوم شوئ نو ستاسو دنیا به هم اباده شي او ستاسو اخرت به هم اباد شي.

زمونږ دې خبرو به خلکو ډېر اثر وکړو او مونږ چه به هر چیرته لاړو نو ښځې نر، واړه، زاړه به قول د اسره روان شو، نو ملایانو دا فتوه وکړه چه باچاخان دجال دی. د دجال په هکله دا مشهوره وه چه دی راشي نو ښځې، نر، او ماشومان به ورپسې وي، ملایانو به خلکو ته ویل چه تاسو نه ګورئ چه نر، ښځې، زاړه، واړه ورپسې دي؟

کوم ځوان چه به زمونږ جماعت کښې داخليږي نو هغه به عهد کوو مونږه به ورته ويلي چه دالا د ډېره ګرانه ده او په دې لاره کښې ډېر اغزي مصيبتونه او تکليفونه او قربانۍ دي که دې ته تيار يې نو هله خدائي خدمتګار کيږه. ښه غور او فکر پکښې وکړه بيا به مو ورته ويلي چه خدای ته خو د خدمت ضرورت نشته، د خدای خدمت دا دی چه د هغه د مخلوق خدمت د هغه د رضا د پاره وکړې بيا به مو ورته دا خبره وکړه چه پرې، جنبې، تربګنې به پرېږدې ولې چه دا دې دلاسه زمونږ کور وران دی او که څوک در باندې زياتي وکړي نو ته به ترې بدل نه اخلې، صبر به کوې بيا به مو ورته وويل چه تشدد به نه کوې ولې چه تا سو وګورئ د پښتون چل کور د تشدد په وجه وران دی او دا د تشدد د خو چيل ورور سره دی بل ته يي ايمان نشته. خدائي خدمتګار به د خپل قوم او ملک خدمت د خدای د پاره کوي بل غرض به يې نه وي رسم او رواج به پرېږدي او هره ورځ به په خپل لاس دوه ګينټې کار کوي. دا وعده چه به يې وکړه نو هله به مونږ د هغه نوم د خدائي خدمتګارو په فهرست کښې وليکلو.

د عدم تشدد د په هکله خلکو کښې عجيبه عجيبه خيالات دي د دې په هکله ډېرې پراپېګنډې کيږي او په خلکو کښې غلط فهمي پيدا کوي. څوک وائي چه که څوک په يو مخ څپېړه درکړي نو ته ورته دا بل مخ هم ونيسه چا به وي چه ته ورته پروت او سه او بل به در باندې ګرځي چا به وي چه ته به ورته پروت يې او هغه به دې وهي ته به لاس پښه نه خوځوې چا به وي چه پښتون يو بهادر او زبردست قوم دی، غفار خان يې بزدله کوي، لنډه دا چه قسم قسم خبرې وې. د را صل عدم تشدد يو طاقت دی څرنګه چه تشدد يو طاقت دی د عدم تشدد هم د غه شان فوج دی لکه څنګه چه د تشدد دی.

خود علم تشدد وسله تبلیغ دی او د تشدد وسله توپک دی ، علم تشدد په خلکو
محبت پیدا کوی ، همت پیدا کوی او جرئت پیدا کوی او تشدد په خلکو کښې نفرت پیدا
کوی او ویره پیدا کوی او بزدلی پیدا کوی . بعضې خلک وائی چه د ډیفنس ( دفاع )
د پاره خو تشدد به کار دی ، دوی دی ته فکر نه کوی چه تشدد د ې وکړو نو د علم تشدد
د ې پرېښو حالانکه علم تشدد کښې خپله دفاع شته ، علم تشدد کښې شکست
شته او تشدد کښې شکست شته ، ځکه چه د تشدد یو نظام دی ، دغه شان د علم
تشدد هم مکمل نظام دی ، تشدد اسان دی او په دې لاره تلل هم اسان دی او علم
تشدد ډېر گران دی او په دې لاره تلل هم ډېر گران دی . یو سړې له د پرق جواب
کښې پرق ورکول اسان کار دی ، خو پرق زغمل گران کار دی .

## دوری :

د هشنغر او دواوی نه پس زه او میا احمد شاه صاحب د صوابئ په دوره
لاړو کلی په کلی وګرځېدو او ډېر خلک په خدائی خدمتگارئ کښې داخل شو کلی په
کلی موجرګی جوړې . مونږ د هغه ځای نه بیا پېښور ، خالصه او د داودزو کلی ، کتل
د مردان او بیا د باټیزو دوره مو وکړله او سودم او رستم له لاړو صاحبزاده خورشید
دادینا او مولوی شاه محمد صاحب د تولاندی ماپښی راغلل بیا ماهغوی سره د
مازوګرې نه تر ناریخی پورې دوره وکړه ، په دی دوره کښې د صاحبزاده صاحب سایکل
مونږ سره ډېر مدد کړی و زمونږ داتولې دوری به پیاده وې . صاحبزاده صاحب
به په سایکل سور شو او زمونږ نه به بې مخکښې یو کلی ته ځان ورسولو ، مونږ چه به ورتلو
هغه به د کلی خلک یو ځای ته راجمع کړی وو ، مونږ چه به ورته تقریر شروع کړو نو صاحبزاده

صاحب به د خپل بایسکل سره د بل کلي د خبرولو د پاره روان شو او به د ی طریقه مونږ
به په ورځ کښې نهه لس جلسې کولې، په دې دوره کښې مونږ ډېر کار وکړو او ډېرې جلسې مو
وکړې؛ د هغې لویه وجه داوه چه روژه وه او خوړل څکل پکښې نه وو، هغه وخت چه په خوړلو
څکلو، ضایع کېدلو بچ شو. اخترله مونږ ټول خپلو خپلو کلو ته لاړو او د اختر په دریمه
ورځ چه په چارسده کښې به یوه لویه میله لګېدله (چه د نسرو میله به لي ورته وي) مونږ
خپل خدائي خدمتګار د ډول سرنا سره د یو جلوس په طریقه میلې له لاړو. په دغه وخت
کښې ز مونږ د خدائي خدمتګارو وردۍ، د سپینې خامتا وه. هغه به زر خیرنه شوه
او چه دوره کښې به هغه خیرنه شوه نو سنبه به نه ښکارېده. په میله کښې د لیرې لیرې علاقو
خلک راغلي وو هلته مونږ یوه لویه جلسه وکړه په زرګونو خلک راجمع شول خلکو کښې ډېر
مینه وه، محبت و، جذبه وه او په خلکو ډېر اثر وشو، ما خو هره جلسه کښې هغه یو تقریر کولو
بیا مونږ خالصې ته روان شو ولې چه هلته هم په اکبرپوره کښې یوه لویه میله دي هغلته
هم مونږ ته ډېر خلک راجمع شول او خپل اغراض او مقاصد مو ورته بیان کړل او په خلکو
یې ډېر اثر وشو په لاره کښې خدائي خدمتګارو د یو سړي نه دلارې تپوس وکړو
هغه چه ور سره ډول سرنا ولیدل ورته ویل یې ماته دا ساز و غږ دې نو بیا به د ...
لاره وښیم هغوی ورته ووې چه دلته ورو سته یو سړی راروان دی هغه نه پوښتنه
وکړه که هغه راته ووې نو بیا به د ورته ساز و غږ وو چه زه ور ورسېدم نو هغه سړي
چه زه ولیدم نو وشرمېده او لاره یې راته وښودله. د اکبرپورې نه تاروته لاړو
او د تاروننه په ریل کښې نوښار ته لاړو، د نوښار په صدر بازار کښې مو جلسه وکړه
او د خدائي خدمتګارۍ په مطلب مو خلک پوه کړل. شپې له پورې نوښار د ل

لاړو دشپی د دوی انتظام معزالله خان کړی و. ګل احمد اویونس خان بره په
د نوښار په ډاګ کښی دجلسی انتظام کړی و. په سباله په جلسه کښی خانان او غر
بیانان په لوی تعداد کښی شریک شول. سربلند خان، سرفرازخان اوامین خو
الله خان او حضرت بادشاه میا صاحب سره دخپلو زامنو فیروزشاه او سرور شاه
او عبدالله یان جلسه په ډیره کامیابی سره وکړه. په نوښار کښی د پر جوش وخروش خکار
پیداشو او حضرت شاه بادشاه په جلسه کښی اعلان وکړو چه ماخپل دوه زامن او صفا
فیروزشاه اوسرورشاه دخدایی خدمتګاری دخدمت دپاره باچاخان ته حمم کړ
بښلی دی

په نوښار کښی چه دپر خدایی خدمتګار او ممبران جوړشو نو دلته مونږ
جرګه جوړه کړه او دخدایی خدمتګارو جرنیل سرورشاه مقررشو. ماخور واندی
د دی خبری ذکر کړی دی چه خدایی خدمتګارو وردئ دسپینی خامتا وه
خدایی خدمتګارو ماته شکایت وکړه چه داسپینه وردئ په دوره کښی زر
خیر نه شی او دینځلو هم څه انتظام نه وي نوښه به داوی چه مونږ وردله څه رنګ
ورکړو نوماورته ووی چه ورکړئ نوهغوی اتفاقاً سوررنګ ورکړو خدایی خدمتګارو
ځان له سری وردی جوړکړی. هر خدایی خدمتګار به ځان له پخپله چپله وردی
جوړوله. دی رنګ دخلکو په زړونو دپر زیات اثر وکړو خکه چه ښکلی وردی وي
او زلمی به پکښی ښکلی ښکاریدل او ټولو خدایی خدمتګارو یو شان رنګ ورکړو.
دغه دسره جامو وجوړه چه پیرنګیانو بیا زمونږ برخلاف پراپیګنډه شروع کړه چه
دا دبلشویکو تحریک دی مونږ خو هغه وخت د دی نه خبرهم نه وو چه دبلشویکو هم سره

وردی ده داخو یوه اتفاقي خبره وه. ما نه دغه وخت پوری نه د مارکس، نه د لینن او نه د گاندهي جي کوم کتاب لوستی وه او نه تری خبروم. موږ ته د نوښاد نه خپلو له راغلو او جلسه مو وکړه او ډېر خلک موږ سره په خدایي خدمتگارۍ کښې شریک شو او سیف الملوک او تاج الملوک د سرخپوشو مشران مقرر شول او بیا ښیستی له راغلو دلته هم جلسه وشوه او ډېر خلک په خدایي خدمتگارۍ کښې شامل شول د خدائی خدمتگارانو چه پښتنو کښې داسې یوه جذبه پیدا شوې وه چه موږ به کوم کلي ته ورغلو او خلک به زموږ نه خبر شو نو په یوه منډه به موږ له راتلل او د تقرير نه پس چه به ما اپیل وکړه چه تاسو کښې څوک شته چه د خدای د پاره د ملک او قام خدمت وکړي نو یو به پاڅېد وچه زه مانوم والیکه د هغه پسې بل او بل به پاڅېدل چه زه مانوم والیکه او خدایي خدمتگارۍ کښې شریکېدل او دغه شان ډېر کسان په خدایي خدمتگارۍ کښې شامل شول.

زموږ د جرگو د ممبرانو او خدایي خدمتگارو تعداد چه زیات شو نو موږ د دوی تنظیم جوړ کړو، او د اتمانزو سرفرازخان د باوردی خدایي خدمتگارو سالار اعظم مقرر شو، د هغوی د منډائی د ډیوډی د پاسه یوه بالاخانه وه هغه د خدایي خدمتگارانو دفتر شو، د امرکزی دفتر وو. د سرفرازخان نه پس د ب نواز خان سالار شو، او د هغه نه پس بیا امین جان خان سالار اعظم شو. د غه شان د ضلع پېښور سالار اینزر گل، د مردان سالار منیر خان، د کوهاټ سالار اسلم خټک، د بنو سالار یعقوب خان، د ډیرو سالار مولا داد او د هزارې سالار داؤد خان او یو سالار د کنو د بجان نادرنگ مقرر شول.

په دغه ورځو کښې قلی خان چه د مومند د پولټیکل وو زمونږ مومند درو نه
یې را او غوښتل او ورته یې اوویل چه په تاریخ کښې لیکلي دي چه د دې ملک خلک به
پوهان ته ځي او دا ملک به تورې پاتې کیږي. که تاسو د دوی ملګرتیا اونکړئ او دوی سره
په تحریک (خدائي خدمتګاري) کښې شامل نشئ نو دا مزکې به سرکار تاسوله درکړي، زمونږ
یو مومند خدائي خدمتګار وو چه د وتیکي وو. وتیکي د تخت بائي سره یو ورو کی بانډه
ده هغه راغی او ماته یې دا قصه اوکړه، په دغه وخت کښې زمونږ سره ډېر ښه مومندان
په دې تحریک کښې شریک وو، هغه چه ماته دا خبره وکړه نو ما ورته اوویل چه ته د دې
علاقې بارسوخه مومندان را وغواړه او ماته هم خبر وکړه چه زه هم درشم او دوی سره د
ورورولۍ او عزیزولۍ یو څو خبرې وکړم او دا څه چه ورته قلی خان ویلي دي د دې په
حقیقت یې پوه کړم. نو هغه خپل عزیزان مومندان را وغوښتل او زه یې هم خبر کړم، زه
ورغلم، ما دې خپلو ورونو مومندانو ته اوویل چه د پښتنو د ورورولۍ ولیش شویدی
او هر چا له خپله خپله حصه ورکړې شوېده، اوس چه تاسو ته دا قلی خان څه خبرې کوي دا
زمونږ کښې صرف د نفاق او جګړې پیدا کولو دپاره کوي او زمونږ ورورولي ګډه وډه کوي،
زه تاسو ته دا خبره کوم چه زمونږ لکه چه ما ورته اوویل د ورورولۍ ولیش شویدی، زمونږ
دا ملک او ځمکې نه پیرنګیان تاسو ته درکوي او نه یې درکولی شي، دا که درکوو نو مونږ به یې
درکوو، راځئ مونږ سره د ملک د آزادۍ دپاره ملا اوتړئ او چه مونږ دا ملک ازاد
کړو نو تاسو سره زه دا وعده کوم چه هرې کورنۍ له به شل شل جریبه ځمکه ورکوم، زمونږ د
پښتنو ډېرې مزکې دي، د هر چا پکښې برخه رسیدی شي، خو دا نه چه ته به وایې
چه زه دا یا د دې سرهٔ مزکه اخلم، ځکه چه زمونږ خو قومي ویش شویدی. په دې زمونږ

کورکښې نفاق او جګړه پیدا کیږي. زه افسوس کوم چه دی ورونو ماسره اتفاق ونکـ
دکله چه دقیوم حکومت راغی نوهغه بیا دا قصه را وسپرده او چه بهتو راغی نوهغه دا قصـ
لاګرمه کړه او په دی صورت بي زمونږ په پره تباهي او بربادي اوکړه او مونږ ته بي د پـ
سیاسي او اقتصادي نقصان را ورسولو.

دخدایي خدمتګاري اثر په ورو ورو، ښځو، نرو او ماشومانو داسې شوی وو
زه به ورته دېر حیرانیدم چه دا قوم خومره ښه قوم دی، او څنګه په یو مخ را بیدار شویـ
دماشومانو داحال وو چه زه به یو کلي ته لاړم، نو دوی به ټول ما ته راجمع شول او په قـ
کښې به وو دریدل او زمانه به داخواهش کولو چه زه هر یو چپ (شنکل) کړم. زما هـ
سره دېر محبت وو، زما به هم داخواهش وو چه هر یو چپ کړم. زه خو دوئی دېر ګـ
ووم او دوئي ماشومان وو نو چپ کیدو وخت کښې به زه هر یو ته راټیټیدلم نوما
دېر تکلیف وو او دېر به ستړی کیدم، خو بیا به هم ما ټول چپ کړل او هغوی به بـ
دېر خوشحال شول، دی ماشومانو په کلو او بانډو کښې خپل تنظیم جوړ کړی وو. جلـ
او جلوسونه به بي کول. یو کلي او بل کلي ته به تلل، او زمونږ جلسو او جلوسونو کښې
شریکیدل. دغه شان جینکو هم سره جامې جوړې کړې وې. نظمونه بي یاد کړې و
هغه به بي نورو ښځو ته اورول، دپښتون رساله (مجله) یې په شوق لوستله. چه پښتـ
مجله به راغله نو جینکۍ به راجمع شوی، یو جینۍ به لوستله او نورو به اوریدله، په د
دول داخبار لوستلو شوق هم خدایي خدمتګارو پیدا کړو.

دحکومت پولیس به هر وخت مونږ پسې وو او دساعت ساعت خبر به بي حکو
ته ورکولو. حکومت ته چه معلومه شوه چه خدایي خدمتګاري په پښتنو کښې په د

ور او شور سره خوریږی او په خلکو کښې جوش او خروش زیاتیږی او دا تحریک
ښتنو کښې ډېر کامیاب او هر دلعزیز شو نو ميږی پری لګیا شو چه دا په پښتنو خه
چل وشو او زه هم د خدای پاک دې قدرت ته حیران وم چه پښتنو کښې دا دومره
مینه محبت، ورورولی، عزیز داری او ژوندون زمونږ په لوړ کړاو څنګه را پیدا شو حکومت
دې فکر کښې شو چه په څه چل به دا تحریک ختم کړو، زمونږ د پېښې کمشنر له چه زمونږ
ملاقی خوخانان به ملاقات له لاړل نو هغه به ورسره هم دا قصې کولې چه دا عبدالغفار خان
څه تماشه جوړه کړې؟ ده ولې په قلاروند کښېني او کلی په کلی ګرځي اخر مطلب یې څه دی؟
وی به راغلل او دا متوله قصه به یې ماته بیان کړه. ما به ورته وی چه تاسو د پېښې کمشنر
ووایئ چه زما مطلب صرف د پښتنو کور جوړول دی چه دا پرې جنبې دښمنی تر-
نې پریږدي او د تخریب په ځای تعمیر ته یې فکر شي، بلکه ورځې د سودم د باریکاب
ن خوشحال خان زما لیدله راغی او ماته یې ووې چه لاټ صاحب وایي چه دا ده څه
شروع کړې؟ ده ماورته ووې چه زما مطلب د حکومت مخالفت نه دی زه خو د پښتنو
ح کول غواړم چه د دوی دا بد رسمونه، رواجونه، پرې، جنبې لیری شي او که چرې
وان او سکهان لګیا دي پخپل قوم کښې مینه او محبت او ورورولی پیدا کوی نو په
کښې څه ګناه ده چه پښتون هم خپله اصلاح وکړي. دا ستاسو رعیت نه دی څه؟ نو
ځال خان راته ووې چه هغوی وایي چه یو ځل په پښتون کښې اتفاق راغی او ده
ح وشوه نو دی څه ضمانت دی چه هغه دې زمونږ برخلاف استعمال نه شي؟
ورته ووې چه لاټ صاحب ته ووایه چه د قومونو ضمانت په یو بل اعتماد او اعتبار
دوی دې په مونږ اعتبار وکړي. بیا حکومت ما پسې ځواب راولیږلو او راته یې ووې

چه دا ته څه کوې ؟ ما ورته ووې چه زه خوهغه کوم چه دیوښه حکومت کار دی : دا خو
ستاسو کار دی زه یې درله کوم او په تفصیل سره می ټولې خبرې ورته بیان کړې لیکن
هغوی تسلی په دې خبرو چرته کېدله خود دې خبرونه زه په دې نتیجه ورسید
چه دحکومت نیت دې تحریک ته ښه نه دی .

مرغز کښې جلسه او یوه قامی پریکړه :

مونږ خو چه به یو ځل دوره شروع کړه نو په ټولو ضلعو کښې به مو پوښان دور
او چه د صوبې دیو سر نه به مو دوره شروع کړه نو دبل سره پورې به مو کړله لیکن چه په کو
علاقو کښې به ښه دکار خلک پیدا شو نو هغه علاقه کښې به تحریک ترقی وکړه نو زمونږ
په یوسفزو کښې ډېره ترقی کړې وه او په یوسفزو کښې خصوصاً په صوابۍ تحصیل کښې
یو کلی نه ؤ چه په هغه کښې به زمونږ جرګه نه وه یا به خدائی خدمتګار نه وو. په یوسف
زمونږ سالار منیر خان دمانیرۍ او جرنیل د مرغز خلیل الرحمان ؤ او بیا د مرغز کلی
خدمتګار ډېر دکار خلک وو او دوی به ګلیاو و نخپله علاقه کښې په یې کارکولو زمونږ
خدمتګارو کښې دا یولوی صفت وو چه څوک به خدائی خدمتګار شو او یا به جرګه کښې
نو هغوی به د شپې او د ورځې نخپله علاقه کښې کار کولو کو ده به نه کښېناستل په ما
کښې دوی په ما پسې راغلل چه مونږ خپله علاقه کښې ډېر کار کړې دی او ډېر خلک
سره ملګری شوي دي ، نو مونږ غواړو چه دا خلک ټول راجمع کړو او په مرغز کښې
وکړو او دا د خدائی خدمتګارۍ اوله جلسه وه او میا احمد شاه صاحب او زمونږ
عبدالغفور چه په خوش اوازۍ به یې نظم وې او د ماستر عبدالکریم صاحب
ؤ ، دوی سره د باور دې یو خو خدائی خدمتګار لاړو او د مرغز په جلسه کښې

شو. دتولی علاقی خلک داجمع شوي وو میا صاحب پکښی تقریر وکړو او نورو خلکو هم تقریرونه او ښکلی ښکلی نظمونه وویل، ماچه وکتل نو حیران شوم چه زمونږ دپښتنو په شاعرانو کښی دقومی جذبی داتحریک څنګه راپیدا شو؟ خکه چه ددوی په نظمونو به قوم کښی ډیرجوش او طاقت پیداکیدلو او دا دومره لوبه تبدیلی پکښی څنګه داغله؟
محمدعمرخان دمانیری پکښی دموجوده او دپخوانی زمانی حاکمانو بادشاهانو فرق خلکو ته په ډیره ښه طریقه بیان کړو چه پخوانی حاکمان او بادشاهان چه به په دوره داغلل نو هغوی به خلکو له ددوی ګانی، انعامونه، اکرامونه ورکول او دموجوده زمانی حاکمان چه په دورو راشی نو هغه انعام اکرام خو پریږده هرڅه دمظلوم رعیت نه خوری. نودا تقریر خلکو ډیر خوښ کړو زه ددغه جلسی صدروم اخری تقریر زما و زه پاڅیدم او تقریر موشروع کړو ما خلکو ته ووي چه زه تقریرنه کوم تاسو ته یو تجویز پیش کوم تقریرونه خو ډیرو شو خو داخبره زما یاده ولری چه په دنیا کښی کوم قومونه چه خبری لږ ی کوی او عمل ډیر نو هغه قامونه همیشه خپل منزل ته رسیدلی دي، زه تقریرنه کوم زما په تجویز غور وکړی. په دی پښتنو باندی ددی رسم ورواج ډیر بوجونه دي او زمونږ دتحریک یو داغرض هم دی چه په دوی باندی دا بوجونه کم شی خوزه یو بوجه هسی نه داجسی په پښتنو باندی یو بل بوج شی نوزه دا تجویز ستاسو په خدمت کښی پیش کوم چه په کوم کلی کښی زمونږ جلسه وی په هغه کښی به خلک نه چای څکی او نه ددوی خوری او نه به څوک پاتی کیږی او نه به څوک شپه کوی. خلک به خپلو کلو ته ځی او که څوک خپلو کلو ته رسیدی ی نه شی نو په یو کلی به هم ډیر کسان نه ورځی او که هغه کلی کښی چه ددوی شپه شی نو په یو خدایی خدمتګار به هم نه ډیره کیږی

اوچه په هغه کلي کښې ځومره خدايي خدمتګار وي هغوی به وروله خپله خپله ډوډۍ

راوړي. دوی به يې په شريکه خوري او ځوک به زياتي تکليف نه کوي، اوکه دچايو وخت

وي نوچه د دوو پيالو نه زياته چای ونه څښلی دا تجويز په اتفاق سره پاس شو او جلسه

ختمه شوه. د مرغز مشران ماله راغلل، هغوی ماته د ډوډۍ ذکر وکړه، ما ورته ووی

چه دا تکليف دی، د مرغز ډېر ښه خلک دي که خانان دي که غريبانان دي که کسبګر

دی هغوی کښې ډېر اتفاق او جذبه ده. هغوی راته ووې چه موږ ته خو هيڅ تکليف

نشته. زموږ د ټول کلي خلکو د جلسې د خلکو د پاره چاغوړي، چاچرګ اوچا اوړه

راوړي دي. ما ورته ووې چه ستاسو خو اتفاق دی او تکليف در ته نشته خو يو کلي دی

چه هلته ستاسو په شان اتفاق نشته که موږ هلته جلسه وکړو بيا به هغوی ته څومره

تکليف وي؟ او تاسو که اوس دا ډوډۍ وکړه دا به رسم شي. پښتانه خو داسې قوم

دی که يو کلي څه وکړي نو بل کلي د هغوی د سيالۍ نه ضرور کوي، دوی زما هغه خبره

ومنله. ما ذکر وکړ چه جلسه ختمه شوه په مرغز کښې زموږ ماما ګان وو. زموږ نيا ددې

کلي وه. هغوی راته ووې چه موږ خو تا له ډوډۍ پخه کړې ده او موږ سره به شپه کوې

ما ورته ووې، چه تاسو په جلسه کښې نه وی څه؟ په جلسه کښې خو دا تجويز پاس شو چه د جلسې په کلي کښې به مېلمانه

نه شپه کوي او نه به ډوډۍ خوري او دا خو ډېر بدکار دی چه سړی وايي يو څه او کوي بل څه. هغوی مې په ډېره

خوار و رضا کړل او زه بام خيلو ته لاړم او د غلبه مې باچا صاحب سره شپه وکړه چه هغه زمانه و علاج خيستي وو

چه دې علاقې له راشي نو شپه به ما سره کوي.

## اتمانزو کښې لويه جلسه او مشاعره:

موږ خو چه تر او سه پورې کومې جلسې کولې نو د ضلع او تحصيل په سطح وې نو

اراده وکړه چه اوس به مونږ د ټولی صوبي په سطح باندی یوه لویه جلسه وکړو خکه ماچه کتل د خدایي خدمتګارو دی تحریک په پښتنو کښې یوه نوی جذبه پیدا کړی وه. نو د دې د پاره ما دا مناسب وکتل چه اول باید د جلسی انتظام وکړو. د سرحد ټولو پښتنو له مود شرکت دعوت ورکړو او دا جلسه موږ په شلم او یو ویشتم اپریل ۱۹۳۰ع په اتمانزو کښې مقرر کړه او دیوی مشاعرې بندوبست موهم وکړو او د دې مشاعرې طرح داوه:

«جنګ د آزادۍ له هیشه ځلمي وتلي دي.»

چه د جلسی اعلان وشو نو زمونږ د جلسی د اعلان سره حکومت ډیر په فکر او تشویش کښې پریوتو او د اتمانزو په خانانو پیسې حکمونه جاری شو، حکومت غوښتل چه دا جلسه بخه چل بنده شي چه مونږ په دی بد نام نه شو او د کلی خانان او خلک د دی خه مخالفت وکړي. او مونږ له ځها نه په لاس راشي. لیکن حکومت په دی مکراو فریب کښې کامیاب نه شو ځکه چه زمونږ د کلي خانان خو په خدایي خدمتګارۍ کښې شریک شوی وو صرف برني محمد عمر خان زمونږ په خدایي خدمتګاری کښې شریک نه و نوره کورنۍ یې ټول خدایي خدمتګار وو. حکومت په بعضی سینډونو بلونه هم خلکو ته وران کړل خو په دی کښې کامیاب نه شو او په زرګونو نر او ښځې په جلسه کښې شریک شول جلسه ډیره کامیابه وشوه او بیا خاص د خدایي خدمتګارو پرېډ جلوس او سلامی په خلکو ډیر اثر وکړو. د پیرنګي خو د مخکښې نه اراده نه وه چه مونږ دی کار ته پریږدي خو د خدای فضل وچه د دی درې نیمې میاشتې مونږ کار وکړو. مونږ چه د کانګرس د جلسی نه راغلو نو په جنوری ۱۹۳۰ع کښې مو کار شروع کړو او په اپریل کښې پیرنګیانو ګرفتار کړم. دومره وشوه چه زمونږ اواز د پښتنو غوږ و ته ورسېد و په ۲۲ اپریل

ایله دجلسې میلمانه رخصت شول دبرتهکال ارباب جمعه خان چه تحه رخت رخصتېدو

نو، چونکه دی زما ډېر مهربان و ماورته ووې چه ستا خو ډېر زامن دي دخدای فضل

دی نو دا یو ارباب عبدالغفور یکښې ماله دخدای خدمتکارۍ دپاره راکړه نو ده وې

چه ما په نامه دخدا، ای دربېلی دی او دې جلسې له د پېښور نه علی ګل خان. لعل باچا

او دکانګرس نور ډېر کارکنان راغلی وو چه دوی دجلسې نه رخصتېدل نوما ته یې ویل

چه مونږ سباله سول نافرمانی کوو او په پېښور کښې به مالګه جوړوو ته هم دغلته زمونږ

تماشې له راشه ګوره مونږ خو خدای خدمتکار نه یو نا سو سره په دی جلسه کښې

شریک شوي یو که ته کانګرس کښې نه یې نو تماشې له خو راشه!

---

فیرنګي د هغو کسانو او د عوامو په خوړلو د جنګول سندیانه وکړه چې مالګه

ټیکس او لګوي شو د هندوستان عوامو د اټیکس ظالمانه کردار ګڼل

د عوامو دا نظریه وه چې هر څوک په دې خیز دوی لګښ لجه په اثر ...

ی – هغوی ۱ ع ۲ ع ووړ اوبه ۳ په د آشیاء د ټیکس بلکول هیڅ څوک از نشته

سمندر په کناره په عوامو د او بوچه مالګه جوړول بوشن حکومت لپاره مقرر کړه

د ټیکس د اداسیګي نه بغیر په مالګه څوک نشی خرید کولی ۷ نه مالګه

بغیر د ټیکس د اداسیګي نه لګښتوي شوه د کانګرس حکومت کړه

سیاسي او اقتصادي جنګ جوړ - او عوامو دا جنګ فتح کړه نو د

# ګجرات جېل او کانګرس سره تړون

زما ګرفتاري ۱۹۳۰ء ګجرات جېل. د قصه خاني واقعه، د پېرنګي جبر

او نشا د او پښتانه (اتمانزو، پړانګ، کوجړه ګړهي، تنګي، شېر-

ګړه، لوندخوړ، مېنې، رستم، کوهاټ، بنوں، آزاد-

قبایل، حبیب نور، د اپرېدو حمله

د اېپي فقیر صاحب)

کانګرس او موږ، د پټېل کمېټۍ رپورټ

د ګجرات جېل ملګري

## ګرفتاري سنه ۱۹۳۰ ع:

زه په ۲۳ - اپریل د دوی د دعوت په سلسله کښې په لاړی کښی پېښور ته روان شوم او چه د ناقې تانې ته ورسېدم نو پولیس والا ولاړ و ولاړ ی یي و درولم او ما ته یي وویې چه مونږ ته ستا د ګرفتارۍ حکم دی، ما ورته وویې چه زما هیڅ عذر نشته خو ما ته زما د ګرفتارۍ وارنټ وښیئ. دوی سره وارنټ نه و خلاړۍ والا ته یي وویې چه لاړی مه روانوه و درېږه! لاړی والا غریب لاړی و درولې وه چه پېښور ته دې کښې د چارسدې نه پولیس والا په لاړۍ کښې را غلل او ما ته یي د ګرفتارۍ وارنټ وښودلو او زه یي ګرفتار کړم او واپس یي چارسدې له راوستم او د چارسدې د حوالات قبلې ته د زنانه وو په حوالات کښې ځانله بند کړم، زمونږ د دې جلسې خرڅ ما کړې و او انتظام تول زمونږ. حاجي صاحب شهنواز خان کړې او ده پښه انتظام یي کړې و. جلسه کښې به یي د خاموش اواز کولو صرف په دې اواز سره دا غریب هم مونږ سره ګرفتار شو. چه زه یي د زنانه وو حوالات ته د ننه کړم نو میا احمد شاه یکښې ناست و بیا یي حاجي شهنواز خان او سرفراز خان او عبدالاکبر خان هم راوستل او حوالات ته یي را دننه کړل. زمونږ د ګرفتارۍ خبر په لږ ساعت کښې په ټوله علاقه کښې خور شو او په زرګونو خلک هلته راجمع شول او راجمع کېدل چه د خدای فضل و، ډاکټر خانصاحب چه زما مشر ورور و را ورسېد، دا ټول خلک خو خدایي خدمتګار نه وو، د دی خلکو اراده وه چه قلي خان چه د غه وخت د چارسدې اسسټنټ کمشنر و وو وژني، خو چه ډاکټر صاحب د دی نه

خبر شو نو خلکو ته یې ووې چه ای ورونو زمونږ دا تحریک خو د عدم تشدد
تحریک دی نو تاسو زمونږ خو خدای سره وعده کړې ده چه تشدد به نه کوو او ډېر کوشش
یې وکړو چه د اکاډونه شي او خلکو له یې ترغیب ورکړو چه خلک خپلو خپلو کلوته لاړ
شي خو خلک ناست وو او که چیرې ډاکټر صاحب نه وای نو لویه خونریزي به شوې
وه چه حکومت بوه شو چه داخلک نه خوریږي، نو دولت هم کافي پولیس وو خو دمردان
نه یې دفوج رساله راوغوښته او زمونږ د حوالات خولی له یې راوستل او لاړې
یې مونږ ته د حوالات په خوله کښې ودروله، ډېر پولیس او رساله تري چاپېره وو
مونږ یې دی لارې کښې ښېنولو او دلاري نه څه رساله وراندې او څه وروستو مردان
ته روان شو، بې زرګونو خلک مونږ ته ولاړو او مونږ په اشارت پوهول چه تشدد
به نه کوئ. چه څه وخت سره ډېر وته ورسېد و د شیخو د ټیپي زرګونه خدائي خدمتګار
د فتح محمد جرنیل په حکم په سړک ولاړ وو سړک یې بند کړی وماد لاري نه دوی
ته ووې چه تشدد مه کوئ او چه په مونږ خفه یې نو وکړ ځئ او خدائي خدمتګارئ له
ترقي ورکړئ هغوی لاره پرېښوده او مونږ مردان ته ورسېد و شپه مو د مردان
په جیل خانه کښې وکړه وختي سحر یې د مردان نه روان کړو. د مردان خلک چه زمونږ
د نیوونه خبر شوی وو نو چه مونږ د جیلخانې نه راووتو بهر په سړکونو ډېر خلک
ولاړ وو بیا یې مونږ د رسالپور چاونۍ ته بوتلو او حوالات کښې بند کړو. د نوښار
هندوان او مسلمانان چه څوک خبر یدل هغه ټول زمونږ د لیدو د پاره رسالپور ته
راغلل او سرکار خپله زمونږ د کرفتارۍ پراپیګنډه په لویه پیمانه وکړه. لږ ساعت پس
غلي خان زمونږ د چارسدې اسسټنټ کمشنر سره د خپلي غلي دلته راورسېد

زمونږ مقدمه ورته پیش شوه. مقدمه دخه وه خو مقدمه هم د سرکار وه او فیصله هم
سرکار کوله ما ته معلومه وه چه مونږ قید وي ما ته خو لي د ضمانت ونه وې خو زما ملګرو ته
یې ډېر ووې چه باچاخان پرېږ دی او تاسو ضمانتونه ورکړئ او چېل کور ته ځئ هغوی
ورته ویل چه اخر ضمانت دخه ورکړو مونږ څه جرم کړی دی. مونږ ټولو د ضمانت
نه انکار وکړو، نو ټول یې په دفعه چالیس (څلویښتمه ماده) کښې ددې دپ کال له
سخت قید کړو. مازیګر یې مونږ ددې ځای نه روان کړو چونکه خلک زمونږ نه خبر
شوی وو. د نوښار په ټیسن ډېر خلک جمع شوي وو. نو حکومت مونږ د ریل د سودی
دپاره د نوښار نه د جاګیری ټیسن له بوتلو ریل زمونږ په انتظار کښې ولاړه، مونږ
یې پکښې کښېنولو او ریل روان شو.

## ګجرات جیل:

سحر وختي ګجرات ته ورسېدو مونږ یې د ریل نه کوز کړو او ګجرات جیلخانې
له یې بوتلو او ور دننه یې کړو، سحر وختي وه چه د جیلخانې دفتر ته ورسېدو دارو غه
صاحب لا ویښ شوی نه و بیدې وه چه مونږ ډېر ساعت دفتر کښې د هغه په انتظار کښې
ناست وو چه هغه راغی نو زمونږ چارج یې د پولیس نه واخیستو، زمونږ توصونه یې په
کتاب کښې ولیکل. مونږ چه څه وخت جیلخانې ته ورننوتو نو ښه رڼا وه تو ر لمر ختلی وو
زمونږ نه مخکښې یو خو سیاسي قیدیان ور ونه راغلي وو، مونږ ته چه خبر شو نو جیلخانې
دروازې سره زمونږ په انتظار کښې ولاړه وو، مونږ ته راته غاړه شو بارک له یې بوتلو
او زمونږ دپاره یې دچایو انتظام وکړو، داجیلخانه د سرحد، پنجاب او دهلي د
هغو سیاسي قیدیانو دپاره وه چه څوک به اې او بي کلاس کښې وو. هره ورځ لیس

انه سیاسي قیدیان راتلل تو له ورځ زمونږ په دې مشغولا تیره شوه ، بله ورځ علي گلخان ، لعل باچا ، لاله پیراخان سره دشپږ و ، انو رضا کارانو هم دپېښور نه د ته دې جېل ته را بدل شول . زمونږ تعداد ورځ په ورځ زیاتېد وخه وخت چه زمونږ تعداد زیات شو نو زمونږ سیاسي ورونو دا تجویز پېش کړو چه اوس زمونږ د یوه کمیټي جوړول په کار دي چه زمونږ د حقوقو حفاظت کوي او د ټولو په اتفاق یوه کمیټي جوړه شوه ، ورسپې د صدارت سوال راغې چه صدر به څوک وي ټولو په اتفاق ووې چه ته زمونږ صدارت قبول کړه ، خو دا خیزونه زما دا تېد انه خوبښ نه دي او مابه دعهدونه اکثر پرهېز کولو نو په دې موقع هم ما دخپل طرف نه معذوري ظاهره کړه او بل څوک یې مقرر کړو . سکرټري هم منتخب شو هره یوه خبره به زمونږ له طرفه ده ورا ندې کوله زمونږ کار په دې اندې بېنه شو یوه ورځ زمونږ جېلخانې ته دپنجاب دجېلخانو جرنیل او زمونږ سپرنټنډنټ راغلل ، دټولونه په سرکښې زما چکي روه نو دټولونه اول یې زما نه شروع وکړه زه دننه په کډې ناست وم دوی راغلل زما دچکي ورکښې وربيل دوی دننه راغلل او زه ورله جنگلې ته ورنه دغلم دا طریقه وه چه اخلاقي قیدیان به جنگلې له ورتلل زه خو سیاسي قیدې وم زما چکي په سرکښې وه او د مولانا ظفر علي خان اخرکښې وه چه د هغه چکي ته ورسیدل نو هغه ورته ووې چه زه د سیاسي قیدیانو متعلق تا سره خبرې کول غواړم لیکن هغه په ترشې سره داجواب ورکړو چه دپنجاب په جېلخانو کښې شل زره قیدیان دي ، زه د هغوی په غم کښې یم ما سره دیو څو کسانو سیاسي قیدیانو د پاره وخت نشته چه تا سره پرې خبرې وکړم . داخبره چه سیاسي قیدیانو ته ورسیده نو چه څه وخت دې د هغوی لیدو له ورغی نو څوک ناست وو ، څوک اوده

شو چاورته پښې وغزولې چه ده د حالت ولیدو نو معاینه یې پرېښوده او د دفتر ته لاړو او په ډېر قصر او غصه د دفتر نه رخصت شو.

## د قصه خانې واقعه:

دلته مانه د پېښور ملګرو وویل چه په ۲۳-اپریل ۱۹۳۰ چه تېرې نیولې تو په دغه شپه د پېښور ښار کښې مونږ تول هم ګرفتار کړو. الله بخش برقي صاحب چه د کانګرس کمیټې سکرټري و په دغه شپه دی په دفتر کښې و پولیس ده پسې کورته تللي و، دی کور نه نو د شپې د ګرفتارۍ نه پاتې شو سحر پولیس دی هم د دفتر کښې ونیولو چه دی څه وخت ګرفتار شو او خلک خبر شو، نو ډېر خلک راغونډ شول، دی یې د پولیسو موټر کښې کښېنول غوښتل خو خلکو نه پرېښودو، نو پولیس پیاده کابلي تانې ته روان کړو او د خلکو جلوس ورپسې شو چه تانې ته رسېدل نو ډېر مخلوق راجمع شوی وو چه دی یې تانې ته ننه کړو، نو دروازه یې بند کړه او خلکو ته یې وویل چه خواره شئ خو خلک نه خورېدل کشمکش زیات شو نو فوج یې راوغوښتو، دا فوج هندوستاني او انګریز افسران وو هغوی ته یې حکم ورکړو چه په دې خلکو ګولۍ وچلوئ خو هغوی انکار وکړو خکه چه هغوی وویل چه دا خو ټول لاس خلک دي نه جنګ کوي نه فساد نو مونږ پرې ګولۍ ولې وچلوو؟ هغې یې لیرې کړل او ګوره فوج یې راوغوښتو هغوی د راتلو سره په خلکو ګولۍ وچلولې او ډېر خلک مړه او زخمیان شول.

## ګجرات جېل کښې:

بله ورځ مونږ تول د سرحد سیاسي قیدیان یو ځای نامست وو چه خبر راغی چه د بنونه د سیاسي قید یانو چالان را روان دی، مونږ وې چه څوک به وي خو خبر شو چه

دفتر ته راورسیدل، مونږ په منځ ورغلو یو سردار رام سنګه او بل حکیم عبدالرحیم
صاحب او دریم سیوک رام وو او څه وخت یې چه هغوی جیلخانې ته راوستله کړل نو
مونږ ورته غاړه وتو، د ملک ټول حال یې راته ووې او ویې ویل چه باوجود د ډیر سخت
ظلم او جبر کار په منه شان سره روان دی. ددې په اوریدلو زه ډیر خوشحاله شوم
ځکه چه ما سره د خپل ځان هیڅ فکر نه و ماسره به د پښتنو د تحریک فکر وو چه دا حکومت
دا باو کړي نه وي. مونږ له به هم د ملک نه خطونه راتلل چه تحریک منه په زور کښې دی او د
خدائي خدمتګارو تعداد د سوونو نه زرګونو ته ورسیدلو او څو مره چه حکومت دې
تحریک د دباو کولو کوشسونه کوي هغومره دا تحریک خوریږي.
د لاهور د محمود علي قصوري صاحب بلار مولانا عبدالقادر صاحب هم د ګجرات
جیل ته راغی، دده ځای نه وو، نو ما خپل ملګري سرفراز خان خپلې چکۍ ته راوستو او
د هغه چکۍ مې مولانا قصوري صاحب ته ورکړه. د غه شان د جمعیة العلماء هند
مولانا کفایت الله صاحب او ناظم مولانا احمد سعید صاحب هم دې جیلخانه کښې وو، ددې
به زه کله کله میلمه کولم. ناظم صاحب ډیره خوند ناکه پیښتې او حلوا پخوله.
مونږ په دې جیلخانه کښې دوه قسمه قیدیان وو یو اې کلاس او بل بي کلاس
مونږ د خوراک وغیره ټول حقوق یو شان وو خو یو دا فرق وچه د اې کلاس قیدیانو ته
به ځملا ستو اجازت وو او ورته به یې ورته نه بندولو او بي کلاس به دننه ځملا ستل او
ور به یې ور لیبې بندولو او بل فرق دا وچه اې کلاس به ځان د یاره د بهر نه
خوراک، څښناک څیز راغوښتې شو او بي کلاس نه شو راغوښتې، دلته صرف
زه او اغا لعل باچا، میا احمد شاه او عبدالاکبر خان به اې کلاس کښې وو، باقي

نورتول بی کلاس کښې وو ، خوورځې پس پې اغا لعل باچا او عبدالاکبرخان د
اې کلاس نه بی کلاس ته کړل ، مونږ به بهر څملاستو او زمونږ د انور ملکری
د ننه څملاستل د پېره کړې وه ، علی کلخان ناجوړه و او د ګړې نه به پرې چپې راتلې
ماته د خبره د پېره بد ه ښکاریده چه مونږ دی بهر یو او حاجی شهنواز خان ، سر فراز
خان ، عبدالاکبرخان ، رام سنګه ، حکیم عبدالرحیم او علی کلخان دی د ننه څملې مونږ
دا خبره خپلی کمیټی ته پیش کړه سپرنټنډنټ سره پې هم پری خبری وکړې ، حکومت ته
ته موهم د پېر درخواستونه لیږلی وو لیکن چا پری غوږ نه اېښودو ، جرنیل د جیلخانو
هم راغلی و او هغه زمونږ نه خفه تلی و هغه هم زمونږ د پاره څه نه کول او حکومت هم
دغه کولو د پاره تیار نه و اخر چه مونږ مایوسه شو او پوه دی خبره پوه شو چه په منت
او درخواستونو څه کېدی نه شی نو مونږ اراده وکړه چه قدم اخیستل په کار دی ، زمونږ
سپرنټنډنټ راجا صاحب وا و په دینتیا راجا و او ډیر شریف سړی و ، مونږ تری وکړ
چه تا سو بیا دا خپل شکایتونه ولیکئ او مالیه پې راکړې چه زه پې جرنیل صاحب له ولیږم
د هغه خبری سره اتفاق وکړو قولی خبری مو بیا ولیکلی او هغه له مو ورکړې هغه هم
پېرې د پېرېښنه رسولې ولیکه لیکن د پېری ورځې تېری شوی څه ځواب رانغی چه په انتظار ستړی شونو
مونږ فیصله وکړه چه اوس قدم اخیستل په کار دی لیکن زمونږ د پنجاب ورونړه خوګ چه په اې کلاس کښې
هغوی به د دی مخالفت کولو او ویل به پې چه جیلخانه کښې ایجی ټیشن په کار نه دی ، د هغوی دا خبره خود رسته وه دلی چه
ته د ایجی ټیشن ضرورت نه و هغوی خو په ارام وو تکلیف که و بی کلاس ته ولومی چه به د
ورو زیاتیده نو د علی کلخان طبیعت هم په ورو ورو خرابیده او خولی به پری هم راتلې اخر
فیصله مو وکړه چه مونږ پری قدم اخلو او که څوک په خوشحالی سره زمونږ په دی ایجی ټیشن کې

شریکیږي نوهم ښه ده اوکه نه کیږي نوهم بي کوري اباد . مونږ له دخپلو بي کلاس ورونړو د پاره ایجي ټیشن شروع کول په کاردي . مونږ ایجي ټیشن شروع کړی او فیصله مو وکړه چه بیګا له به نه بندیږو او که جېلوالا مونږ په زور بند وي نو یوبل له به لاسونه ورکوو . هرکله چه ماښام شو او د ودی مو وخوړه او د بندېدو وخت شو نو مونږ ټول ګینتری ته دلغو تلاشو او په چمن کښې غونډه کښیناستو او لاسونه مو یوبل له ورکړل او جېلوالوته مو ووېل چه مونږ په رضانه بندیږو که په زور ده مو بند دوی نو ستاسو اختیار دی . اکثره اې کلاس والا مونږ ه سره په دی ایجي ټیشن کښې شریک نه شول نور خو پرېږده چه زمونږ دخدایي خدمتګار و صدر صاحب او سکرټري صاحب عبدالاکبرخان او میا احمد شاه هم رانه لیری لیری ګرځېدل او ماته یې ووېل چه تاخو به مونږ ته وې چه جېلخانه کښې ایجي ټیشن ونه کړې او اوس دې پخپله شروع وکړه ماورته وې چه زه ددې برداشت نه شم کولی چه زه دې په ارام یم او زما د کار ورو ملګری دې په تکلیف کښې وي په دې وجه مجبوره یم چه ایجي ټیشن وکړم . جېلوالا فوراً سپرنټنډنټ صاحب له اطلاع ورکړه هغه راغی او په دفتر کښې کښیناستو خبری شروع شوې هغه ووی چه دی کښې زما څه قصور دی . زه خو ستاسو د پاره هرڅه ته تیار یم نو تاسو زما برخلاف ولی دا ایجي ټیشن کوئ ما ورته ووی چه مونږ د اقلام ستا برخلاف اخیستي نه دی . دحکومت برخلاف مو اخیستي او ته په دې خفه کېږه مه اخرفیصله به دې وشوه چه تاسو نن بند شئ او سبا له به زه تار په ذریعه خبرراوغوارم مونږ ورته ووی چه ته زمونږ نه مه خفه کېږه ، مونږ دا فیصله کړې ده چه پخپله خو ښه نه بندیږ ولیکن دا ده چه بندېدو وکښې

به خه جګړه او کشمکش نه کوو د جیلخانې سپاهیان دې مونږ وچټوی او بارک ته دی مونږ رسوي هغه هم په دې راضي شو چه سپاهیانو د بی کلاس قیدیان په دنګه د ولي بارک کښې قید کړل سباله وختي خبر راغي چه په زنانه احاطه کښې دې بند کړي او د بهر ورور پیسې پوډي کوي او د ننه د دوی خوښه ده چه که بهر ځملي او که د ننه. لنډه دا چه د بي کلاس دپاره هم مونږ هغه تول حقوق حاصل کړل کوم چه د اې کلاس دپاره مقرر وو.

## د پیژنګې جبر او د پښتنو عزم:

د اخو د جیلخانې واقعات وو اوس د بهر د حال نه مو خبر دم چه مونږ بې ونیولو نو فوجونه او رسالې اتمانزو له راغلي اول د خدائي خدمتګار و به دفترو د غلل کوره کانو په دفترا او ورګولو او په دفتر کښې چه څومره خدائي خدمتګار وو هغه تول بې بنګته یو یو په پوخ سړک راوغورځول. زمازوی ولی چه هغه وخت د دیار لسو خوار لسو کالو هلک و د خدائي خدمتګارو دفتر کښې و په ده باندې یو کوره ډینګین ګذاره وکړه او خوږ دیسې افسر ورته لاس ونیو هغه ګذار یې په لاس واخیست او دی بې بچ کړو بیا یې د مټ نه ونیو، په پوړ وی بنګته د بالاخانې نه را وغورځولو فوجونه د کلي نه چاپېر شول، تول خدائي خدمتګار یې ګرفتار کړل او رسالې به په لارو او کوڅو کښې ګرځېدې، په هر کور به ور ننوتل توپکي او که بل څیز به یې خوښ شو هغه به یې یوړل چه تول خدائي خدمتګار ګرفتار شول، نو دپټي کمشنر ملا رسي سره د خلکو په مینځ کښې ودرېدلو او په اوچت اواز یې ووې چه د سرو جامو څوک شته ؟ په دې هجوم کښې زمونږ د کلي خان محمد عباس خان هم ولاړه د خپلو توکره الوت دي

اواز وکړې چه راځئ د ده جرګه د غلته نزدې وه په منډه لاړل. په دیگ کښې یې سور
زنګ واچوو چیلې او د نوکرانو جامې یې سرې کړې او وایې غوښتې او اوبه توې بهیدې
چه داغې او د ډپټې کمشنر په مخکښې ودرېد چه دا دې د سرو جامو خلک ډپټې کمشنر
خو دوی ګرفتار کړل خو داداسې اواز و چه پښتنو کښې یې ننګ او غیرت پیدا کړو او پیږنګیانو
چه څومره کوشش وکړو نوسرې جامې یې ورکې نه کړې شوې محمد عباس خان په خدائی
خدمتګارو کښې نه وا او د انجمن نه یې هم استعفا ورکړې وه مونږ نه خفه هم و خو د پښتنو ننګ
او ناموس یې ګټلو. انګریزانو زمونږ د کلي محاصره وکړه. د کلي خلک یې بهر ته نه پرېښودل
او د بهر خلک یې کلي ته نه پرېښودل. بنیادم خو به د فوجیانو په وینا بند شو. ولې څاروو ته
خو دا تکلیف پېښ شو چه هغوی میرو او شوګلو ته وتل. کورونو کښې د ننه دکیاه ختم انتظام
نه وو. کله چه به څاروي د کورونو نه را او وتل، پټو ته به تلل، نوکوډکانو به په اسونو
زغلول چه کله به هغه څاروي په سیند خیته وردا چول نو بیا به یې په توپکو نو ویشتل
او په دې طریقه د ډېرو زمینداردو غریبانانو ډېر څاروي مړه شول. د ښکار بابا
غوټه ی مسا یولوی میدان و دا خلک یې هلته راجمع کړل وهل به یې، تکول به یې
او ورته به یې ویل چه کوټی ولګوئ چه مونږ خدائی خدمتګار نه یو هغوی به ورته
وې چه مونږ خدائی خدمتګار نه یو او حقیقت هم دغه وو دوی خدائی خدمتګار نه
وو خدائی خدمتګار خو ټول ګرفتار شوي وو خو کوټه لګول پښتنو ته شرم ښکاریده
او کوټی یې نه لګولې. دوی بانډی به یې د ښکار بابا ډېرې ته کانې خېجول او
یو لوی څلي یې جوړولو. کله چه یو لوی څلي جوړ شو او پیرنګي خلکو ته وویل چه
ستاسو هغه باچا خان مونږ دې کښې ښخ کړو په دې خلکو کښې یو سړی کوټه

وګڼوله هغه پیرنګي ورته وې چه تاته اجازه ده کور ته ځه! هرکله چه کورته لاړ
نو بنځې یې جامې وینځلې ده ته یې تپوس وکړو چه ته ښخکه راغلې؟ هغه وې زه یې
راپرېښودم هغې ورته وې چه نور نه راپرېږدي نو ته یې ښخکه پرېښودې تا به ګوته
ګولی وی. دا ګوته دې رادی خوا کړه دده په ګوته رنګ لګیدلی و. دې سره
سوبارې په لاس کښې ونو ده ته یې ووې چه واخله بې غیرته په دې سوبارګو
جامې وینځه زه میدان له ورځم سړي دې پرکچه شو او پښیمانه شو او ددې ښځې
په پښو پرېوتو چه ته مه ځه بیا ورځم چه دې راغي نو پیرنګي ورته وې چه ته خو
مې پرېښودې وې ته بیا ولې راغلې ده وې چه ښځه مې کورته پرې نږدي نو زه
اوس جېل ته هم تیار یم او مرګ ته هم تیار یم او نورو خلکو سره کښېناستو. دا مح
پنځلس ورځې وچلیده، پیرنګیانو ډېر څه وکړل خو عامو خلکو هم ورته ګوتی ون
ګولې ښکه چه چا به ګوته وګڼوله نو کلي کښې ده غه ژوند ډېر دشرم و او خلکو ب
ورپورې خندل.

دپرانګ چارسدې محاصره یوویشت ورځې چلیدلې وه، دپرانګ
چارسدې په محاصره کښې ډېر زیات فوج ودوچاپېره به هم ولاړ وو او سواړ
به په لاړو کوڅو کښې هم ګرځیدل چه څوک به د کوره راووتو نو وهلو به یې اذانونه
او دجمعې لمونځونه هم بند شول خدایي خدمتګاري ونیول او قید یې کړل او عام خلک
به یې په تودو شګو برېنډ څملول او دکورونو تالاشې کیدې خو دقام اتفاق د چارس
چه غلي وې هغه یې په غړ بیانانو وویشلي او د میرې خلک به سحرو ختي راغلل
ددوی د میرې فصلونه به یې کود کړل، خاوره کړل، او به کړل. بیا به شپې لږ تي

ول او د شولګو خلکو به ورله ، د شولګړي فصلونه سنبالول . دا محاصره هم ناکامه
چېته شوه . دا محاصره ، وهل ، ټکول خو سخت و ، خو د دې یوه فایده دا وشوه چه
کوم کلي چه انګریزانو محاصره کړل او وي سوزول ، دا په جونیلې سهک پراته
نو چه عام خلکو به دا تشدد او ظلم لیده نو د خلکو په زړونو کښې به د انګریزانو
نفرت او د خدایي خدمتګارو سره همدردي زیاتېده او په دې توګه زمونږ په حق
کې دېره غټه پراپیګنډه وشوه .

د غه شان په ۲۷ می کوجبو ګړهي کښې جلسه وه د مردان نه کپتان مرفی
د پولیس راغې ، دی یو ډېر ظالم پېرنګی و . بلکه چه د کوجرانو سره د مینبو ځرو لو
ره کوم کوتک دي د ده سره به هم هغه شان کوتک واو ډېر بې ترسه و . بې دریغه به
خلک وهل . دا چه څنګه د خلکو به وهلو لاس پورې کړو او په پوره نیغ د خلکو مینځ
ته ننوتو . نو هلته طالبان وو ، هغوی حیران شو ، په دې چه دا یو پېرنګی تش لاس
روان دی او هیڅوک ورته څه نه وايي . خدايي خدمتګار خو چونکه د عدم تشدد پابند وو
د غه طالبانو پېرنګي پسې خپل تبرګي راواخستو او په هغې یې او وهلو ، پېرنګی چه راپرېوتو
وی بنځې چه منګي ور سره وو ، د جلسې خلکو ته یې او به ورکولې ، هغې هغه ډک منګي
پېرنګي په سر را اچولو او هغه مړ شو . چه د هغه د مرګ خبر مردان ته ورسېد نو
لا ) چه د مردان اسسټنټ کمشنر و هغه فوج را وغوښتو خلک د دې نه خبر
ول خو بیا هم خلکو جلسه جاري وساتله د غه وخت باران او سیلۍ راغلل او د دې
وجه د فوج د رسېد و نه مخکښې جلسه خوره شوه کنې نو که فوج په جلسه ورغلی وای
خو مره خونریزي به پکښې شوې وه .

سباله ددې پیرنګي بد اخیستلو د پاره په ۲۸ مي په ټکر فوجونو وړغلل کلی یې
محاصره کړو او په خلکو یې د ډزو ګولۍ و چلولې میشن ګنونه یې هم پکښې استعمال کړل
ډېر ماشومان، زلمي او ښځې، نر، پکښې شهیدان شول. بیا د ملک ملا الله خان خدا
خدمتګار حجره او کورې هم وسېزل او د سالار شمروز خان د پلار ملک امین ګل د پره
یې هم وسیزله. د شیرګړه او جلالا کلو خلک چه خبر شو نو د ټکر د امداد د پاره ډېر
وراغلل نو پیرنګیانو محاصره پوره کړه او مرداڼ ته لاړل. د دې نه پس فوجونه لوند خوړ ته
لاړل او هلته د غلام محمد خان خدایي خدمتګار حجره او کورې وسوزول او د کلي
په عامو خلکو یې ډېر ظلم زیاتي وکړو. کوهاټ کښې هم د غه شان پیرنګیانو په خدایي
خدمتګارو او په عامو خلکو ګولۍ و چلولې او ډېر خلک پکښې شهیدان شول. دلته به
یې خدایي خدمتګار بخوا او بوته عوږ خول او غوږونه به یې ورکول. د بنو په سپین ټنګی
هاتي خېلو کښې د خدایي خدمتګارو جلسه وه، قاضي فضل قادر د سټیج د پاسه ولاړ و
د قرآن شریف تلاوت یې کولو پیرنګي په تمانچه وویشتو او شهید یې کړو خلکو ته یې ووی
چه جلسه خوره کړئ خو خلکو جلسه نه خوروله نو په ټوله جلسه یې ګولۍ و چلولې. ډېر خدایي
خدمتګار پکښې زخمیان او شهیدان شول او څه یې ګرفتار کړل. د مینې تحصیل صوابي
مولانا صاحب په کور پولیس ورغلو او د هغه کورې وسوا و د هغه په کتب خانه یې اور ولګولو
چه هغې کښې ډېر مذهبي کتابونه او قرآن شریفونه د حدیث او فقهې کتابونه وو هغه وسوزیدل
درستم مولانا عبدالحي صاحب په کور ورغلل کتابونه او سامان یې ورته ګډ وډ کړو او
هغه یې ګرفتار کړو. د غور غښتو کښې زمونږ په ټوله صوبه کښې داسې کلی نه و چه هغه کښې
خدایي خدمتګارو او د هغوی د دفترو او هغه ته فوځ ورنه رغلو. هلته د خدایي

...متګارو د غتو دهغوی کورونه، دهغوی مال، حال او دهغوی سرې جامې يې ...نه سوزول او په خلکو يې ظلمونه ونه کړل !

دې ظلمونو پښتانه راولړزول، په زرګونو ظلمو د ملکنو نه تر ډېره اسماعيل ...انه پورې خپلې جامې سرې کړې او د وطن دازادې په ميدان کښې د سورښيان ...ملای ودربدل، د خدايي خدمتګارې تحريک په ازادو قبايلو، باجوړ، مومندو ...يدو، وړکزو، وزيرو، مسودو او بيټنو کښې خور شو. د باجوړ او مومند وخلک د ...ګزو د حاجي صاحب په مشرئ کښې په کړ په کښې د ډېره شول. د دی ميا نشتي جنګ ...شتيه اووړخ په پورې بمونه وربدل. حبيب نور په تحصيل چارسده کښې په کچهرۍ ...وهه نيمې بجې په انګريز اسسټنټ کمشنر تماچه وچلوله خو کارتوس غل شو، پيرنګي ...شو، دی ګرفتار شو، او سباله په پېښور کښې پالمنسی شو. قلي خان پوليټيکل ايجنټ ...ښتل چه خدايي خدمتګار مشران په دې کيس کښې راولې ولې حبيب نور انکار وکړو ...لي خان ته يې ووبل چه زه يخپله اراده د ده په قتل پسې راغلی وم خو کامياب نه شوم ...وکوري دا خلک خان ته مسلمانان هم وايي پښتانه هم وايي او د پيرنګي د پاره ...ناروا او ذليل نه ذليل کار کولو ته تيار دی. زمونږ د خدايي خدمتګارو څه ګناه وه ...ی د پاره موحق غوښتو. د ېرا ايريدای پښتانه راکوز شول. په پېښور ښار يې حمله ... فوجونو سره وجنګيدل مکرپې ګودام يې تالا کړو او اودې پړی ولګولو. وزيرستان ...حملې شروع شوی، او ډېر فوجونه يې خراب کړل، دا جنګونه ډېره موده جاری وو ...خل دو چه د مومندونه راواخله تر ايريديو او وزيرو مسودو پورې ټول قبايلي ... دخپلو رونړو په امداد کښې راپاڅېدل او تر هغې يې د صلح کولو نه انکار وکړو

باچا خان د قوم ده ملک او قوم ده آزادۍ دپاره په خوږو الفاظو او خوږ
زړو پښتو ته ئې ده روب او ده اتفاق تلوه وهلې ده ، او خ
ان تورۍ لوئې قربانۍ ورکړې دي ځکه ده انګریز مکار او فریبي قوم ئې د
هندوستان او پښتونخوا نه وشړل ۳۸۶ د آزادۍ په قلم سپ کښې نوره

تر څو چه باچا خان او ګاندهي جي نه وي راپریښي . راغلی ۱۳

## کانګرس او مونږ :

مونږ دګجرات په جیلخانه کښې وو چه زمونږ یو دوه ملګري ، یو میا جعفر شاه
کاکاخیل ، بل میان عبدالله شاه دقاضي خیلو چارسدې زمونږ ملاقات له راغلل
ملاقات خو بند وو او زما دې نورو ملګرو سره یې ملاقات وشو هغوي وویل چه حکو
زمونږ دټولې صوبې ناکه بندي کړې ده نه څوک دصوبې نه بهر تلی شي او نه څوک دبه
صوبې ته راتلی شي او په خلکو یې ډیر زور او ظلم شروع کړې دی کوشش دا دی چ
زمونږ تحریک ختم کړي ، مونږ په اباسین راپورې د توځکه چه کو دوونه تول سر
نیولي دي او تا سو له راغلو چه مونږ څه وکړو په مونږ داسې ناروا ظلمونه کیږي
دنیا کښې په چا نه دی شوي خو دنیا زمونږ دحال نه خبره نه شوه . زمونږ دملګ
ملاقات وشو نو راغلل ما ته یې دا ټول حال ووې . مونږ خو په حلاقت کښې وو
په صوبه کښې مسلم لیګ نه و مونږ خو د پنجاب سره په خلافت کښې پاتې شوي وو او
دخلافت ډیر ورونه په مسلم لیګ کښې هم وو ، مونږ دوی ته دا پیغام ورکړه چه تا
هندوستان کښې د مسلم لیګ مشرانو له ورشئ او ورته ووایئ چه پېرنګیانو په مونږ
ناروا ظلمونه شروع کړي دي او زمونږ صوبه یې بالکل محاصره کړې ده . تاسو زمونږ
ورونه یئ ، مونږ سره صرف دومره امداد وکړئ چه دنیا زمونږ دحال نه خبر شي
زمونږ تحریک خدایي خدمتګار خو اصلاحي تحریک دی . مونږ پرته دا هم ووې
ته لاړ شئ ، دهلي ته لاړ شئ ، شملې ته لاړ شئ ، په مسلمانانو ورکړئ او دخپل حال نه
کړئ . دوی لاړل او څه موده پس چه راغلل او مونږ یې خبر کړو چه مونږ دمسلم

په تولو لیبدرانو وکړ څېدو هغوی خوزمونږ مل د ته تیار نه دي او تیار د حکه نه دي چه هغه خو یو جماعت دی چه پیرنګیانو دهندو د مقابلی د پاره جوړ کړی دی او زمونږ جنګ خو پیرنګی سره دی نو هغوی به زمونږ څنګه مل د وکړي، نو مونږ ورته ووی چه بیالاړ شئ، هندوستان کښی نور د جماعتونو سره ووینئ او خپل حال ورته ووایئ، دوی لاړل او چه څه موده پس راغلل نو مونږ ته یې ووې چه مونږ خو ډېر وکړ څېدو، خو بغیر د کانګرس نه زمونږ سره امداد ته چا غاړه کښېنښوده، د کانګرس لیډرانو مونږ نه تپوس وکړو چه ستاسو پیرنګی سره جنګ په څه دی؟ مونږ ورته ووې چه د ملک په ازادئ وې د جنګ طریقه مو څه ده؟ مونږ وې عدم تشدد، دوی ووی چه د غه جد وجهد او اصول خو زمونږ هم دی. تاسو هم غلامان یئ مونږ هم غلامان یو، ستاسو هم انګریز دښمن دی، زمونږ هم دی. تاسو هم ازادی غواړئ، مونږ هم. که تاسو مونږ سره ملګری کیږئ نو مونږ ستاسو مل د ته تیار یو، نو د دوی د دې بیان نه پس مونږ دوی ته ووې چه واپس خپلی علاقی ته لاړ شئ او خپلی د صوبی جرګی سره داخبره وکړئ هغوی چه څه فیصله وکړي نو مونږ ته منظوره ده، دوی لاړل او د صوبې جرګی داخبره منظوره کړه چه کانګرس سره ملګری کیږو. مونږ خو نن په دریاب کښی لاهو یو او غرقیږو، څوک چه لاس راکوی ورکوو یې - د دی نه پس جرګی د کانګرس سره خپل تړون وکړو او د کانګرس کمیټی سمدستی په مرکزی اسمبلی کښی سپیکر وتل بهایي پټیل دیو وفد په شمالی صوبه سرحد ته د تحقیقاتو د پاره راولیږه خو پیرنګیانو په اټک بند کړل نو هغوی پېښور کښی کښېناستل او تحقیقات یې شروع کړل، زمونږ د پنجاب مسلمانان وروڼه زمونږ

نه کیله کوي چه دوی کانګرس سره شو او کانګرس د هند د ټولو جماعت دی او لا خو زه
دا خبره کوم چه کانګرس د هند د ټولو جماعت نه دی دا د ټول هندوستان د ټولو خلکو
شریک جماعت دی. جناح صاحب خو هم په دې کانګرس کښې و. او بله دا چه مونږ
کانګرس سره ځنګه شو که چیرې دوی زمونږ امداد کړې وای نو مونږ کانګرس
څه کوو؟ حقیقت دا دی چه مونږ خو دوی کانګرس سره ملګری کړي یو مونږ پښتانه
خوسیلاب په مخه کړي وو. دوی له دروغ چه تاسو زمونږ مسلمانان وردنه یې
لاس دا کړي دوی لاس دانه کړو کانګرس وي زه د دکوم مونږ له یې لاس دا کړو
زه د دنیا ټولو مسلمانانو ته وایم چه اوس تاسو انصاف وکړئ چه دوی کرم دي که مونږ؟
څه وروستو پس حاجی عبد الغفار خان، عبید الله خان او سلطان خان زمونږ ملاقات
له دا اغلل او د ملک ټول حالات یې دا ته بیان کړل او دا ته یې وویل چه پښتنو کښې داسې
یوه جذبه دا وپیښه شوې ده چه بیان یې درته کولی نه شو، څومره سختي چه پرېنګیان
کوي هغه هومره خلکو کښې جوش او همت زیاتیږي تاسو غم او فکر مه کوئ دا خدای
تحریک دی او خدای ورله د غیبو نه امداد ورکوي. د دې په اوریدو مونږ ډیر خوشحاله
شو او ملاقات ختم شو. د ختمیدو نه پس می عبید الله خان ته د پښتنو په نامه یو پیغام
ورکړو چه: "د ای پښتنو وروڼو! چه ونه یریږئ او مایوسه نه شئ، دا د خدای د
طرف نه په مونږ یو ازمایښت او امتحان دی، بیدار شئ او د خدای د مخلوق خدمت
ته ملا وتړئ". هر کله چه دا پیغام په اخباراتو کښې شایع شو نو په خلکو یې ډیر ښه
اثر وشو او حکومت د جیل سپرنټنډنټ ته حکم ولیږه چه د ده ملاقات بند کړه چه دا
سره د بهر سره اینده د پاره ونه وینی. مونږ سره په جیلخانه کښې د پنجاب او د ...

لوی لوی لیډران وو ، دغوی لیډ وله به خلک داتلل او زمونږ حالات بدبي اخبارو
کښې شایع کول مونږ سره په دې کارکښې چه څومره امداد دې لیډرانو کړې دې زه
په ټول عمر دغوی مشکوریم . دوی په جیلخانه کښې دننه او بهر زمونږ هرقسم
امداد ته تیار وو . ددوی په خپلو کښې څه ناڅه اختلافات وو خو مونږ سره د ټولو ډېر ښه
تعلقات وو . دلته سیاسی قیدیان که مسلمانان وو ، که هندوان وو ، که سیکهان وو
لکه د سکهانو خپلو ورونو زمونږ خدمت او امداد ته تیار وو او هندوان خو زمونږ امداد
او خدمت ته د مسلمانانو نه هم زیات تیار وو . دلته زمونږ یو پښتون جمعدار وچه ډېر ښه
د جیلخانې ټول اختیار د هغه وُ ، هغه ډېر ښه سړې و مونږ سره یې ډېره همدردي
وه ، زمونږ هر کار چه هغې کښې به خطره هم وه خودی به ورته تیار وو ما به ډېر منع
کولو چه ته خو سرکاری نوکرې داسې کار مه کوه چه سباله درته نقصان ورسېږي .

## پټیل کمیټی رپورټ :

پټیل کمیټی خپل کار پوره کړو او خپل رپورټ یې شایع کړو ، د شایع کېدو سره
هغه حکومت ضبط کړو لیکن دا رپورټ څه ناڅه کانګرس یورپ او امریکې ته ورسولو
د دې شایع کېدو سره حکومت خپله غلطی محسوسه کړه او مونږ یې جیلخانې له یو وفد را
ولیږلو او مونږ ته یې ووی چه تاسو مونږ سره جوړه وکړئ د ۱۹۱۹ع کال دیفارمز او س
درا ورکوو او د مخکښې د پاره تاسو سره دا وعده کوو چه څه هندوستان له ورکوو
هغه نه به زیات تاسو له ورکړو کانګرس پرېږدئ ، مونږ سره جوړه وکړئ مونږ را غلو
د جیلخانې ټول سیاسی قیدیان ورونه مو راغونډ کړل او دوی سره مو په دې مسئلې
باندې مشوره وکړه . د بعضې خلکو داخیال وچه مونږ له د ډپلومیسی په کار ده ما ورته

ووی چه د پلومیسی خومنافقت دی اوزه خومنافق نه یم، او مونږ د حکومت دا خبره منظوره نه کړه. په جیلخانه کښې څه ورځې پسې میا احمد شاه سره دا خیال پیدا شو چه مونږ د حکومت بالکل بې ګناه قید کړي یو او په مونږ هیڅ قسم قانوني ثبوت نشته نو په دې وجه مونږ له ګرانی کول په کار دی. دی ته یې عبدالاکبرخان، سرفرازخان او حاجی شهنوازخان هم تیار کړي وو، میا صاحب دی ته فکر نه کولو چه دا خو سرحدی قانون دی، دی کښې دوه خبرې دي چه جیلخانې ته ځي او که په ضمانت کور ته ځي؟ نو ده ما ته د ګرانی خبره وکړه ما ورسره په دی کښې اتفاق ونه کړو ځکه چه دا کار زمونږ د اصولو نه خلاف وه خو دا می ورته ووې چه که چیرې تاسو ګرانی کول غواړئ نو وکړئ خو زه یې نه کوم نو میا صاحب ووې چه ته یې ولې نه کوې نو ما ورته ووې چه دا زمونږ اصول نه دي نو را ته یې ووې چه ته یې ولې نه کښې او په دی را سره بحث شروع کړو ما ورته ووې چه ته خو لږ پوهه د دنیا ته ګوره چه زمونږ په دې قوم څومره لوبې او تشدد د پیرنګیانو وکړو او زه دلته په مزه په جیلخانه کښې ناست یم، خودم، څکم، نو زه صرف دا قید نه شم تېرولی؟ زما د هرې خبرې او کمزورۍ اثر زما په قوم پریوزي او زما یو ټی کمزوری هم قوم ته د نقصان رسوي په دې وجه زه معذور او مجبور یم بله دا چه زمونږ دا تحریک د عدم تشدد او عدم تعاون تحریک دی. زما د دې خبرو په هغوی هم اثر وشو او د ګرانی خیال یې پرېښود.

## د ګجرات جیل ملګری:

په جیلخانه کښې زمونږ شپې ورځې ډېرې ښې تېرېدې ولې چه دلته

هر مذاق خلک وو، لوی لوی عالمان وو او لوی لوی سیاستدانان وو، او بله
اچه د هر مذاق کتابونه هم وو، ماخوخپل ټول وخت تقسیم کړی و، د خپل وخت
یه حصه می د مذهبی کتابونو مطالعی او درس له ورکړی وه او د لویو لویو خلکو
رع می تبادله خیالات کول. ما خپل ټول ژوند کښی د کتابونو دومره مطالعه
وه کړی لکه چه دلته می یو کال کښی وکړله. بله مفیده خبره دلته دا وه چه مونږ
دوهمه، دریمه ورځ ټول غونډېدوا او په مختلفو مضمونو به بحثونه او تقریرونه
ېدل او کله ناکله به د بعضی ورونو په بعضو خاصو مضمونو باندې زمونږ د پوهولو
وره عالمانه تقریرونه کېدل او ډاکټر انصاری صاحب خو د ملکی او انتظامی
لوماتو حاصلولو د پاره زمونږ ه یو پارلیمنټ قایم کړی وچه په هغی کښی به وقتاً
قتاً اجلاسونه کېدل او زمونږ د پوهولو او تربیت د پاره د پارلیمنټ په طریقه
ملکی او قومی واقعاتو باندی تقریرونه کېدل. لنډه دا چه دې قید ما ته
برخه وښودل او مونږ ډېر څه زده کړل.

مادلته ډېر کوشش وکړو چه دلته د قرآن او د ګیتا درس شروع شی
چه په هندوستان کښی که مونږ مسلمانان یو او که هندوان یو او که سکهان
که عیسایان یو مونږ دیوبل د مذهب نه خبر نه یو او نه زمونږ د خبرولو چا
شش کړی دی بلکه په مونږ کښی خود غرضو خلکو مذهبی تعصب او نفرت پیدا
دی، مذهبونه چه دنیا ته خدای رالېږلی دی دا ټول د خدای مذهبونه
داد تعصب او نفرت د پاره نه دي بلکه د مینی او محبت د پاره دي. زه
ي کامیاب شوم او درس مو شروع کړو.

پنډت جګت رام چه د غدر پارټۍ کښې شل کاله قيد شوی و او د تو
او بونه يې د غوروځوکښې رابدل شوي د ډېر قوم پرست او ښه عالم او ښه سړی و
د ګيتا درس به هغه ورکولو او ما به د قرآن ترجمه کوله. ډېر خلک به دې درس
کښې شريکيدل او چه د دې تعليم په حقيقت به پوه شول. نوجوان به شول چ
خدای مونږ له څه تعليم راکوي او دا مونږ په کومه لاره روان يو، او هغه
مذهب په نوم تعصب او نفرت چه پيدا شوی و تر ډېره حده دهغې اصلا
وشوه او د يو بل د مذهبي اصولونه خبر شو، زما يو مهربان و دهغه نوم لالا
لعل و او يو لوی وکيل ؤ او د ډېر ښه سړی و ماته به يې دانګريزي کتابونه او رول
ماترې ډېره فايده واخيستله. بل رای زاده هنسراج وچه د جالندهر
ډېر مهربانه وچه کله به يې ملاقات راتلو نو مونږ ته به يې ډېرې غوړې زير
راوړلې او دهغې سره د مطالعې د پاره قسما قسم کتابونه يې هم راوړل. حاجي شم
خان به سحر وختي مونږ له چای تياره کړې وه. د دوی د دغې يې هم خلاص کړ
وو ډېر ښه منتظم سړی و او د هر قسم خبرونه به يې هم راله راوړل چه جيلخانې ک
چه به څه وشو يا به د چا ملاقاتي راغلی و نو دی به ترې خبر و او د هر چا ملاقا
سره به يې اول ملاقات کړی ؤ جيلوالا د ده د دې خبرې نه ډېر تنګ و او د
به يې منع کولو خو دی يې د ديو دی نه منع نه کړی شو دی ډېر خدمتي او ښ
سړی و ليکن په يوه معمولي خبره ور سره احمدشاه مياجنګ وکړو. جنګ يې حاج
صاحب سره وکړو او چای څکل يې مونږ سره پرېښودل. د ميا صاحب طبيعت
سخت و او جيلخانه هم داسې يو ځای دی چه د سړي طبيعت پکښې تنګ وي

په معمولي خبرو باندې جګړې ته تيار شي . سرفراز او ما سره يې هم جنګ کړې و او په جيلخانه کښې مونږ ته د لوبو اجازت وه او په لوبو کښې به هم کله ناکله ميا- صاحب جګړې کولې ما چه به خپل ځان ته کتل نو په ځان کښې به مې کمې او کمزورئ ليدلې يو نقص را کښې د ډيرو خبرو او ډيرو بحثونو او بل د قهر ډيرولو و ما به دا ډيره محسوسوله او دا فکر به مې کولو چه د دې نه به څنګه خلاص شم ما به کوشش کولو ليکن په مالې داسې قبضه کړې وه چه خلاصيدې ترې نه شوم د دې د اصلاح د پاره ما دا اراده وکړه چه په هفته کښې به يوه ورځ روژه نيسم خو روژه به مې يوازې د خوراک څکاک نه نه وې بلکه د خبرو نه به هم روژه وې او څنګه کمزورې باندې به غور او فکر کوم او د هغې د اصلاح کوشش به کوم نو د سحر لمونځ چه به مې وکړه نو د چلې وړ به مې بند کړه تر ماښام به پورې به چلې کښې ناست وم ، ذکر به مې کولو او چه د ماښام اذان به وشو نو د چلې نه به راووتم او د واړه روژې ( د خوراک او خبرو ) به مې ماتې کړې . د دې روژو ما ته ډيره فايده رسولې وه او څه ناڅه زما د دې بد وعا د تونو اصلاح هم وشوه .

څه موده پس په دې جيلخانه کښې زما په ملا کښې بيا هغه درد چه د ډيرو- غازي خان په جيلخانه کښې پيدا شوې و شروع شو . ډاکټر انصاري صاحب وکتم او يوه نسخه زما د پاره وليکله او د غوښې خوراک يې را باندې بند کړو د دې دوا او پرهيز په وجه زما ګذاره وشوه ليکن قصه داسې وشوه چه هغه پير ګلې سول سرجن چه زمونږ د جيل د هسپتال انچارج و هغه چه به راغې نو هسې به ناست . هر څوک به ډاکټر انصاري صاحب له ورتلل ، ولې چه هغه ډير لوی او لايق ډاکټر و

لیکن هغه پیرنګی داخبره ډېره بده محسوسه کړه او دجیلخانو جرنیل ښتري ولیکل او دهغه ځای داحکم راغی چه بغیر دجیلخانی د ډاکټر نه په نورو خلکو باندې علاج کول بند شو، زما هم شامت راغی ماهم دخپلی بیماری قصه هم هغه سول سرجن ته بیان کړه هغه راته ووې چه ته د انصاری صاحب نسخه نه شی استعمالولی ماورته ووې ته راله یوه نسخه راکړه هغه راله یوه نسخه ولیکله خو په هغې زما څه فاید ونه شوه او مرض می زیات شو. بله ورځ هغه له ورغلم او ورته می ووې چه ډاکټر انصاری صاحب به ماله داسې دارو راکول، چه په هغې به زما فایده کیدله. هغه راله نسخه بدله کړه لیکن په هغې هم زما فایده ونه شوه، ماورته بیا د ډاکټر انصاری صاحب نسخه یاده کړه لیکن هغه راته ووې چه دغه نسخه ته استعمالولی نه شې نو هغه ته دې ووې چه د نن نه پس زه نور علاج نه کوم او نه ستا دارو خورم او نه د ډاکټر انصاری. هغه راته ووې چه ستا صحت زمه وار به څوک وي؟ نو ماورته ووېل چه زه دخپل صحت پخپله ذمه واریم. د دې په اوریدو هغه ډېر په قهر شو او زما نه روان شو، دوه میاشتې زه دکټ نه پاڅیدی نه شوم، اګر ځیدی نه شوم، او دسهاتی بدهم راته ګران و زما وزن نشل پونډه کم شو، ځان می خدای ته وسپاره، نو ورو ورو به جوړیدو شوم اوڅه موده پس دکټ نه پاڅیدم او دملا درد می ډېر کم شو.

راجا صاحب زمونږ سپیرنټنډنټ وچه جیلخانه کښې زمونږ سکهانو ورور نو داشوال اوچت کړو چه مونږ جټکه خورو مونږ له دې دجټکې اجازت راکړې شي راجا صاحب خو ډېر ښه سړی و د زړې زمانې مسلمان وهغه دسکهانو دې خبری منلو ته تیار نه و، هغه سکهانو ته ووې چه دلته جټکه نه کیږي نو بهر دې وجه مونږ

اسوله دجتګی غوښته درکولی نه شو. هغوی ورته ووې چه مونږ له پخپل قیمت چرګ
راکوئ هغه به مونږ دلته جتګه کوو لیکن حکومت دې ته تیار نه شو، په دې وجه
راجا صاحب ته یې هدایت وکړو چه داسی چل وکړه چه جتګه هم بنده شی او حکومت
هم بدنام نه شی. سپرنټنډنټ سید اغا لعل بادشاه دفترته وغوښتو او جتګی
مخالفت دپاره یې تیار کړو او سکهانو ته یې ووې چه په دې خبره ستاسو خیل
سرحد مسلمانان ملګری اعتراض کوی، نو په دی وجه مونږ تاسو ته اجازت درکولی
نشو. سکهانو دا خبره ما ته پیش کړه اوما دسرحد ټول مسلمانان ورونه د دې
فیصلی دپاره راجمع کړل. د بحث په شروع کیدو سره سید اغا لعل باچا او بعضی
مونږ نور و ملګرو د دې خبری مخالفت وکړو، لیکن ما ورته ووې چه بیشکه جتګه
مسلمان دپاره ښه نه ده لیکن دیو سکه دپاره خو ښه ده، بلکه دا چه دا جتګه به هغوی
دری اوکه به مونږ به یې هم خوري؟ که چیرې دا هغوی خوری نو مونږ به د دا څه؟
مونږ ته کوم نقصان دی؟ او به اغا لعل باچا می دا سوال وکړو که چیری یو مسلمان
دا ندی حلاله بندوی نو ته به خفه یې که خوشحاله؟ وې وې چه خفه به یم. نو د غه شان
جتګه بندولو به بل هم خفه کیږی نو کم از کم مونږ خدای خدمتګار وله بل خفه کول
کار نه دي، مونږ بیا خپلو سکهانو ورونو ته ووې چه دجتګې به خوراک مونږ ته
هیڅ اعتراض نشته. تو اغا صاحب ما سره اتفاق وکړو او دا فیصله وشوه چه زمونږ د
طرفه سکهانو ورونو ته اجازت دی ما ورته دا ووې چه حکومت اجازت نه درکوی
ستاسو جوړوي او مونږ او سکهانو کښی نفاق پیدا کوي. هم هغه وشوه، بلکه ورځ
راغی چه حکومت په جیلخانه کښی د ننه چاله دجتګی اجازه نه ورکوی. چه ددی

میاشتی تیری شوی نو حاجی شهنواز خان ته خپل کاروبار ورپه یاد شو او کله نا کله
به یې اواز وکړو چه روان یم نن دی که سبا ضمانت داخلوم . زما خیال و چه دی توق
کوی خو بیا راته معلومه شوه چه دده په ربښتیا د تللو اراده ده، په دغو ورځو کښې د
مهاتما گاندهي او لارډ اروِن په مینځ کښې څه د صلحې خبرې روانې وې ما به تسلي
ورکوله چه که خیر وی نو نن دی که سبا صلح کیږی امید دی چه مونږ ټول به پریږ
لیکن چه څه وخت خبر راغی چه صلح نا کامیابه شوه، نو حاجی صاحب له دا خبر هـ
راغی چه دده کشر ورور اکبر خان گرفتار شو او دری کاله قید شو ما به ورله ډیر
تسلي ورکوله خو په ده یې اثر نه کولو . دده ملاقات له دده تره محمد عظیم خان ا
عمرا خان راغلل او ورته یې وویل چه مور دې ناروغه ده، اکبر ورور دې هم قید
شو او ټول کار او بار او بزنس دې خراب شو او ته خو خدائی خدمتگار نه وې نو
ولې ضمانت نه ورکوې ؟ نو دې خبرو دی ضمانت ورکولو ته تیار کړ او ده سره دا فکر
پیدا شو چه اکبر هم نو دی دومره فکرمند نه و خو چه هغه گرفتار شو نو دده فکر
زیات شو . بله ورځ ورله خط راغی چه مور دې ډیره ناجوړه ده نو دی نور هم پـ
غمجن شو ځکه چه دده د خپلې مور سره ډیره محبت و د ددی په کور کښې یو دی
یې وررور دده بل څوک نه و . ده ووی چه د هغې خدمت او علاج د پاره خو څوک یا
نه شو دوه ورونه زه او دواړه قید شو لنډه دا چه زمانه یې پټ کلی ته یو خط ولیکلو
زما ضمانت داخل کړئ بله ورځ څه گورو چه میر صاحب دده وراره دده ضمانت کړا
له راوړو مونږ خبر شو چه حاجی ضمانت ورکړو، ما او ښلهات شتنتنم صاحب خان له
کړ او ښه موږ وه کړه چه دا کار دستا د شان سره نه ښائیږی او دا به ښه دی چه لږ

نتظار هم وکړي او هغه د مور جوړ ناجوړه خدای ته وسپاره ، ورو ورو حاجي صاحب
ضا شو خو چه خدمت زمونږ ته لاړ و نو اغا لعل باچا او علي کلخان لید لی دی او هغوی
ری پوښتنه کړې ده چه حاجي ربنتیا دې ضمانت داخل کړو ؟ نو هغه ورته زما قصه
کړې ده چه زما خیال د خو هغه وې چه لږ انتظار وکړه او بیه دې وجه می معامله
ی الحال ملتوی کړه هغوی ورته ووې چه د تلو اراده دې شته نو د دې څه فایده چه
ری ورځي تېروې ؟ دهغوی دې خبرو به حاجي صاحب اثر وکړو زما نه پټ لاړو او
نتر کښې یه ضمانت دستخط وکړو زه چه خبر شوم نو دروازې له ورغلم نو ورته می ووې
حاجي ځې خو ځه لیکن ستومانه به شې او بیا به زما دې خبرې پسې ارمان کوې او
ت به تېروې . هغه سترګې تیتې کړې او ماله یې څه ځواب وانه کړو ، زه ترې راغلم
حاجي صاحب کلی ته لاړو ، زه نه پوهېږم چه علي کلخان او اغا سید لعل باچا هغه له یه
خیال دا مشورا ورکړې وه ولې چه یه هغو ورځو کښې د دوی خدایي خدمتګار و سره
وه نه لګېده ولې چه دوی به کانګرس کښې وو حاجي صاحب چه کلي ته رسېد لی
ی او د ملک حالت او د خلکو جذبې یې لید لې ده خیل یه دې ترې وېزاره دو
تې یې خط ولیکه چه زه تاسره ملاقات کول غواړم ما او سره د ملاقات کولو نه انکار
ځ چه ډېر تنګ شوی دی نو خپلو خپلوانو ورته ویلې دې چه ضمانت واپس کړه او
مبلخانې له لاړ شه . لیکن هغه به ورله ځواب ورکولو چه ما لویه ګناه کړې ده د دې
ه قید کافي نه دی اخر دا چه یوه ورځ یې ځان یخپله یه ټوپک وویشتو او د خیل
ند خاتمه یې وکړه چه زه د حاجي صاحب د مرګ نه خبر شوم نو ډېر افسوس مې وکړو
ماو لی ده له د ملاقات اجازت ونه کړو او د ملاقات نه می انکار وکړو ، حاجي صاحب څنګه ...

خان د پېر د کار سړي و، حاجي خو مړ شو لیکن د هغه مرګ زمونږ تحریک ته ډېر
فایده ور رسوله او د هغه د مرګ نه پس بیا چا د معافي غوښتو او یا ضمانت جوړ
و نه کړي شو. چه څه وخت د حاجي د مرګ خبر د ګجرات جیلخانې ته راغی نو ټول خلک
ډېر غمجن شول ولې چه حاجي زمونږ په جیلخانه کښې ډېر زیات پسر دلعزیز و. مو
چه په جیلخانه کښې خو مره سیاسي قید یان وو ټول راجمع شو او د هغه د مغفرت د پا
مو د الله تعالی نه دعا وغوښته.

مونږ چه څه وخت د ګجرات جیلخانې ته لاړو نو دا جیلخانه لا تیاره نه وه
وخت چه جیلخانه تیاره شوه نو زمونږ بارګونه او چکۍ د هر طرف نه ازادی وي او
پکښې حکومت د بیلتون د پاره دیوالونه شروع کړل. د شاپه دیوالو نو د چا اعترا
نه و خو د مخ دیوالونه د هیڅ خوښ نه وو. یوه ورځ ماته میا احمد شاه صاحب
چه د مخ دیوال په ځای د او سپنې جنګله ولګی نو ډېره به ښه وي ما ورته وو
دا خو حکومت بغیر د اجې تیش نه په تشه وینا نه کوي نو که دې خو ښه وی ایجی ټیش
به شروع کړو. ده ووې چه ډېره ښه ده د میا صاحب په وینا ره پاڅېدم او د
خبري ذکر می د نورو سیاسي ورونو سره وکړه زمونږ هغو سیاسي ورونو به ز
عزت کولو او ټول زما په وینا تیار وو. څه وخت چه سپرنټنډنټ صاحب خبر
هغه راغی چه تاسو حکومت له یو درخواست ولیکئ او ما له یې راکړئ. مونږ یو د
ولیکه او ټولو خلکو پرې د ستخطونه وکړل او چه څه وخت هغه درخواست میا
ته پېش شو نو هغه پرې د د ستخط کولو نه انکار وکړو هغه سړی ساله راغی چه میا
خو د ستخط نه کوی. ما هغه درخواست د هغه نه واخیست او میا صاحب له می

هپاره یو وه میا صاحب په هغه ولیکل چه زه په جیلخانه کښې د ایجی ټیشن مخالف یم او د هغې دلاندې دستخط وکړو. په دې زه ډېر خفه شوم او ورته مې وویل چه دا تول ایجی ټیشن خو را باندې تا شروع کړې دی او دا څه چه مونږ کوو خو ستا په وینا کوو نو میا صاحب ځواب راکړو چه زما خو ایجی ټیشن خوښ دی خو چه نور خلک یې کوي به دې خبره زه چپ شوم او د میا صاحب د چکی نه راووتم او هغه دد خواست مې پوهتی پوهتی کړو او بل مو ولیکلو او سپرنټنډنټ صاحب له مو ورکړو. څو ورځې پس ځواب راغې چه د دیوال په ځای جنګلې ولګوئ او ولګیدې. څه وخت چه د سیاسي قیدیانو تعداد ډېر زیات شو او د بعضي خلکو مینه او شوق مې صدارت طرف ته ولید نو ما د صدارت نه استعفا وکړه. تول سیاسي ورو نه زما په استعفا خفه وو او دا کوشش یې کولو چه زه استعفا واپس واخلم خو ما انکار وکړو او هغوی له مې دا ځواب ورکړو چه اخر صدارت خو زما ټیکه نه ده نورو خلکو له هم موقع ورکول په کار دی. زما نه پس ظفر علي خان صدر شو. لیکن د هغه ډېر عجیبه صدارت و څه وخت به چه د خلکو کار پېښ شو نو هغه وخت به خلکو وې چه دی زمونږ صدر صاحب دی او چه کار به یې وشو نو بیا به د چا صدر صاحب یاد نه و او بعضي وخت خو به خلکو ورسره داسې رویه وه چه ماله به په غریب رحم راغې. ډېر ځله مې ورته په رموز رموز کښې ووې چه مولانا صاحب د دې صدارت نه استعفا ورکړه لیکن د هغه د صدارت کرسې ډېره خوښه وه او پرې سنبو دو ته یې تیار نه و، د غه وجه وه چه خلکو به یې عزت نه کولو. زمونږ صدارت خو څه دومره لوی څیز نه و او که چیرې لوی هم شي نو دا خو یو قومي خدمت دی، نو چه د قوم په رضا او رغبت وی نو چلیدې شي او که چیرې د قوم د مرضي خلاف پچپل خواهش او

خوښه شی نو بیا یې چلېدل مشکل دی او د فایدی په ځای نقصان او د عزت په ځای بې عزتی شی. د دی د پاره په کار دی چه هر څوک د خپل خواهش په ځای د قوم خواهش قدر او کړی.

د دې جېلخانی د کتو د پاره به د ډېر پېرنګیان افسران راتلل موږ کښې چه به یې د چا سره لږ غوندې خبرې وکړې نو بیا به هغوی په جامو کښې نه ځائېدل او په فخر به یې دا خبری کولی چه دی زما د فلانی وخت اشنا و خو چه د یو قوم بد قسمتی راشی نو هغه سره د عقله نا پوهه شی ګوندی که دې پېرنګیانو څه لږ ډېر ښه سلوک زموږ سره کولی نو موږ به هېچری د دوی بر خلاف شوی نه وای. په جېلخانه کښې اوازه شوه چه وزیر صاحب ایمرسن په دوره راوتلی دی او د دې جېلخانی کتو له راځی. وزیر صاحب راغی خلکو ورته خېلی چلی ښی ښایسته کړی وې وزیر صاحب سره نور پېرنګیان هم وو زما چکی په سر کښې وه زه په خپله کهی ناست وم چه زما چکی ته راورسېد و نو زما خیال و چه دی به ماله د ننه راشی زه به ورته پاڅم او خبری به ور سره وکړم لیکن هغه د ننه رانغی زما د چکی په وره کښې و دریدو سپرنټنډنټ صاحب ماته ووې چه وزیر صاحب وائی چه ته څه وائی؛ ما ورته ووې چه زه هیڅ نه وایم بیا یې راته ووې چه وزیر صاحب تا سره خبری کوی، ما ورته ووې چه زه خبری نه کوم ځکه چه که ده ما سره خبری کولی نو د ننه به راغلی و ځکه کښې خو ور سره اخلاقی قید یان خبرې کوي او زه خو سیاسی قیدی وم. وزیر صاحب یو ساعت ولاړ و بیا روان شو. هغه سره د ګجرات د ېټی کمشنر هم و چه هغه لاړو نو د پټی کمشنر زما چکی ته رانووت زه ورته پاڅېدم زما په پاڅېد و هغه ډېر حیران شو ماته یې ووې

چه تاولي وزیر صاحب سره خبرې ونه کړې او نه ورته پاڅېدې ماورته ووې چه زه خو خدائي خدمتګار یم او د خدای د مخلوق نه نفرت ګناه ګڼم او د خدای خدمت د خدای د مخلوق خدمت دی ته خو هم انګرېزي تا سره خو دادی خبرې کوم زه خو سیاسي قیدی یم ما سره سیاسي سلوک په کار دی هغه ماله رانغی نو زه هم ورنغلم هغه ماته د اخلاقي قیدی په نظر وکتل چه ته راغلې نو دا دی تا ته پاڅېدم. زما په دې خبرو هغه غلط فهمي لیرې شوه کومه چه زما متعلق د ده په زړه کښې پیدا شوې وه.

د راجا صاحب د سیاسي قیدیانو سره د بې رښنه سلوک ځ او حکومت دا نه غوښتل خپلو ماتحتو او پولیس پوړې دا ایرې ورکړې چه د ده د سیاسیانو سره د بې رښنه سلوک دی او سیاسیان په ارام او مزه کښې دي په دې وجه یې راجا صاحب زمونږ نه بدل کړو سیالکوټ له یې ولېږلو او د سیالکوټ سپرنټنډنټ رای صاحب یې راولېږه دا یو د بې رسخت سپرنټنډنټ و او بله دا چه د جېل قانون ورته د خدای قانون ښکاریده خو حکومت پخپل خیال کښې کامیاب نه شو او زمونږ د اتفاق په وجه د هغه غریب نه هر څه خطا شو او خپل د جېل قانون یې ونه چلولی شو رای صاحب د راتلو سره کوم څیزونه چه به ټهیکه دار مونږ له جېل ته د ننه راوړل هغه یې بند کړل چه دا د جېل په قانون کښې نشته. ټهیکه دار به دروازه کښې ناست وي او چه څوک څه اخلی نو د دې ځایه دې وړي نو مونږ چه د دې نه خبر شو نو په اتفاق سره مو په دې فیصله وکړه چه هیڅوک به دروازې له نه ځي. سپرنټنډنټ صاحب د بې خوا بونه راولېږل او چه پوه شو چه څوک د لته نه راځي نو حکم یې وکړو چه ټهیکه دار دې د ننه ځي او څیزونه دې وړي او هغه ټول رعایتونه چه راجا صاحب

موږ ته راکړي وو راى صاحب دهغې په راکولو مجبور شو بله ورځ د سرفراز ملاقات
له دهغه مشر ورور سربلند خان راغې دهغه ملاقات يې په دې وجه نامنظور کړه چه
تاله اردو نه درځي او پښتو ژبه کښې ملاقات بند دی ولې چه سپرنټنډنټ په پښتو
ژبه نه پوهيدو موږ چه خبر شو نو ډېر حيران شو او خفه شو د انقلاب زنده باد
چغې مو وهلې. سباله پريډ د پريډ نه مو انکار وکړو هرکله چه راى صاحب دا
قصه وليده نو په سربلند خان پسې سړى ورولېږل، په تېبين کښې يې بيا موندو
راغې او سرفراز خان سره يې ملاقات وکړو. راى صاحب چه په ډېرو خبرو کښې
شکست وخوړ او ورته معلومه شوه چه تر کومه پورې چه د دوى اتفاق وى نو زه
کامياب ی نه شم نو په موږ کښې د نفاق اچولو کوشش شروع کړو او هندوانو
سره يې اشنايي او تعلقات جوړ کړل او دهغوى په ذهن کښې يې دا واچوله چه
زه خو ستاسو ورور هندو يم او زما نقصان خو د هندوانو نقصان دی نو که چېرې
تاسو زما مدد نه کوئ نو دا خو هندو قوم ته نقصان رسوي د دې په اېکټ کې
اثر په يو څو قيديانو باندې وشو چه هغوى هم موږ سره قيد وو او تر ډېره حده
پورې سپرنټنډنټ په دې کښې کامياب شو چه څه قصه به پېښه شوه نو هغوى
به هندوانو ته وي که چېرې دا مو وکړل نو ستاسو هغه بېچاره هندو ورور ته
به نقصان ورسي دا زهرناک خيالات د پنجاب په هندوانو او مسلمانانو کښې
ډېر زيات دی بله کمزوري مې د پنجاب په ليډرانو کښې دا هم وليده چه څه
وخت يو ځاى شي نو بيا ورونه وي خو چه يو ته خودغرضي پيدا شي نو بيا هندو
هندو شي او مسلمان مسلمان شي. د دې قسم کمزورى چه د کانګرس په خلکو

کېنې وي نو دا نور و به څه حال وي ؟ او دغه وجه ده چه پنجاب کښې د کانګرس
جوړې مزې نه شوې او هندوان مسلمانان ورونه نه شول او سوراج خيستونکي شو.
خو مرا چه مونږ دګجرات په جېلخانه کښې په ارام وو هغه هو مره د سي کلاس
قيد يان د پنجاب په جېلونو کښې بې آرامه وو او څو مره چه مونږ سره ښه سلوک
و ، هغومره د هغوي سره بد سلوک و . حقيقت خو دا و که مونږ سره چېرې ښه
سلوک و نو د حکومت مهرباني نه وه دا لاچا دې وه د راجا صاحب په ځاى
د راى صاحب مقرر ول د حکومت د بد نيتي ترجماني کوي په مونږ کښې د بعضې
خلکو دا خيال و چه زمونږ نور ورونه که پنجاب کښې دي او که سرحد کښې دي يا
په نورو صوبو کښې په تکليف کښې دي نو مونږ له هم دا خپل ارام پريښودل پکار
دي او د پنجاب بعضې ليډرانو له د جېلخانو نه د سي کلاس قيد يانو خطونه را
لېږلي وو چه ستاسو خو زمونږ په تکليف څه پروا نشته ، جېلونو کښې هم په مزه کښې
يئ او بهر هم خو داخل که بهر نه وتو نو بيا به را نه په سټيجونو کښېنئ نه . بعضې خلک
دې فکر هم وو خو بيا هم څه عمل ته تيار نه وو . د کانګرس د جي ذوي د يويږاس
چه مونږ سره په دې جېلخانه کښې و په دې معامله قدم وچت کړو او مونږ
سره يې هم ددې متعلق مشورې شروع کړې. يو ورځ يې زه هم په دې مشوره
کښې شريک کړم اول خو په دې بحث وشو چه د سرحد خلک په دې معامله کښې
شريک کړو او که نه ؟ د بعضې پنجابيانو دا رايه وه چه د سرحد حکومت وحشي حکومت
دى په هغوي زمونږ دا يجي ټېشن څه اثر کېدى نه شي په کار دي چه مونږ يواز
د پنجاب د سياسي قيد يانو د پاره قدم وچت کړو . خو اخر فيصله په دې وشوه

.چه د سرحد د دی مظلومانو وروڼو د پاره هم څه ناڅه کول په کار دي بیایي زمانه تپوس وکړو چه ستاخه رایه ده؟ ما ورته ووې چه تاسو سره زما اتفاق دی خو زه به د سرحد د نورو ملګرو نه تپوس وکړم او څه چه دهغوی رایه وی تاسو ته به یي بیان کړم. په دې جیلخانه کښې مونږ د سرحد یو ولس کسان وو هغوی ته د اقصه وکړه چه د. سی. کلاس د قید یانو په هکله د دی کښې فیصله شوی ده چه دهر قسم دعایتونه په پرېږدو تر هغه وخته پوری چه د. سی کلاس قید یانو سره د ښه سلوک او ښه خوراک منظوری شوی نه وي. د دې د پاره به دهندوستان په ځیاداتو کښې پراپیګنډه شروع کوی او زمونږ د سرحد د پاره خو دایوه نادره موقع ده که مونږ دوی سره شریک شونو زمونږ د قید یانو د پاره به هم په ټول هندوستان کښې پراپیګنډه وشی. د ټولو نه اول عبدالاکبر خان دا خواب راکړو چه زه خودې ته تیار نه یم. علی ګلخان او اغا لعل باچا هم دهغه تائید وکړو او سرفراز خان یکښې صرف دو مره خبره وکړه که تاسو مراعات پرېښودل زه به یې هم پرېږدم. چه زه پوه شوم چه زما ورونه تیار نه دی نو بیا ما دا تجویز پیش کړو چه دا کار د هر چا په مرضی پرېښودل په کار دی خواجه شاه محمد میا صاحب ووې چه هرڅه به په کثرت رائ ی فیصله کوو ما ورته ووې چه د تکلیف فیصلی په کثرت رائ ی کیدی نه شی ځکه چه تکلیف زغلو. ځلک تیاریدی شی. سردار رام سنګه ورته ووې چه دی ته ما او دی پرېږد. د یٔ. علی ګلخان او لعل باچا دا تجویز پیش کړو چه مونږ به تحقیق وکړو که ټول خلک غواړي چه مونږ مراعات پرېږدو نو مونږ به یي هم ترک کړو، په دی اتفاق وشو او د دوی د پاره علی ګلخان مقرر شو. زه پوه شوم ځکه چه تر اخره پوری د دی خط وکتابت نه

خه وته وتل و مونږ په انتظار انتظار کښې رهاشو.

د دې قسم واقعات هیشه زمونږ په کیتو کښې هم پیښیږي. هلته هم چه کوم خلک کمزوري وي او تکلیف ته تیاټنگ نه وي نو دیوه فایده منل تجویز مخالفت به کوي او قوم او ملک ته ډیر زیات نقصان رسوي نو په کار دی چه زمونږ په ذمه واره کښېته کښې د دی قسم کمزوري خلک نه وي. دیو یداس او نورو لیډرانو د کلاس مراعات پرېښودل او د. سي کلاس خوراک ته کښېناستل ما ته به چیل ځان ډیر بد ښکاریده چه زما سره دیو مقصد ملګري یو شان ګذران کوي او زه بل شان. لیکن زما ده ملګرو ډاکټر بیت د فیصلې نه مجبور وم. بعضې لیډران ناجوړه شول خو دیو یداس دخاطره بیتریدي نه شول رای صاحب حیران شو چه داځه چل وشو. په اخبارانو کښې دا ایچي تیشن پرا پیکناه شروع شوه اخر داچه رای صاحب حکومت ته ولیکل چه ما ته اجازت راکړئ چه زه د دی ایچي تیشن سرغنه د دی چیل نه بدل کړم. حکومت اجازه ور کړه او د دوی نه اول پي دیو یداس او ورپسې پي ډاکټر سیف الدین کچلو بدل کړل او یو کس نیم بي نور هم بدل کړل د دوی په بدلیدو نور خلک کمزوري شول او ورو ورو د سپرنټنډنټ په ترغیب سره څینو واپس کلاس ونه واخیستل. اول کښې خو خلک هغوی ته ډیر په قهر شول لیکن ورو ورو هغوی ملګري زیاتیدل. صرف دېرې کسان پاتې شول او نورو کلاس واخستو او دغسې دغه ایچي تیشن ختم شو. سیاسي قید یانو له ښه کار دی چه هر یو قدم پخپل خیال وچتوي او نور څوک مجبور وي نه مجبور کسان چه رو به موسې نود میدان نه بیا تښتي.

بعضې وخت زمونږ سیاسي ورونه په معولي معمولي خبرو باندې ایچي تیشن

شروع کړې. اوخان په یولوی مصیبت کښې واچوي . مونږ چه جیلخانه کښې ووډمونږ

کتونو ته بړي خنځیرونه اچول چه هسې نه څوک دا کتونه د جیلخانې دیوال ته وګوي

او وتښتي ، نوز مونږ ورونو په دې ایجي ټیټین شروع کړه ماورته دپرووې چه

دا خنځیرخو مونږ ته نه اچوي کټ ته یې اچوي خوچا زماخبره ونه منله او مونږ په

یولوی مصیبت کښې اخته شو. زه په جیلخانو کښې په معمولي خبرو ایجي ټیټین نه منم

او په کار دې چه ایجي ټیټین په جیلخانو کښې ونه کړو او که داسې لوبه اهمه

اوسیاسي خبره وي نو که په هغې باندې ایجي ټیټین کوئ نو باک نشته. زه مونږ د

جیلخانې سپرنټنډنټ راى صاحب یو ډیر عجیبه سړې و چه هغه ته یه معلومه شوه

چه یو سړې په دې جیلخانه کښې خوشحاله دې بدلیدل نه غواړي وهغه به یې بدل

اوچه چا به ورته وې چه ما بدل کړه نو هغه به یې نه بدلولو مانه به یې همیشه دا ویل

کوله چه دې جیلخانه کښې خوسیاسي قید یانو ته ډیر ارام دې داجیلخانه نه به ستا

خوښه وي نوما به ورته وې چه زه دلته خوښ نه یم نوزه یې نه بدلولم لیکن احمدشاه

حکیم عبدالرحیم صاحب اولعل باچا چه ددوی دا جیلخانه ډیره خوښه وه او

بدلیدل یې نه غوښتل هغوی یې بدل کړل او دنورو خلکو د بدلیدو تجویزونه یې کول

چه ډګاندهي جي او دحکومت دصلحې خبرې شروع شوې نو په دې وجه خلک دلته

پاتې شول .

او څه وخت چه ډګاندهي جي اولارډ ارون صلح وشوه نود اي کلاس

بندیانو یې فوراً رها کړل . زه هم د اې کلاس قیدي وم خوزه یې پرې نه ښودم ما

د سپرنټنډنټ نه پوښتنه وکړه چه زه خو هم د اې کلاس قیدي یم تو هغه راته ووې

چه ستا متعلق ما ته حکم راغلی دی چه دی تر هغه وخته پوری مه پریږده چه تر کومه وخته پوری دې سره فضل حسین او سره صاحبزاده عبدالقیوم دې لیدلی نه دی، لیکن ما ورله صاف ځواب ورکړو چه ته حکومت ته ولیکه چه هغه وخت تېر شو زه هغوی سره لیدل نه غواړم او که د اخلک راشی هم زه د دوی سره د هیڅ قسمه خبری کول نه غواړم ځکه چه په مونږ مصیبت دُ نو دوی ما سره نه لیدل او او س چه ارام راغی دوی ما سره لیدل غواړي ته یې خبر کړه چه نه راځي. بلبه ورځ میا جعفر شاه او عبدالله شاه راغلل تولی قصی یې راته وکړې چه حکومت تا پرېښودل نه غواړی او مهاتما ګاندهی ته یې ستا په سر ډېری غلطی او بې بنیاد دې خبری کړې دي او دا خبره ده چه مهاتما ګاندهی مونږ رالیږلی یو چه ستا نه پوښتنه وکړو زه د دی په اورېدو ډېر حیران شوم ماوی چه سړی په یو جماعت کښنی وی او یا ورسره ملګری وی د هغه خبره به څنګه نه منی او د هغه د اصولو نه به ولی انحراف کوي. بلبه دا ده چه ما اورېدلی دی، چه زمونږ لاټ صاحب سر ستوړ ډ پیرس حکومت ته دا خبره کړې ده چه په دی صوبه کښنی مونږ دوه کسه ځائیدلی نه شو یا به دی وی یا به زه یم.

## رهائی:

ګاندهی جی زما د حاله زمونږ خلکو خبر کړې و او څه خلک ورله تلی هم وو مهاتماجی لاړ د اودون له لاړو او هغه ته ووی چه دی خو زمونږ د کانګرس سړی دی تېرې ولی نه پرېږدې دې داخو ته د صلحی خلاف کار کوې هغه ورته ووی چه تا له دا پښتانه دو که درکوي پښتون او عدم تشدد؟ ته خو لږ سرحد ته لاړ شه

داخلک خود تشدد نه ډک دي. ګاندهي جي ورته او وئيل چه که ته باچاخان نه پرېږدې نو بيا ئې مونږ او ستا صلح ماته ده، نو زه يې پرېښودم. عبدالاکبر خان او سرفراز خان زمانه وړاندې رها شوي وو خو لا کلي ته تللي نه وو او دګجرات په ښار کښې ديره وو چه زما د رهائي نه خبر شو نو ماله د جېل دروازې له راغلل او زه چه د جېل نه بهر کېدم نو په زرګونو هندوان، مسلمانان او سکهان راجمع شوي وو نو زه يې په موټر کښې کښېنولم او په ښار کښې يې زما جلوس او ښکلو او بيا يوه لويه جلسه وشوه ما د هغوي شکريه اداکړه او يو مختصر تقرير مې وکړو چونکه ماته د لاهور د دوستانو له طرفه ډېر تارونه او ټيليفونونه راغلي وو په دې وجه زه لاهور ته لاړم په دغه وخت کښې زمونږ د جهيلم يو دوست د موټر والا ورسېد او مونږ اول جهيلم ته او بيا لاهور ته روان شو. زه يې جهيلم ته په زور روان کړم ولې چه مونږ د لاهور خلکو ته ټيليفون کړې و ليکن چه څه وخت جهيلم ته نزدې شو او هغه ښځې او نر مو وليدل چه زمونږ په انتظار کښې د ښار نه بهر راوتلي وو او ولاړ وو، ما زړه کښې ووې چه که مونږ دلته راغلي نه وای نو دې خلکو ته به ډېره صدمه رسېدلې وه. زمونږ جلوس په ټول ښار کښې وګرځېده او بيا واپس د چېل دوست ځائي ته راغلو او د لاهور د تللو انتظام مو وکړو. لاهور ته ګاډې د شپې په يوه بجه تللو، لنډه دا چه لږ څه ارام مو هم ونه کړو، شو تيين له راغلو.

## لاهور کښې زما استقبال:

سرفراز خان کلي ته رخصت شو او زه او عبدالاکبر خان لاهور ته روان شو، مولانا ظفر علي خان پنډت سنتانم سره د نورو دوستانو په ټيشن کښې ولاړ و

د پنډلټ سنتا نم ځای ته روان شو اغالعل باچا او علی ګلخان هم دلته وو.
خان د پېښور نه دلعل باچا دېوتلو د پاره راغلی وو لې چه هغه یو کال قید واوړو مونږ
راندې خلاص شوی ولږ ساعت پس دا خبر راغی چه ښځو په زنانه جیلخانه باندې
چه ولګوله او چه مسز جوتشی ماسره خبرې کولې چه په دې کښې په منډه منډه
لور راغله او ورته یې ووې چه موږی را پاڅه مور چه ولګېده مونږ ټول
ورته ورنو کښې زنانه جیل ته روان شوا و چه څه وخت ورسیدو نو څه کورو چه
ل لګکښې جنډ ښځه ده او ښځې تری چاپېره ناستې دي او قومی نظم وایي
ه په دې ده چه مسز اصف علی یې نه پرېښوده، د دې د پاره نورو ښځو ی
مونږ هم د دې ځای نه څو چه ترڅو دارها شوی نه ده به د پېرو خوارو مونږ
هرې او واپس راغلو. په دا پسې کښې مو د هلکانو په جېلخانه کښې خپل خدائي
ښکار مکرم خان د ترناو شونګړی سره د ملګرو ولید و چه په بارک ختلی وو
ونږ ته یې اشارې کولې مونږ ورته ووی چه څه کېږي مه دې څوور ځو کښې
ص شئ دا نو مونږ هغه هلکان وو چه دلاهور په شرابخانه په پکټنګ قید
وو.

د جلوس وخت څلور بجې و او په څلور بجو د کانګرس کارکنان راجمع شول
پاره څو څه د سو رلی انتظام شوی وخو ما ووی چه زه په سورلۍ کښې نه ځم
ښنره په پیاده ځم او دوی سره پیاده روان شوم. ځای په ځای مسلمانان
وان او سکهان زمونږ استقبال ته ولاړ وو خلکو ته به یې په غاړه وکښې ګلونه
او د مسلمانانو او هندوانو له طرفه سپاسنامې راکېدې شوې او په یو ځای کښې

یو مسلمان ماله یو ولونگی ، او یوه کوله هم راکړه او هغه وی د توپ په ځای

سره وه . مونږ سره په جلوس کښې د پېرې زنانه هم وي . ز ه د پرستري

لیکن چه د هغوی جوش او مینې ته به مې وکتل نو موږ کښې نه کښېناستم .

جلوس ختم شو او مونږ د جلسې ځای ته ورسېدو د جلسې ځای د

ؤ . په زرګونو ښځې ، نر ، هندوان ، مسلمانان او سکهان جمع شوي وو

د شپې په ګاډی کښې پېښور ته راتلو نو د لاهور کارکنانو ته مو ووې چه د

دی څو مره مختصر کړلې هو مره به ښه وي ما د سپاسنامې په ځواب کښې

وکه او د سپاسنامې ځواب مې ورکړو او شکریه مې اداکړه . د دی نه مې تقریر

چه مونږ له بې غمه کښېناستل نه دی په کار چه څومره کېدی شي هغومره

ولې چه دا سوله نه ده بلکه التواده . زما به دا کوشش وي چه دا ښیډه جنګ

یو لک رضا کاران د عدم تشدد په اصولو تیار کړم . په دی سلسله کښې چه

څه موده پس د سوډوم (ضلع مردان) په دوره لاړم نو هغوی ماته په

سپاسنامه کښې او وئیل چه د یو لک (۱۰۰،۰۰۰) رضا کاره چه تاسو د لاهور

اعلان کړې دی ستا د شان سره نه ښایي ، د دی نه معلومېده چه په هغه

په پښتنو زلمو او ځوانانو کښې څه قسم جذبه وه . چه جلسه ختمه شوه دو مره

چاپېره شو چه موټر ته مو لاره نه مونده ، خلکو نه مو سوال وکړو چه مونږ له

ګاډی به دانه لاړ شي خلکو لاره راکړه خود هجوم په وجه د موټر یوه د روا

ماته شوه او ریل ته په وخت ورسېدو ، ریل کښې سواره شو

روان شو ملایانو چه د سحر بانګونه وي مونږ راولپنډی

ښې ی په تیسن دانقلاب زنده باد چغې وې زه ولیس وم خو ملا می خوږېده
ېږی نه شوم چه اخر می دسیټی صاحب اواز واورېد ونو پوه شوم چه دا خلک
ونږ له داغلي دي. سیټی صاحب مونږ سره دګجرات په جېل کښې قید و او
ښه سړی و او دپېکوړو باټینګمو او چنوجوړولو ډېر ماهر وو او داخیزونه به یې
ل نو مونږ له به یې راکول په ډېر وخوارو را یاخېدم او د ډیل نه ورکوز شوم مونږ
ې وهغوی ډېر خوشحاله شو او راته کلک شول چه مونږ سره به کوزېږې په ډېرو
وتړی خلاص شوم چه پېښبور کښې به راته خلک په انتظار وی او ورته می ووې
یا به راشم. نور خا ته کیمبل پور ته راورسېدو، زه د پاڅېد ونه وم چه په دی کښې یو
ایي خدمتګار زما کوټی ته را وختو، دهغه په لید وخوشحاله شوم او از می ورته
هغه په تلو پو نوشو او بهر لي منډه کړه نور ملګری یی خبر کړل په دی کښې کوډم
میاعیسی زرین خان دیو خوکسانو سره راغی او راتو غاړه شول معلومه شوه
دوی هم د ډېرو دجېل نه راخلاص شوی دي. د دوی په لید وزه جوړ شوم
غه درد می بالکل ورک شو.

مونږ ټول په یوه ډبه کښې کښېناستو او یو لوی کپ مو ولګولو ګاډی روان
او د نوښار په ټیسن و درېدو باور دئ خدایي خدمتګار سره د نورو خلکو
نږ په انتظار کښې ولاړ وو، ډبي نه وتل راته مناسب ښکاره نه شو ما وې
ی نه چه ډیل روان شی نو دخپلی ډبی په دروازه کښې و درېدم او یو خو خبری
دوی نه وکړی او ګاډی روان شو او پېښبور له ورسېدو ټیسن له ډېر خلک راغلي
مونږ د ګاډی نه کوز شو خلکو سره مو روغ جوړ وکړل بهر موټرونه ولاړ وو زه

عبدالاکبرخان او میا احمد شاه په یو موټر کښې کښېناستو او لعل باچا او علي ګل خان
بل موټر کښې کښېناستل زمونږ جلوس په تول ښار کښې وګرځېد او دهغې نه
مونږ کلي ته روان شو ځکه چه هلته هم د ډېر خلک زمونږ په انتظار کښې وو. مو
چه د ناقي ر تا نهي ته راورسېدو نو کوم ځای چه زه ګرفتار شوی وم په هغه ځای
دروازه جوړه وه او د داود زود تخته بادی خان عبدالاحد خان او نور خلک زمو
استقبال ته ولاړ وو مونږ يي د موټرنه کوز کړو ، خلکو سره مو روغ جوړ وکړل او دي
تقرير نه پس رخصت شو ځای په ځای خلک ولاړ وو اخر دا چه مونږ چارسد
ورسېدو دلته په زرګونو خلک جمع وو دلته مونږ د موټرنه کوز يدل مناسب ونه ګڼ
ما، میا احمد شاه او عبدالاکبرخان د موټرنه تقريرونه وکړل او اتمانزو ته روا
شو په زرګونو خلک مونږ سره روان شو څه وخت چه د اتمانزو مقبرې ته ورسې
نو مونږ موټرونو نه کوز شو او دهغو شهیدانو زیارتونو له لاړو چه لیږ ي ورځي و
د ډېرنګیانو په ګولو د اتمانزو په جلسه کښې شهیدان شوي وو. دا واقعه داسې وه
دلته اتمانزو کښې خدایي خدمتګارو جلسه کوله په هغې پسې فوج راغې او توي چاپې
شو ورته يي وويل چه جلسه مه کوئ او ځئ ولي دوی نه منل نو ډزې يي پرې وکړ
دوه کسان پکښې شهیدان شول او نور خلک تښتېدل ، زمونږ جلسو ته به د ډېر
زنانه هم راتللې ، هغو زنانو کښې یوه جنۍ وه چه زما خورزه وه ، دل ادانوم يي و
د رب نواز خان سالار اعظم خور وه . هغه د زنانه ونه راووتله او جلسې طرف ته ې
رامنډې کړې کوم خلک چه تښتېدل هغوی کښې يوسړی ، ورته وويل چه دې جنۍ
دا ته څه کوې ؟ نه وينې چه دا ډزې کېږي دي ورته وويل چه بې غیرتو تاسو تښت

خوزه مخامخ پرې ورځم ددې جنې په وينا د اتول خلک ور واپس شول او د
نه چاپېره شول نو د فوج افسر تپوس وکړو چه د خلک څه غواړي ، سعدالله جان
وويل چه ددې ستا تلاشي اخلې چه تاسو ددوی مړي د خان سره يوسئ په
خبره فوجيان د خلکو د منځه و تل او لاړل ، هلته ما د شهيدانو په ياد کښې يو
تقرير وکړو او خلکو ته مې ووې چه د آزادۍ بوټي د ځوانانو د وينو په اوبه خوړ
ي او کوم بوټي چه مونږ لګولي دي اميد دې چه د ېر زر به لوی شي ولې چه زمونږ
انو وړله د خپلو وينو اوبه خوړ ورکړو . ددې ځايه مونږ جلوس مات کړو او عبدالاکبر
خيل کلي ته او ميا احمد شاه خپل کلي ته لاړل . زه سره د خپلو مهربانانو چهرې له
، کور هم زنانه وو نه ډک و د هغوی ليد وله هم لاړم ، اکثر دوستان زمانه رخصت شول
زه په ارام نه شوم ولې چه خوک به ملل او څوک به راتلل . خو وخت چه به د ېر خلک
شول نو د اک ته به راووتو او هغوی ته به مې يو تقرير وکړو . په دې کښې به د ېر
هم راغلي وې د مونږ په زنانه وکښې هم د ېر جوش او سياسي شعور پيدا
و . مونږ چه د خلکو دې جوش و خروش ته وکتل نو پوه شو چه مخکه تياره
و د کړو خت دی ددې موقع نه فايده اخيستل په کار دی ځکه چه زما د القين
چه د عارضي سوله به پايداره پاتې شي نو په پښتنو کښې مو کار شروع کړو
پې او ورځې ته به مونږ کتل ددې پيسې کلي په کلي ، کور په کور په تو له صوبه کښې
خپلدم متول مې د دنيا په حالاتو پوه کول نو تسلي مې وشوه ، ماله خداې د ېر
لکرې راکړي وو او چپلغانو کښې يې د ېر ښه تربيت حاصل کړې و ځکه چه چپلغانه
کارکنانو د پاره يوه تربيت ګاه ده . زمونږ د تنګي صاحب حق صاحب

د ډېر مخلص خدايي خدمتګارو ، ده سره چه ډېر چا بحث کولو نو ده به ورته

ووې چه ته جېلخانې له د قام او ملک د پاره تللې يې نو چه هغه

به ورته ووې چه نه نو ده به ورته ووې چه ته په قرآن

نه پوهېږې . زه چه جېلخانې له لاړم نو په

قرآن پوه شوم هم زمونږ د کار طريقه

داوه چه د صوبې د يو

سرنه

په شروع شو

نو بل سرته به مو ځان

د سولو . مونږ په ټوله صوبه کښې او

د صوبې په ټولو ضلعو کښې پو ښتان کار کړې دې

خو چه په کومو علاقه کښې به خدايي خدمتګاران پېل

شول نو بيا هغو علاقو کښې به تحريک

هم ترقي کړې وه .



# گانډهي اروَن پيکټ
## (زمونږ دوري او تجربې)

### دوري

(هشنغر، دواوه)

کټوزي، دکانګرس جلسه کراچۍ کښې

دخدايي خدمتګارو (سرخپوشو) بنه اثر، کراچۍ کښې مصروفيت، دهندوستان

...وطن ته واپسي او دسرحد دوره (تل، هنګو، لاچي، احمدي بانډه، زرکي، لتمبر، بنو

...ي نورنګ، ګکي، پيزو، شهبازخيل، ډيره اسماعيل خان، ټانک، کلاچي، ګل امام، ګومل، پنيالا)

دپنجاب پښتني علاقو ته (کيمبلپور، ميانوالي، عيسی خيل وغيره) زمونږ کار

او دپرنګيانو سازشونه، دکانګرس په ځای سرحد جرګه، ګانډهي جي

په بلنه بار دولي ته، ديوي داس سره دوره

(بمبئ، ګجرات، احمداباد)

بابره کښې ډرامه، کمزوري ملګري، پيرنګيانو تشدد زيات کړو

ديوي داس ګانډهي سرحد کښې

## دوزې :

څه ورځې زه د خلکو نه د پر ناوړ نکاره وم لیکن کوم وخت چه خلک کم شو
بیا زه او میا جعفر شاه او عبد الله شاه په لویه دوره ووتو . موتو کښې مو د صوابۍ
دوره وکړه او شپې له زیارت کاکا صاحب له لاړو ځای په ځای زڅکونه خلک
ته ستړی مه شی له وړلاړوو . پښتنو کښې ورورولي ، قامولي مینه محبت
شعور پیدا شوی و ، خلکو کښې داسې جوش وچه بیان یې کولی نه شم . د نو
په جلسه کښې ماله خلکو یوه سره جوړه راکړه او درا کولو په وخت کښې یې راته وو
دا یادولوه چه دا جوړه زمونږ په وینو سره ده چه نمونږ مظلومان ددنه هیر نه
په مونږ نا وخته شو او ذیارت له ناوخته ورسېدو ، خدایي خدمتګار غریبا
مخې له راغلی وو او ټو هغې ولاړ وو . چه مونږ ور ورسېدو . زمونږ په ورتلو
خوشحاله شو او مونږ د فخر قوم میا حمید ګل صاحب ځای ته لاړو ، چونکه فخ
میا صاحب وفات شوی و هغه دخپل قام او ملک د پاره ډېرې قربانۍ کړې وې
دی وجه مونږ د هغه لاس نیوی له دتولو نه اول لاړو ، سیا له موزیارت کښې ج
وکړه ، چه جلسه ختمه شوه نو بیا کلي ته واپس را روان شو . بیا ما د هشتنغر او دوا
دوره شروع کړه او خلکو ته می د خدایي خدمتګارو او جرګو اغراض ، مقاصد
کړل او هغوی می د خدایي خدمتګارۍ په تحریک پوه کړل . زه په دې ډېر خو
شوم چه د هر کلي په جلسه کښې ډېرې منځې ښځې ټر یکیدلی لیکن چه ذ تنګی په جلسه ک
می د ښځو زوږ ولید و نو زړه می باغ باغ شو خکه چه زما دا عقیده وه چه یو قوم

ترقي کولی شي چه د هغوی سره مینځی او به په اوبه ه لکه د کادی د دویمې پایي روانې
شي، د الله تعالی شکر می اداکړ چه زمونږ خواری ځای ونیوه او چه زمونږ زمانه
را بیداری شوې نو دیر امید ونه می پیدا شول چه که خیروی اوس به زمونږ قام
ترقي وکړي . د تنګی نه ابا زونه لاړو، د ابا زونه قطب تریو د روکی کلی دی چه هغه
کښې دیر مخلص خدایی خدمتګار او سپېرې په دی خدایی خدمتګارو د ابازو
کاکاخیل میاګانو دیر ظلمونه د پیرنګیانو په وخت کښې کړې وو ورته چه ویل
چه خدایی خدمتګاری پرېږدئ . لیکن د ابازو، کاکاخیل، میاګان په دې
نادره اراده کښې کامیاب نه شول او زمونږ بهادرانو خدایی خدمتګارانو نه
د قوم او د ملک د خدمت په لاره کښې چه څه مشکلات او څه تکلیفونه د دی
میاګانو د لاسه رسېدلی وو هغه یې په دیر صبر او استقلال برداشت کړې و.
له دې ځایه د واوړ ته پوری وتو د کتو زو خلک مونږ له مخې له راغلي وو د اد دوا-
وې مرکز هم و. دلته دیر خلک جمع وو، جلسه مو وکړه او خلک مو د خدایی -
خدمتګاری د اغراضو نه خبر کړل . شپیی له متی له لاړو هلته موهم جلسه وکړه
د متی نه سباختی سره د خدایی خدمتګارو سیکو د یری ته لاړو په لاره چه څوک
خبر پېدل د کلونه به زمونږ د لیدو له پاره راوتل او دې جلوس کښې به شریکېدل
چه د یری ته ارسیدو نو زمونږ شهیر ز ګونو ته رسیدلی و په د یری کښې جلسه
وشوه د جلسې نه پس مو د یری د واوی خلک رخصت کړل او مونږ شپیی له انبا-
د یر له راغلو د دی ځای خلک په خدایی خدمتګاری کښې سست وو د دې
د پاره په جلسه کښې ما مښوته اپیل وکړه او ورته می ووی چه د ملک څنګه دسنه

دی دغسی دبنځوهم دی اوکه سړی خدایی خدمتګاری ته تیارنه وي توتاسو ما
وتړئ او تاسو خو هم ماسره وعده کړي وه : « که د ظلمونه پوره نه شوه . نخ
افغانه جینکی به دي ګټینه » دهغې تولی جلسې په مخکښې هغو وویل چه مونږ
تیاري یو او ستاسره دقام دخدمت وعده کووچه څه وخت دجلسې نه فارغه شو
سره دیو څو خدایي خدمتګارو دولت پوري ته لاړم او د ماښام لمونځ می هلته وکړ
او خلکو سره می دغه خبرې وکړې . شپې له انباد پرته وا پس راغلو ، سبا له سه
کرهته راغلو هلته مو جلسه وکړه او ترناوته راپوری وتو او چه ترناوکښې جلسه وشو
نو شپې له اتمانزو له راغلو .

## د کانګرس جلسه کراچي کښې :

چونکه دټول هندوستان دکانګرس دجلسې ورځې نږدې وې نو په دې وجه
نوری دوری پریښوی او دجلسې دپاره مو دتللو انتظام شروع کړه زما داخیال
دهری علاقې جرګه دې یو یو خدایی خدمتګار دکانګرس جلسې له مونږ سره ولیږي
او ددوی خرڅ دې خپلی خپلی جرګې برداشت کړي دی کښې دوه فایدې وې یوه
خو به خدایی خدمتګار په دی سفر کښې تجربه کار شي ، بل به زمونږ پرا پیګنډه په
ټول هندوستان کښې وشي . زما دا تجویز جرګې منظور کړو او دهرځای نه جرګو یو یو
خدایی خدمتګار راوردې راولیږلو . په اتمانزو کښې یو څو ورځې جرنیل عظمت خان
چه ډیر قابل او همتناک جرنیل و ددوی له تریننګ ورکړو دټولو دپاره یو نشان ورد
جوړی شوې او بیا کراچي له روان شو چه څه وخت پیښور ته ورسیدو نو خدایي
خدمتګارو ډیره پراپیګنډه او جلوسونه کړي وو او په دی طریقه دخپل مقصد

عت کړې د ، شپږ. خلوښتت باوردي خدايي خدمتګاروو زه او حاجي عبدالغفار
ن ، مقصودجان ، عبدالله شاه او سعدالله پری د پاسه وو .

## دخدايي خدمتګارو (سرخپوشو) سبه اثر :

دخدايي خدمتګاروکماندان، مونږ سرورشاه مقرر کړو او خزانچي او منتظم
قصودجان شو ، ماز یګر په ریل کښې سواره شو دا ګاډې نیغ کراچي ته تللو تیښن
تیښن چه به ګاډې ودرېدو نو مونږ به ګاډې نه راکوز شو او دجلوس په صورت
ښې به راروان شو ، ډول او سرنا به غږېدل او چه خلکو به واورېدل نو خلک به
جمع شول . نو مونږ به خپله پراپېګنډه کوله ، سحر وختي لاهور ته ورسېدو د لته
ډې بدلېدو . لاهور کښې ډېر زيات خلک تیښن له زمونږ لیدو ته راغلي وو .
دايي خدمتګارسره دخپل هیم باجي په قطار کښې روان شو یوه عجیبه نظاره وه
خلکو دومره اثر وشو چه زما یو دوست ووې چه : ستاسو ددې ننني مظاهرې
معلومېږي داسې لکه چه نن د پېرنګیانو حکومت نشته ، بلکه دخدايي خدمتګارو
کومت وې . بیا په ریل کښې کښېناستو او ریل روان شو او دانقلاب زنده باد په
رو کښې دخلکو نه رخصت شو . چه یو څو تیښنه مخکښې لاړو نو په تیښن یوې
ښځې او یو سړي ماته سوال وکړو چه مونږ له اجازت راکړه چه مونږ دې خدايي
دمتګارو سره په یو ډبه کښې کښېنو ، ما ورته وې چه هلته ځای نشته تاسو به
ر تکلیف وې لیکن دهغوی دډېر محبت او اصرار په وجه ما هغوی له اجازت
کړو ، وروسته معلومه شوه چه دا سړې د بهګت سنګه پلار و او دوه ورځې شوې
ې چه حکومت بهګت سنګه پانسي کړې و او دابنځه دجلندر دجنګو دمدرسې

مشره استاذه وه ، د هکت سنګه دېلا ر به مخکښې هغوی ته مناسب ونه ګڼل چه د ولونه
او باجې وغږ وي لیکن هغه به غږ ولو باندې مجبوره کړل هغه دې چه زما ز وږی قوم
او ملک د پاره قربان شوی دی هغه مړنه دی ژوندی دی ، په دې وجه مونږ له
خوشحالی کول په کار دي او په قوله لادېي به دوی ډولونه وغږ ول بله دا چه هغه استاذه
ډېره ز وروره قومی ښځه وه . هغې د پېرې قومی غزلې خدایی خدمتګاروته یادې کړې
او قومی نظمونه یې ورته ولیکل او ونبودل او دوی سره به یې ډېر ښه هم یوځای ویل .
زمونږ خدایی خدمتګار به په هر یو تیسن چه کا ډی ودرېده نو دوی به کوز شو
او په پولاین کښې به جوړه جوړه روان شو ، ډول سرنا به ورسره غږېدل او دوی به
انقلاب زنده باد ، فخر افغان زنده باد چغې وهلې ، د تیسن ټول خلک به ورسره
روان شو ، دوی ته به ډېر خوشحالی ل او ډېر عجیبه کار وروته ښکار ېدو .

کراچۍ کښې مصروفیت :

هر کله چه د کراچۍ تیسن ته ورسېدو نو ډېر خلک مونږ له تیسن له راغلی وو ،
عبدالخالق خلیق صاحب هم سره د پوخو نورو پښتنو د غلته موجود و . د کراچۍ ډېر پښتانه
راغلی وو خو د تیسن نه بهر ولاړ وو ، مونږ چه کاډی نه کوز شو او خدایی خدمتګار
خپله وردۍ برابره کړه د بهارت سبها یو څو ځوانان چه سره کمیسونه یې اغوستی وو
او په هغوی کښې د پېښور دیوان روشن لال هم و ماله راغلل چه دا ډولونه بند کړه ما
تری پوښتنه وکړه چه په څه سبب ؟ دوی ماته دا ووې چه هکت سنګه پهانسی شوی
دی ، ما ورته ووې چه تاسو به په هکت سنګه ډېر خفه یئ که د هغه پلار ؟ د هغه پلار
خو زمونږ سره په ریل کښې یو ځای راغی ، خدایی خدمتګارو ډولونه او باجې نه غږولې

هغه په زوړ په دوی وغږ ول او مونږ ته د هغه حکم دی چه ډولونه به غږوئ ځکه چه هغه وائي چه ټهګت سنګه د قوم او ملک نه ځان قربان کړی دی هغه مړ نه دی ژوندی دی نو د اد خوشحالۍ مقام دی هغه په دی تهیسن موجود دی تاسو تری پوښتنه وکړئ که چیری د هغه رضا نه وی نو مونږ به ډولونه بند کړو.

مونږ چه د تهیسن نه را ووتو نو په زرګونو خلک مونږ ته ولاړ وو د پښتنو د طرف نه خلیق صاحب مونږ ته سپاسنامه پیش کړه د هغې په ځواب کښې ما یو مختصر تقریر وکړه او د هغوی شکریه می اداکړه. د پښتنو دا خیال وچه مونږ پیاده د جلوس په شکل کښې دوی سره د کانګرس ترپنډاله پورې لاړ شو لیکن مونږ ته چاووې چه مهاتما ګاندهي جلوسونه بند کړی دي په دې وجه مونږ په لارو کښې سواره شو او د هغوی خواهش مو پوره نه کړی شو او خپل عذر مو ورته پیش کړه خو هغوی په دی خبره خفه شول.

څه وخت چه مونږ د کانګرس پنډال ته ورسیدو نو د کانګرس په پنډال کښې شور شو او د رضا کارو د تیاری د پاره سیټهۍ (شپیلۍ) وغږیدې لیکن چه دا ورته معلومه شوه چه دا خو خدایي خدمتګار دي نو په قلار شو. حقیقت دا و چه څه وخت ګاندهي جي راتلونو تهیسن له ورله د بهارت سبها سورکمیسي ځوانان تللي وو او تورې جنډې یې ورله مخې له وړې وې او ډیرې ګستاخانه خبرې یې هم ورته کړې وې نو چه څه وخت مونږ سنکاره شو نو زمونږ ورد ئ سرې وې نو چا دا اواز وکړه چه هغه دی سورکمیسي راغلل او د کانګرس په پنډال حمله کوی. د هندوستان او انګلستان په اخبارونو کښې دا غلط خبرونه شایع شول چه سرخپوشو ګاندهي جي له تورې جنډې ورېښې وې او هغوی د کانګرس نه بغاوت وکړه. د انګلستان اخبارا تو پورې لوی لوی

مضمونونه ولیکل او ډېرې خوشحالي یې وکړې. خو د دروغو مزل لنډ وي او تر هغه وخته پورې وي چه رښتیا ښکاره شوي نه وي. مونږ یې د کانګرس یو خاص کیمپ ته بوتلو هلته لوی لوی تنبوان پرې لګېدلي وو. په هغه کیمپ کښې خو ډېر تنبوان وو خو ما د خان او د خدایي خدمتګارو د پاره پنځه تنبوان کافي وګڼل او په هغو کښې مو خپلې بسترې خورې کړې. مونږ لا د مه شوي نه وو چه د اخبارونو خبرلوڅي راغلل او د ګاندهي جي او د خدایي خدمتګارو د مخالفت سوالونه یې شروع کړل. ما ورته ووې چه دا ټولې خبرې غلطې او بې بنیاده پراپیګنډه ده زمونږ ګاندهي جي سره او کانګرس سره هیڅ قسم مخالفت نشته او اخبارونو کښې چه څه شایع شوي دي هغه کښې یوه ذره رښتیا نشته، ټول خبرونه غلط او بې بنیاده دي. ما زیګر د پنډت مونموهن مالویه جي ذوی راغی او هغه زما ته د دې متعلق یو لوی بیان ولیکلو او هغه یې د هندوستان ټولو اخبارونو له ولېږلو.

د هندوستان ښځې، نر، د خدایي خدمتګارو او زما د لیدو ډېر خواهشمند وو او هر وخت به زمونږ په کیمپ کښې یو غوبل وو او د زرګونو خلک به زمونږ کتو له راتلل ولې چه هغوی ته خو پښتانه د ځناورو په رنګ ښودلی شوي وو او د دلته دانسانیت او قومیت په او چته پوړۍ ولاړ وو. د پښتنو متعلق په ټول هندوستان کښې ډېره غلط پراپیګنډه شوې وه او دوی ورته متشدد خلک ښکارېدل لخو اوس د کانګرس سره او د په اوږد عدم تشدد په لاره روان وو او د پېرنګیانو جبر وظلم ته یې په صبر او استقامت خپلې سینې ډال کړې دي. دوی ته پښتانه او کانګرس سره ملګرتیا ډېره عجیبه ښکارېده چه دوی پښتانه خدایي خدمتګار

پخپلو سترګو ولیدل د دوی د عمل، د دوی د تنظیم، د دوی د اخلاص او د دوی د عدم تشدد نه خبر شول نو سترګې یې وغړیدې او تسلي یې وشوه او چه څومره پرا پیګنډې د دوی برخلاف شوي وې هغه یې د ماغزو نه ووتلې. قسم قسم خلک به ما له راتلل او قسم قسم سوالونه به یې کول. ما به چه څو مره زمانه کیدلې شوه پوهول. د خدای ډیر شکر ګذار یم چه کوم خیالات د مو دونه زمونږ خلاف د دې خلکو په زړونو کښې پیدا کړې شوي وو د هغوی تر ډیره حده پورې اصلاح او ازاله وشوه. بلکه دا چه دلته د کانګرس دې جلسې له د ټول هندوستان خلک راغلي وو، هغه ټول د حقیقت نه خبر شول. خدائي خدمتګار چه په څه وخت د کانګرس لنګر له د دوی خوراک د پاره لاړل نو لوی لوی سیټهان به لاس په نامه د دوی خدمت ته ولاړ وو او هر سړي به د دې کوشش کولو چه د خدائي خدمتګارو سره شریک شم او هر طرف ته چه به خدائي خدمتګار لاړل نو خلکو به یې ډیر عزت کولو او څه وخت چه د کانګرس د اسالانه جلسه شروع کیدله، نو په دغه افتتاحي اجلاس کښې د شرکت د پاره ګاندهي جي، جواهر لال نهرو او سردار پټیل خدائي خدمتګارو لیسې را اولیږل چه سره د بینډ باجو په دغه غونډه کښې حصه واخلي. جواهر لال نهرو او دغه بي بي کملا دیوي او خور بي بي سره د خپلو دوستانو د خدائي خدمتګارو پریډ او باجې لیدو او اوریدو له به راتلل په ټول ملک کښې د خدائي خدمتګارو یو درزو او زمونږ د خدائي خدمتګارو په وجه د پښتنو نیک نامي ډیر لویه پراپیګنډه وشوه او هغه د بدنامي داغ د دوی د تندۍ نه وینځلې شو او د دوی په وجه خلکو پښتانه وپیژندل او هغوی سره یې

مینه پیدا شوه .

دکانګرس په جلسه اوپنډال کښې خدایي خدمتګارو ته ازادي وه
ځای له تلی اوګرځېدې شول یا هغه پښتون وچه قول هندوستان کښې به
خلکو سترګې پټولې او ډاکو قاتل ورته ښکارېده او یاداساعت دی چه دکانګرس او قوم
دوی دومره اعتبار پیدا شوچه دخپلو زنانو انتظام او حفاظت یې خدایي خدمتګ
ته حواله کړو بلکه داچه داکار ډېر ګران وو نه دا انتظام پولیس کولی شو او نه دکانګرس
رضا کارانو کولی شو خو دی خدایي خدمتګارو داسې په ښه طریقه سرع وکړو چه دد
انتظام او دسپلین ته دنیا حیرانه شوه او نور خلک خو پرېږده ، دپولیس پولوی افس
چه دلته دانتظام دپاره لګېدلی وُ دخدایي خدمتګارو کمانډر عظمت خان ته ډ
توپې کوزه کړه او لاس یې ورکړو او دده شکریه یې اداکړه . او چه څه وخت به عظمت
ښکاره شو نو دپولیس مقامي افسرانو به ورته سلامونه کول او دخدایي خدمتګارو
علاوه چه پولیس له به یې څه قسم حکم ورکړو هغوی به یې تعمیل کولو . ددې هم په کانګرس
او قول هندوستان ډېر ښه اثر وشو .

کراچي کښې ډېر پښتانه اباد دي چه دروزګار دپاره تللی دي . دهغوی دا
هش وُ چه خدایي خدمتګارو له میلمستیا وکړي او ددې دپاره یې روپۍ هم جمع
کړې وې دهغوی یو څو مشران دخلیق صاحب سره زمونږ کیمپ له راغلل او ما ته یې
خپله اراده ظاهره کړه ما ددوی دمحبت او اخلاص ډېره شکریه اداکړه او د
عوض می ورته وکړه چه تاسو خوز مونږ وروڼه یئ مونږ ستاسو خدمتګار یو مونږ
ته په دې تلو کښې هیڅ عذر نشته او چه څه وخت تاسو غواړئ مونږ به درشو خو دوا

می اتفاق نشته پښتون دومره غریب دی چه دده پیسې په دوه وتګو لپه کار دی . هغوی ووې چه مونږ چنده جمع کړې ده نوماورته ووې چه دغه پیسې دوه ځای دوی له اومه دوه دی ورکړی هغه به په څه فایده راشی هغوی ما سره په اتفاق وکړو . بله ورځ مونږ هلته لاړو ، تولو پښتنو سره مولیدل کټل وشود چې نورخلک هم راجمع شوی وو هغوی ماله یوه سپاسنامه داکړه او دوه نیم سوه یی راته پیش کړې ما د هغوی شکریه اداکړه او د سپاسنامې ځوابی تقریر وکړو او روپۍ می دخدایی خدمتګارو دپاره منظور کړې .

په کراچۍ کښی دجمعیة العلماء هند سالانه جلسه وه ، مولانا احمد سعید صاحب ماته یوخط ولیکلو ، مولانا احمد سعید صاحب ناظم او صلح صاحب مولانا کفایت الله نږ سره دګجرات په جلبخانه کښی یو ځای او سیدلی وو او زمونږ ورېره دېر سنه قات جوړ شوی وو چه که کېدی شی نو خدایی خدمتګار دی دجلسی په ورځ نږ سره شرکت وکړی چه مونږ سره امداد وکړی او مونږ له یی هم دعوتی خطونه ولیږل ، مونږ په دېره خوشحالی سره ددوی دعوت منظورکړو او خدایی خدمتګار دهغوی خدمت او امداد دپاره ور ولیږل او زه هم دهغوی جلسه کښی شریک وم . دخدایی خدمتګارو دانتظام او خدمت نه هغوی تول دېر خوشحاله وو ماته یی دهغوی دانتظام دېر تعریف وکړو .

دهندوستان دوره :

دکانګرس جلسه ختم شوه او دجلسی دختمېدو نه پس مونږ په دوه ځایه تقسیم و یوه ډله دحاجی عبد الغفار ، میا عبدالله شاه او سعدالله خان سره دهغو

خدایي خدمتگار و چه هغوی واپس تلل غوښتل، او بله دله زماسره وه چه مو
تول هندوستان کښي گرځېدل غوښتل او خپله پراپیگنډه موکوله. زمونږ اول
کلې ته روانه شوه او دادو یمه زه او مقصود جان د خدایي خدمتگار و سره دکا
د مسلمانانو په اصرار بمبئي ته روان شو. مونږ مابنام د او بو په جهاز کښي سوار
د پېښتانه او د کراچي خلک زمونږ رخصت کېد وله راغلي وو مونږ چه خه و
خپل سامان سمبال کړو نو بیا تول په یو قطار کښي ودرېدو او د جهاز نه موباجو
د ولونه وهل شروع کړل په بندر کښي پښتنو شادوله واچوله او هغه په پېشکو
کړه چه د جهاز تول پیرنگیان او میلمانه د دوی تماشې ته ودرېدل لاندې یو بیر
په جوش کښي راغلو، سرحند ه ورسره وه میدان ته یې راو د گل لیکن یو پولیسوا
راغي او هغه یې د دوی نه وښکلو یو عجیبه کیفیت او عجیبه ننداره وه چه په دې کښي
جهاز روان شو او لږ ساعت پس د بندر هغه تول خلک زمونږ د نظر نه غیب ش
بله ورځ مونږ بمبئي ته ورسېدو د لته په زرگونو خلک زمونږ استقبال له راغلي وو دلي
په اخبارا تو کښي زمونږ لویه پراپیگنډه شوې وه په کوم بندر کښي چه خلک جمع شوي
زمونږ جهاز یې هلته ونه درولو بلکه د هغه نه کوز په یو بل بندرگاه کښي یې مونږ کو
لیکن په یو ساعت کښي هغه خلک هلته را ورسېدل، زمونږ یې یو لوی جلوس په
کښي وویستو او خه وخت چه مونږ د کانگرس دفتر ته ورسېدو نو جلوس ختم شو
بیا مونږ د ارام د پاره چه کوم ځای زمونږ د پاره مقرر و هلته لاړو، په بمبئي کښي
زمونږ د پېره لویه پراپیگنډه و شوه، ځای په ځای موجلسي وکړې او بله دا چه ز
په ورتلو په مسلمانانو هم خه اثر و شو. خو په پیرنگیانو باندې مېږ ی لگیا شوا و زمو

ف يي دا پراپيگنډه په مسلمانانو کښې شروع کړه چه داخلک هندوانو په دې غرض
ستي دي چه جماعتونو سره ډو لکې او باجې وغږوي چه سباله مسلمانانو ته دهندوانو
ډولکو او باجو څه اعتراض نه وي. دهندوستان په مسلمانانو کښې دومره سياسي
ور نشته چه څومره په هندوانو کښې دي. سياسي شعور په يو قوم کښې داسمانه نه
ي اوچه په کوم قومونو کښې دسياسي شعور خلک پيدا شي نو خپل قوم پسې ګرځي
وي کښې سياسي شعور پيدا کړي مسلمانان دهر سنه قوم دي خو په هغوئ کښې داسې
ل تر اوسه پورې پيدا شوي نه دي. تاسې دهندوانو، مسلمانانو ديډرانو
فکر وکړئ دهندوانو مشران او ليډران قوم پرست دي خو دمسلمانانو مشران
ليډران خان بهادران او خان صاحبان وي، دوی چه څه غواړي ځان
غواړي يا پيرنګي له غواړي، ددې غريبانانو څوک غمخور نشته او څکه دوی د
ل وانونه وروسته پاتې شول.

دپاردسي قوم له طرفه مونږ ته يوه سپاسنامه هم راکړې شوه، په جلسه کښې به
لونو نيغې، نږ شريک شوي وو، ما دپيرې شکريې نه پس دخدايي خدمتګارئ
رورت او حقيقت ښکاره کړه او ماورته ووې چه داتحريک په دې غرض شروع
وی دی چه مظلوم دظالم دظلم نه خلاص کړي او هر څوک چه په دنيا کښې ظالم
ی که مسلمان وي که هندو وي اوکه پيرنګي وي دوی هميشه دهغوئ مخالفت
لو دپاره تيار دوي. خداي ته خو دخدمت ضرورت نشته، دخداي خدمت د
غه دمخلوق خدمت دی.

دبمبيي نه پس دهلي له راغلو، دلته هم زمونږ استقبال له په زرګونو خلک راغلي

وو. زمونږ د میلمستیا انتظام جمعیة العلماء هند کړی و، مونږ هلته لاړو ا
ارام مو وکړو او مازیګري زمونږ جلوس په ښار کښې وګرځولو، هندوانو او
نانو چه د کومي میني او اخلاص مظاهره وکړه د هغه به د ورته څه ذکر کوم په تول
زمونږ په جلوس خلکو ګلونه نوستل او ځای په ځای سپاسنامي وړاکړی شو
ماښام جلوس ختم شو د جلسي په ځای کښې ښځي او نر د ماښتو او صبږ و په شا
راجمع شوي وو، ما په جلسه کښې د شکرلي نه پس یو تقریر وکړ و چه امید دی چه
ستاسو د زړونو نه هغه شکونه او وهمونه اوس لیري شوي وي چه کوم ستاس
زړونو کښې د پښتنو خلاف د ښمنانو پیدا کړي وو او په دی تقریر کښې مي د پ یلی
د ښځو د بهادری او قربانی چه کومي هغوی د ازادی په دی تحریک کښې کړي
وې تعریف وکړه او دا مي ووې چه د کوم قوم ښځي چه پیدا ادی شي او د ملک
ازادی د پاره ملا وتړي نو هغه قوم څوک غلام ساتلی نه شي او هغه قوم
به ډیر زر خپل منزل ته ورسیږي.

جلسه په ډیره کامیابی سره ختمه شوه او مونږ تیسن ته لاړو او په ر
ګاډی کښې سواره شو لږ ساعت پس ګاندهي جي هم سره د یو څو تنو خپلو ملګ
په دی ګاډی کښې یو ځای امرتسر ته روان شو په هر تیسن کښې به د ګاندهي ج
د لیدو د پاره خلک راغلي وو، دومره شور او غوغا وه چه مونږ تری خوب کو
نه شو او نه ګاندهي جي اوده کیدی شو او څه وخت چه زمونږ ګاډی سهارنپ
ته ورسیده نو هلته ډیر خلک راجمع شوي وو هغوی ته مونږ خبره وکړي خود
د جلسي اعلان هم کړی و او په زرګونو ښځي، نر، نیمه شپه تیسن سره نزدی

ونږ په انتظار کښې ولاړ وو ګاندهي جي خو بالکل د کوزیدو ته انکار وکړو دهغه
پس هندوان، مسلمانان ماله راغلل او ما ته یي ډیر منت وکړو چه ډکوره په
ی نیمه شپه کښې څومره منځ، نو راجمع شوي دي لوکه چېرې ته هم موږ سره
ز نه شوې، نو دا خلک به ډیر مایوسه شي او دا ته یي ووې چه یوه کېښته پس بل
دی راځي. نو زه د دوی د خوشحالی له پاره ورسره کوز شوم. موږ چه د جلسې
ام ته ورسېدو نو زموږ د پاره د ښار نه بهر خلک زموږ په انتظار کښې
ست وو ما په دې خپل زړه کښې ووې که چېرې زه هم دوی سره راغلی نه وای
د دوی زړونو ته به څومره صدمه رسېدلې وه. زما په راتلو یې هم څه ناڅه
لي وشوه، یو خو خبرې مې د تقریر په شکل وکړې وخت دا سره نه و بیا ترې
پس تیسن ته راغلو چه په دې کښې هغه ریل راغی او په هغه کښې موږ سواره شو. رای-
اده هنسراج چه د جلندر و او ما سره د ګجرات په جیلخانه کښې یو ځای قید و او ډیر
سره وو او چه کله به دده ملاقات و نو موږ له ډیرې غوړې زیړې دده کور والو-
ورلې. زما ډیر اشنا او موږ سره یې ډیر ښه تعلقات وو. ما دده سره د کوزیدو
عده کړې وه او زموږ اراده وه چه جلندر کښې به کوزیږو و ده سره به دمه کوو بیا به
ګاډی کښې امرتسر له لاړ شو چه څه وخت زموږ ګاډی لودیانې ته راورسېدو
هغه خلک زموږ ته خبر شوي وو، منځ، نو تیسن له راغلي وو او دا کوشش یې
لو چه موږ سره دلته کوز شي موږ لي په دې مجبوره کړو چه د جلندر نه واپس
د یانې له راځئ نو عده مو ورسره وکړه نو هلته ترې موږ خلاص شو او بیا هم
سره یوه منځه په ګاډی کښې جلندر ته ورسېدو نو لاله هنسراج او دهغه ټبر او

خاندان او ورسره نور ډېر خلک تېیسن له راغلي وو او دغه هم مونږ سره امرتسر ته د تللو اراده وه چه تېیسن کښې داسې غوبل جوړ شو چه زه به یې درته څه ووایم. بعضې خدايي خدمتګار ګاډي کښې پاتې شو او څه ما سره کوز شو خپل سامان یې کوز نه کړې شو مونږ. جلندر ته لاړو هلته مو د جنګو سکول وکتو. ډګونو خلکو ته مې یو مختصر تقریر وکړو او بیا واپس لودیانې ته روان شو مونږ. یوه لارۍ کښې د لاله هنسراج سره لودیانې ته لاړلو د ښار نه بهر ډېر خلک ولاړ وو ډېر وخت مونږ په کشمکش او جلوسونو کښې ضایع کړو او دلته مولوي عظیم الشانه جلسه کړې خو ډيل ګاډي وانه لاړلو. د دې ځاى مسلمانانو خدايي خدمتګارو له د لارۍ انتظام وکړو او دې ځایه مونږ په لارۍ کښې امرتسر ته روان شو، ماذیګر ورسېدو. په بازارونو کښې خلکو مونږ سره ډېره مینه کوله چه دوی به زمونږ د لارۍ نه چاپېره شوا خر په ډېرو خوارو هغه ځاى ته ورسېدو چه کوم ځاى ګاندهي جي کوز شوی و معلومه شوه چه ګاندهي جي ته هم خلکو په تېیسن ډېر تکلیف ورکړې وا او هغه ناجوړه هم و زه د هغه لیدو له لاړم هغه مخ سر تړلي وو او په ډېر تکلیف کښې و. ما هغه خپل ټول د قید ملګري که هندوان وو که مسلمانان وو که سکهان وو چه څوک ما سره د ګجرات په جیل کښې اشنا شوي وو ولیدل. زما طبیعت هم ناسازه و په دې وجه ما مناسب ونګڼل چه د سکهانو ورونو نه اجازت واخلو او ګلي ته لاړ شو.

## وطن ته واپسي:

هغوی نه مې په ډېر زور رخصت واخیستو. ماوې زه ناجوړ یم هیڅ هم نه شم کولی او تا سو مې پاتې کوئ نو زه به زیات ناجوړه شم هغوی رضا شو او ما

ړي رخصت راکړې او موږ د شپې په ډاک ګاډي کښې راروان شو سحر
وختي نوښار ته راورسېدو او چې کوم خدائي خدمتګار د دې ځای وو هغوی
و رخصت کړل او موږ مردان ته روان شو، د مردان ټېشن له په زرګونو خلک
راغلي وو، موږ هغوی سره هوتي مردان ته لاړو د کلپاني په غاړه د يوې لويې
جلسې انتظام شوی و چه جلسه ختمه شوه نو بيا طورو مايار وته لاړو هلته هم د دواړو کلو
خلک راجمع شوي وو جلسه مو وکړه خلکو ته مو د دورې ټول حال ووې او بيا
موږ ه واپس اتمانزو ته راغلو.

يو څو ورځې مې ارام وکړه او چې بيا شوم نو د صوبه سرحد د دورې اراده مې
وکړه چه په دې کښې: کوهاټ، بنو، ډېره اسماعيل خان، د کميټو له طرفه
ته عوتونه هم راغلي وو، زه د ټل او هنګو په دوره روان شوم په دوره کښې ماسره
زمانګانو بانډې د قاري صاحب زوی هم تلی ؤ هغه ډېر خوش اوازه و قومي
نظمونه به يې ويل چه: «د ستا له ميچنو، نه وېرېږو اې سرکاره ولې مويرې.»
د دې به په خلکو ډېر ښه اثر کېدلو. په لاره کښې د درې ټول اپريدي ورونه
خبر شوي وو زموږ استقبال د پاره ځای په ځای ناست وو او د چای او
ډوډې انتظام يې هم کړی ؤ، زموږ د ښکاره کېدو سره د دوی شروع شوي او
ډېر خوشحاله شول، ما به ډېر منع کول چه دوی مه کوئ زما نظر به خود عدم
تشدد ده خو هغوی خو ازاد خلک وو کله منع کېدل. ځای په ځای چه به دوی جمع وو
موږ به ورکوز شو او مختصر تقريرونه به مې ورته وکړل او د خدائي خدمتګارۍ په حقيقت
به مې پوه کړل، د دې ځای نه اول ټل او بيا واپس هنګو ته لاړو او چې هلته موږ چېل

د تحریک ورو نه ولیدل او جلسی وشوې نو واپس د کوهاټ ښار ته راغللو، د کوهاټ
خلکو خو یو لوی نمایش کړې ؤ خو د باران په وجه رونق خراب شو، د جلوس نه پس مو
جلسه وکړه او تقریر مو وکړو او خلکو ته می د خدائی خدمتګارئ د جرګو جوړولو دعوت
ورکړو چه سبا له بنوته روان شو په لاره کښې لاچي او احمدی بانډی، بانډه داود
شاه کښې مو جلسې وکړې. بیا کرک ته لاړو هلته جلسه وشوه د زړې پیه تولې علاقه کښې
وګرځېدو، واپسی کښې لتمبر ته راغلو او د محمد افضل خان ځای کښې مو جلسه وکړه
کوهاټ کښې زمونږ د پرسنه کارکنان وو [چه دوی کښې یو د زرګی عبدالغفار نومیده
چه د قومی خدمت په لار کښې یې ځان قربان کړې ؤ، ده د خودکشئ په وخت کښې یو
خط زما په نامه لیکلې پریښې وو، په هغې کښې یې لیکلی وو چه ما دیو خدائی خدمتګار په
حیث تا سره د لوی خدای د واړندی دا لوظ کړی وو چه زه به د خدای د مخلوق
خدمت د هغه د رضا د پاره کوم او که په دی لاره کښې هر قسم تکلیف او مصیبت په ما
راځی نو زه به د هغې مقابله په عدم تشدد کوم. چونکه د مسلم لیګ په امر د قیوم خان
حکومت دلته زمونږ د وهلو، ټکولو، قید ولو، مال تالا کولو، او جایداد ضبط کولو نه علاوه
زمونږ د کورونو او زنانو بې پردګی هم کوله نو زما پښتنی غیرت دا برداشت نه کړی
شوه یکار خو دا وو چه ما تو یک راواخستې وی او د دی ظالمانو نه می بدل اخیستی وی
خو چونکه ما تاسره دا لوظ کړی وو چه زه به په عدم تشدد پابند اوسم نو د دی وجې نه زه
خپل ژوند ختموم او د خدای سره سره تا نه هم معافي غواړم چه زه تاسره په هغه خپل
لوظ ټینګ پاتې نه شوم.]

دی ضلع کښې تقریباً یو لک خدائی خدمتګار دو. دلته د لتمبر د کلی ...ان د سه ک

غیر ... یاد
... تازه ... دو
خدائی خدمتګاران
قیوم ... شه پد ... ګرکړی ... ظالم ... جلیس ... کړی ...

په غاړه مونږ ته د چا یو انتظام کړی و مونږ چای څکله چه زمونږ د بنو خدایی خدمتګار
راو دسپل او مونږ ورسره په موټر کښې بنو ته روان شو، بنو والو هم مونږ د پاره ډیر
نمایش کړی ؤ او په بنا د کښې زمونږ یو عظیم الشان جلوس و بنکو او په زرګونو خلک
پکښې شریک شول ډیره ښه جلسه وشوه او ډیر مخلوق ورله راغلی وو. سالار یعقوب
خان او ورپیشوا هتر داسې ډیر کار کړی و، دلته د هند والو او مسلمانانو اتفاق دوی
کړی و هلته می هم یو مختصر تقریر د خدایی خدمتګاری متعلق وکړو، د هغه ځایه
سباله مونږ ډیره وته روان شو، میرا خیل کښې نورنګ او سرای کښې مو جلسه وکړه
لکی کښې مو هم جلسه کړی وه. شهباز خیلو او پیزو کښې مو جلسه وکړه، لکی مروت
لادو کښې راتلل هلته مو جلسې وکړې. ډیره وته نزدې مونږ د پاسو لیپښتنو څه کلې
ولیدې او مونږ هغوی ته ورستانه شو، مونږ لا هغوی سره خبرې کولې چه په دې
کښې یو موټر راغی او مونږ ته یې ووې چه ډیر راځۍ خلک د ښار نه بهر راوتي دي سخت
په انتظار کښې دي، مونږ هغوی سره روان شو او چه د ډیره ښار ته نزدې شو نو په
زرګونو خلک زمونږ په انتظار کښې ولاړ وو. زمونږ د موټرو په لید وسره یې د انقلاب
او فخر افغان زنده باد نارې ووهلې، بازارونه، سړکونه، دکانونه یې بند کړی وو
ځای په ځای دروازې ډیرې ښې جوړې شوې وې، زما په خیال دلته ډیر لوی
لوی خلک راغلي وو، خو داسې استقبال یې شوی نه ؤ زه یې په اس سور کړم او د جلوس
ورانډې روان شوم، په زرګونو ښځې هم په دکانونو، بالاخانو او کوټو باندې
ولاړې وو. پیرنګیانو ډیر کوشش کړی ؤ او په هند وانو یې ډیر د باو ونه کړی وو چه په
دې طریقه زما جلوس او استقبال ونه شي خو بالکل ناکامیاب شوی و. د دې جلوس

تول انتظام هندوانو کړې وُ .

د پېرهٔ اسماعیل خان کښې په دې ورځو کښې د قومي تحریک زور او شور و. د دې ښار په چاپېره علاقو کښې هم تحریک په زور کښې و، ټانک، کلاچي، کلاامام، کوټل بازار او پنیاله کښې خلک په تحریک کښې په زور او شور کښې شامل وو. ښار کښې سره د نه علاوه د ښځو او وړو هلکانو جلوسونه وتل. یوه ورځ د ښځو جلوس په بازار کښې تېرېدلو هر کله چه دا جلوس د ډاکټر جنډه رام چوک ته ورسېد نو د صوبه سرحد انسپکټر جنرل پولیس ایس ماتکر د جلوس د خورېدو حکم ورکړې وخو ښځو انکار وکړو، جرنیل د ښځو په دې انکار ډېر غصه شو او تمانچه یې را وښکله او چلوله یې چه ناڅاپه یو ځلمي سردار بهګوان سنګه د ده لاس ونیوو او ورته یې ووې چه تا له شرم نه درځي چه په ښځو تمانچه چلوې. د جرنیل صاحب لاس ورپرېښود او تمانچه تړې ښکته پرېوته جرنیل صاحب وارخطا شو او بنګلي ته لاړ او تمانچه ورله یو سپاهي یوړه : د بهګوان سنګه د دې جرئت بدله په ۱۹۳۱ع کال کښې د فرقه دارانه فساد نه پس واخیستې شوه او هغه دیو قتل د دروغو په مقدمه کښې ونښې شو او ډېر مصیبتونه یې پرې تېر کړل او چه ثبوت پرې پیدا نه شو نو پرې یې ښوده .

هندوانو ته حکومت ډېر په ډهرو او دغه وجه وه چه پینځه میاشتې پس یې په هندوانو، مسلمانان ورواچول او کور کښې یې وجنګول او لوی فساد وشو، د هندوانو مالونه یې پرې لوټ کړل، کورونه او بازارونه یې وسوزول او ډېر هندوان او مسلمانان قتل شول، او د لکهونو روپو نقصان وشو او د پنیالې پرخان بهادر چه هغه سره د ډېټي کمشنر او شیخ محبوب علي اسسټنټ د اصلاح وکړه او دوه لاړې

بی هم وارکړی چه خپلو لوګړانو له سره ورد ی جوړی کړی او بوه بی کړی چه مونږ په بنار کښی فساد کول غواړو . کوم وخت چه ددی ته تیلیفون وکړی نو دغه دسره جامو لوګړانو له توپکې او تماچې ورکړه او ښار له یې دلوټ او اورلګولو دپاره فوراً را ورسوه ده هم دغسې وکړل . دپیرنګی دپټی کمشنر دا پالیسی وه چه یو خوا به هندوان وو هل شی لوټ به شی او بل خوا به سرخپوش خدایی خدمتګار بد نام شی او ددوی برخلاف به پروپیګنډه په ټول هندوستان کښی وکړو چه کانګرس هم په دوی بدګمانه او خفه شی او دوی له ځانه بیل کړی . دشپی یو عظیم الشانه جلسه وشوه ما پکښی یو مختصر تقریر وکړو چه زه ستاسو دهندوانو او مسلمانانو په اتفاق ډیر خوشحاله شوم او امید کوم چه تاسو به خپل دا اتفاق داینده دپاره قایم او دایم وساتی او دملک دازادی په لاره کښی به کافی حصه واخلئ . سبا له مونږ کلاچی له لاړو کلاچی کښی ډګنډه پور خانان او رمضان خان وغیره ټول مونږ سره ملګری شول دلته دخدایی خدمتګارو جرنیل کنور بهان نارنګ صاحب ورو ستو بیا سالار شو او دهغه ځای خلکو زمونږ ښه استقبال وکړو ، جلسه مو وکړه خدایی خدمتګاری کښی خلک په ډیر شوق داخل شول او جرګه مو هم جوړه کړه ، دکلاچی نه ټانک ته لاړو او دټانک خو ډیر زور ور پښتانه دی . ډیر خلک په جلسه کښی شریک شول ، شپې له کل امام له لاړو ظفر خان دوی هم مونږ سره شامل شول ، دلته هم جلسه وشوه او ډیر خلکو خپل نومونه خدایی خدمتګاری کښی ولیکل . له دی ځایه واپس بنوته لاړو ، بیا کوهاټ او پیښور ته واپس شو .

## د پنجاب د پښتنی علاقو دوره :

خدايي خدمتګارې چه جوړه شوه نو مونږ ته ضلع کيمبلپور او ضلع ميانوالي نژدې وې او پکښې ني ياته ابادي زمونږ پښتنو ورونوه او دا دواړه ضلعې مونږ سره لګيدلي دي. کيمبلپور د پښتنو د يو پټان کښې او ميانوالي ډيره اسماعيل خان د يو پټان کښې وو. څه وخت چه تحريک شروع شو نو دا ضلعې پي زمونږ نه کټ کړې او پنجاب سره يې کړې، دا ضلعې زمونږ ګاونډ کښې دي، نو مونږ دې کښې هم دورې کول غوښتل. خو ضلع کيمبلپور ته حکومت نه پريښودلو تردې چه زمونږ خيل ورارتونه جوړ شول بيا هم چا نه پريښودو. يو ځل مونږ دوه زارتونو په وخت کښې د کيمبلپور په دوره تللو خيال هم دا و چه اوس خو قومي وزارتونه دي مونږ به پريږدي خو چه د اټک نه پورې وتلو نو پوليس سنګينونه چړاو ولاړ وو مونږ ته يې سړک بند کړې وو مونږ ته يې ويل چه واپس شئ، کښې مونږ پريږدو ماورته وويل چه مونږ خو واپس نه ځو نو مونږ چه پوره شو چه دوی مونږ نه پريږدي نو دلاړې نه کوز شو او د سړک په خوا کښې د غره خنګ ته کښيناستو دې کښې ډير وخت تير شو چه هغوی پوه شول چه دوی خو واپس نه ځي نو بيا يې لارې راوستله او په هغې کښې يې مونږ کښينولو او کيمبلپور طرف ته روان شو ولې د کيمبلپور په ځای يې خوشحال ګړته بوتلو د سين نه يې پورې کړو ضلع کوهاټ کښې يې پريښودو، دغه شان چه کله ما يا خدايي خدمتګارو اراده کړې ده نو چا پريښي نه يو او ميانوالي ته به هم کله نا کله ورغلو، کيمبلپور کښې به د چچ علاقې ته کله نا کله ورتلو، چه ميانوالي ته به لاړو نو په علاقو به ګرځيدو کالاباغ ته هم تللي يو دغلته کالاباغ سره جخت په نمرخاته يو کلي دی هغې ته هم ورغلي يو او هغه علاقې ته هم تللي يو چه پکښې د اوسپنو کان دی او بيا د هغې نه به عيسی خيلو ته ورتلو يو ځل چه مونږ عيسی خيل ته لاړو نو د هغه ځای نواب

جلسه ته پرېښوده خپلو نوکرانو ته يې لوی لوی ډانګونه ورکړي وو چه څوک به جلسې ته راتلل هغوی به يې وهل. ما داسې چل وکړو چه په بازار کښې روان شوم او په تلو تلو کښې مې خلکو ته خپل تقرير کولو سره دې دې هم چه څوک به زما تقرير اورېدلو ته راجمع شول نو هغه به يې په ډانګونو وهل، لنډه دا چه زه يې جلسې ته چه ځم خبر وو ته هم پرې نه ښودم خو هلته يو هنګو ؤ هغه مونږ مېلمانه کړو او د هغه يو سرای وو په هغې کښې يې زمونږ د پاره د ډوډۍ انتظام وکړو نواب صاحب هغه پسې جواب راولېږلو چه دا سړي مه پرېږده او د سړای نه يې وباسه خو هغه د نواب صاحب خبره ونه منله او مونږ هلته په آرام شپه تېره کړه چه سباله جمعه وه مونږ دا فکر وکړو چه د جمعې لمانځه له خو به د علاقې ډېر خلک راځي نو مونږ به هم لاړ شو، دوی سره به لمونځ کښې شريک شو او که موقع وه نو خبرې به ورسره هم وکړو خو چه سباله مونږ جماعت له ورغلو نو د نواب صاحب ډانګ ماران د جماعت نه چاپېره ولاړ وو او چه جماعت ته ورننوتلو نو يو بنيادم يکښې نه و خو شې پروت ؤ مونږ ته دا معلومه شوله چه د نواب صاحب داسړي. د دې د پاره ولاړ وو چه د هغوی دا خيال وو چه سباله به دوی د جمعې لمونځ د پاره راځي نو زمونږ نه مخکښې يې دا بند وبست کړې وُ چه جماعت ته د کلي او علاقې څوک را نه شي نو ځکه دا سړي يې ودرولي وو چه څوک راځي نو هغوی د جماعت نه منع کوي. چه مونږ په دې پوه شو چه دې علاقه کښې مو کار ته څوک نه پرېږدي نو واپس شو.

يو ځل زمونږ د مردان يو خدايي خدمتګار جرنيل شاه ولي خان د څو تنو نورو خدايي خدمتګارو سره د کيمبلپور د ضلع د پنډي ګهيب تحصيل ته تللي وو هلته دوی په جلوس کښې روان وو، جرنيل صاحب وړاندې روان و جنډه يې لاسو کښې نيولې وه او

نور خدا ایي خدمتګار ورسپی ووچه دوی د دوست محمد صوبیدار کورته نږدې شول نو نوهغه او دهغه زوی غلام محمد ورته مخه ونیوله او په جرنیل صاحب یې په ټوپک ډزونه چه هغه شهید شو او بیا یې نور خدا ایي خدمتګار په برچو وهل او په جلوس یې کاڼي و ورول او جلوس یې تس نس کړو او جلسه خوره شوه. زمونږ د پنجاب رونړو زمانه کیله کوی چه ته پښتنو ته کار کوی، زه ورته وایم چه زمونږ دا تحریک خو د خدا ایي مخلوق دخدمت د پاره دی او مونږ خو کوشش کړې دی چه دهرچا خدمت او کړو ولی زه چه حلي کړې ...لي یم خو چا ستاسو خدمت ته پرې الښي نه یم.

ددې نه پس بیا څه وخت چه پیر تکیا نو اعلان وکړو چه د ملک مونږ پرینږدو نو یو ځل بیا زه میانوالی ته لاړم او په داؤد خیلو کښې یوه لویه جلسه وشوه. د میانوالی پښتانه نیازیان دي چه دیر بنه او بهادر پښتانه دي. زمونږ جلسې ته په ډېر تعداد کښې په ډیر شوق راغلي وو ما هغه جلسه کښې دوی ته تقریر وکړو د هغه تقریر یو خوخبرې ماته یاددی زه یې تاسو ته کوم ما ورته وویل چه ای ورونړو! نن د قامولی دنیا ده تاسی وینئ چه کوم قومونو کښې قامولي او ورورولی راغلی ده نو هغه آسمان ته وختل او اباد شول دا مونږ خو هم یو قوم یو نو دا مونږ ولي پاتې شو؟ دا مونږ خکه پاتی شو چه مونږ کښې قامولی، ورورولی مینه محبت او اتفاق نشته نو زه تاسو له خکه راغلی یم چه تاسو زما قام یئ خو تاسو خپله ژبه پښتو نولی تمدن او تول څیزونه پرېښې دي تر دې چه لنګونه مو وهلي دي. داهم درته وایم چه یوه موغې دسیل نه جدا شي نو هغه ورکه شي اوس د فیصلې وخت راغلی دی دا زما د قامولی او عزت ولی فرض دی چه تاسو ته راشم او دربه تپوس وکړم چه تاسو به څه کوئ مونږ سره به چې

که پنجاب سره به ځئ، مونږ خو پېرنګی جدا کړی وو چه پېرنګی ځي نو تاسو به پنجاب سره ځئ که مونږ سره به او سپېږئ نو به هغوی کښې یو سړی را پاڅید او هغه وویل چه مونږ ستاسو وروڼه یو او پښتانه یو او تاسو سره به ځو، مونږ به خپلو بچوته پښتو ښیو بچوته څه چه مونږ بچیله هم پښتو زده کوو خو ته به مونږ سره دا وعده کوې چه کم ازکم په شپږو میاشتو کښې به یو ځل مونږ له راځې. زما او د هغوی وعده وشوه او جلسه خوره شوه، ملک آزاد شو، پاکستان جوړ شو خو ما لا تر اوسه د هغوی سره دا وعده پوره نه کړې شوه، ولې چه پاکستان جوړ شوی دی نو میانوالی خو پرېږده [illegible] کښې چا خدمت ته پرېښې نه یم بلکه څومره موده چه پاکستان کښې وم نو لا به جیلخانه کښې وم لا به کور نظر بند وم.

## زمونږ کار او د پېرنګی سازشونه:

پېرنګیانو چه ولیده چه دا تحریک پښتنو کښې د ځنګل د اور په شان خوریږي نو دوی سره یره پیدا شوه او زمونږ د تحریک د تباهۍ کوششونه یې شروع کړل اول یې د پنجاب انګریزئ اخباراتو کښې زمونږ بر خلاف د اپراپیګنډه شروع کړه چه دا تحریک د کانګرس مخالف دی او په دې طریقه یې مونږ د کانګرس نه جدا کولو او د کانګرس او د ګاندهي جي امداد یې رانه لیری کولو، لیکن ما فوراً د میا احمد شاه او نورو ملګرو به سلا او مشوره یو اعلان وکړو چه دې حکومت یوه غلطه پراپیګنډه زمونږ بر خلاف شروع کړې ده. مونږ د کانګرس ملګري یو مونږ نه د کانګرس نه جدا یو او نه جدا کیږو، بلکه دا چه د لاهور په اخباراتو کښې چه د پېرنګیانو د اثر د لاندې وو، د اپراپیګنډه شروع کړه چه ماله په بمبئي کښې

سره د هندوستان مسلمانان ویده کړي فرنګي لا ډیر شي. نو هندوان
به مونږ د حلق نه تیر کړي + حال دا چه مسلمانانو پر هندوستان تقریبا
۸۰۰ کاله حکومت کړی وو. دا خطره مسلمانانو ته ډیر ملي په نظر کښې اچوو
وه



دا پریدو د پاره شپېته ذره روپۍ راکړی شوی وې حالانکه دا ټول دروغ وو ماخو په هندوستان کښې نه د چا نه چنده غوښتې ده او نه چا راکړې ده او نوری داسې طریقې یې هم اختیار کړې چه د قوم او زما او اپریدو ورونو مینځ غلط فهمي او ناچاقي پیدا کړي. لیکن دروغ د رښتیا مقابله کولی نه شي:

«قل جاء الحق وزهق الباطل» یوه ورځ ما د لاهور په تهیس د انقلاب اخبار ایډیټر ولیدو هغه زما اشنا هم و لیکن پیسه چه یو قوم ته خوږه شي نو هغه بیا اشنائي او دوستي ته نه ګوري راغی او ماته را ترغاړه شو ما تری پوښتنه وکړه چه دا ستا کله اپریدو سره دومره اشنائي او ورورولي پیدا شوی ده هغه وخت دې د هغوی ملا د نه کوو چه څه وخت پری د پیرنګیانو د توپو ګولی وریدې؟ او دا مې ورته ووې چه دا ممکن کیدی شي چه د یو پنجابي دې دا پریدو سره زیاته همدردي وي؟ زما خپل قوم دی او زه خو د هغوی خدمتګاریم، دا ممکنه ده چه زمانه ستا هغوی سره زیاته همدردي وي؟ نو هغه راله ځواب راکړو چه چونکه تاسو کانګرس سره یئ او زمونږ پالیسي د کانګرس خلاف ده نو په دی وجه مونږ ستا بر خلاف شو او ستا خلاف لیکو. ما ورته ووې چه مونږ به اوس کانګرس پریږدو او مونږ خو تاسو له درغلي وو خو تاسو زمونږ هیڅ قسم امداد ته تیار نه وئ! حقیقت خو دا دی چه تاسو مونږ کانګرس سره کړې یو که تاسو اوس هم مونږ سره ملګري کیږئ او د پیرنګیانو د زور ظلم نه مو خلاصوئ نو تاسو سره کیږو. ده سړکي منکته کړې او روان شو. اسلام خو دنیا ته د آزادۍ د پاره راغلی و او د مظلوم د ظالم نه د خلاصولو د پاره راغلی و لیکن نن د هندوستان مسلمانان په غلامي خوښ

دي او د ظالم ملګري دي او بیا هم د اسلام دعویداردي.

## د کانګرس کمیټۍ پرځای د سرحد جرګه:

زمونږ دا خیال وو چه د صوبه سرحد «د کانګرس کمیټۍ» نوم د «جرګې» شي نو دا به ښه وي ولې چه زمونږ خلک په کانګرس نه پوهیږي او دا هم وو چه مونږ خدایي خدمتګار د کانګرس سره ملګري وو او کانګرس کښې نه وو او بله خبره دا هم وه چه د صوبه سرحد کانګرسیانو به زمونږ مخالفت کوو او مونږ سره يې کمک نه کولو نو ځکه مونږ غوښتل چه د کانګرس د کمیټۍ نوم د «جرګه» شي. مونږ د ټولې صوبې کارکنان خدایي خدمتګار او د صوبې کانګرسیان د جرګې جوړولو د پاره راجمع شو او مونږ ټولو په شریکه جرګه جوړه کړه د ټولو کارکنانو دا خیال وُ چه زه د دې صدر شم او صدارت دې منظور کړم ولې زه د دې د پاره نه وم تیار نو په دې وجه د صدارت د پاره دوه نومه پیش شو. د ښار خلکو د علي ګلخان نوم پیش کړو او مونږ د کلو خلکو د میا احمد شاه نوم پیش کړو. میا احمد شاه د رائي په اکثریت سره صدر مقرر شو، د جنرل سکرټرۍ د پاره ما د پیر بخش وکیل د پېښور نوم پیش کړو او په اتفاق سره هغه منظور شو او کار مو شروع کړو، زمونږ کار ورځ په ورځ په ترقي وُ، زمونږ په خلکو کښې احساس جذبه او شعور پیدا شوی وُ او ورځ په ورځ په زیاتیدو و خو حکومت زمونږ دې تحریک ته کتې نه شو او هیڅ وخت زمونږ د تحریک د بربادۍ نه قلار نه وو او په دې کوشش کښې وو چه په څه چل زما دورې او کلي په کلي ګرځیدل بند کړي، اخبارات کښې يې زما برخلاف غلطي پراپیګنډې شروع کړې او ما ته تماشې ته يې هم زما متعلق دروغ ولیکل، لیکن

مهاتماجي د دوی د دروغو په دام کښې رانغی. ماچه څه وخت د کوهاټ د دورې بیا اراده وکړه او څه خدائي خدمتګار مې هم د خان سره کړل نو د سرحد حکومت والیسرای ته ولیکل چه د کوهاټ علاقه زمونږ د فوجي بوټي مرکز دی او که چېرې ده یکښې دوره وکړه نو بیا به دا علاقه زمونږ د لاسه لاړه شي نو په کار دادی چه دی ګرفتار کړې شي. والیسرا مهاتما ګاندهي ته ولیکل چه مونږ هغه ګرفتا ردو. مهاتماجي جواب ورکړو که چېرې هغه ګرفتار وی نو زمونږ او ستاسو چه کومه صلحه شوې ده هغه به ماته شي. ماچه د کوهاټ دوره شروع کړه نو حکومت څلور افسران ماپسې مقرر کړل یو د کوهاټ ډپټي کمشنر بل پولیس کپتان ورسره د علاقې مجسټریټ او بل د باردر پولیس یو پېرنګی چه هغه به د پړسنه پښتو ویله چه کلي به کلي وګرځي او خلک دې ته تیار کړي چه نه ما کلوته پرېږدي او نه ماته را جمع شي لیکن په دې هم څه ونه شو مونږ چه به کوم کلي ته تللو دوي به زمونږ نه مخکښې تللي وو خلکو ته به لي وې چه ګورئ هغه راروان دی چه کلي ته لي پرې نږدئ خلکو به ورته وې چه دا مونږ څنګه کولی شو تاسو لي بند کړئ زمونږ کلوته لي مه را پرېږدئ بیا به لي ورته وې چه خبرې ورسره مه کوئ جلسې له مه ورځئ په یو کلي کښې ترمونږ جلسه وه دوی هم هغې جلسې له راغلل ما خلکو ته تقریر کولو چه مونږ خدائي خدمتګار یوا و مونږ د خدای د پاره د دی قام او ملک خدمت ته ملا تړلې ده، دا ملک او دا قوم خو ستاسو هم دی تاسو کښې څوک شته چه مونږ سره په دې خدمت کښې شریک شي نو یو پاڅېدو چه زما نوم ولیکه، بل پاڅېدو چه زما نوم ولیکه، بل پاڅېدو چه زما نوم ولیکه، دا د بازې پېرنګی ماته را نږدې شو او ماته یې وویل په دی خلکو دې څه چل کړې دی دا به

زمونږ دیو سپاهي نه دومره یرېدل چه دهغه په مخکښې به یې کلمه نه شوه وئیلې اوس دا دی مونږ ولاړیو او د دوی په زړه کښې هیڅ وېره نشته ګکیا دي خپل نوموونه دخدائي خدمتګارئ دپاره پیش کوي ماورته ووې چه داچېل پېړی مانه دی کړې ، داپېرې تاسو کړې دی داستاسو د ظلم نتیجه ده . چو مثل د رحم ... بجنګ آ...

بیا مونږ بنوته لاړو لکي مروت او درسره نور و کلو کښې او سرای نورنګ کښې مو جلسې وکړې ، جرګې موجوړې کړې او خدائي خدمتګار برتي شو . دبنو ښار خوا تول کلي مو وکتل جلسې مو پکښې وکړې او خلک مو د حقیقت نه خبردار کړل بیا مو هاتي خیلو کښې دیوی لویې جلسې انتظام وکړو او په هغه مقام مو جلسه وکړه چه کوم ځای چه په ۱۹۳۱ع کال کښې پیرنګیانو په یوه لویه جلسه ګولۍ چلولې وې او ډېر خلک شهیدان شوي وو او ګرفتار شوی وو او قید شوي وو . مونږ چه هاتي خیلو ته نږدې شو نو ماله دپولیس یو افسر یوسل وخلوېښت دفعه ( دقانون یوسل وخلوېښتمه ماده ) کښې نوټس راکړو چه هلته به نه ځې ما دهغه د تعمیل نه انکار وکړو او نو بیا مې داخیال وکړه ماوې که زه جلسې ته ځم نو جلسه به بنده کړي نو بیا مې دا فیصله وکړه چه خپل ټول ملګری مې هاتي خیلو ته ولېږل او زه لټمبر ته لاړم او د لټمبر د خان محمد افضل خان په حجره کښې اوده شوم . ما بنا م محمد افضل خان سره زما د ملګرو د جلسې نه واپس راورسېدل حالات یې راته بیان کړل چه ډېره ښه جلسه وشوه او خلکو په حکومت چه ته یې دی د جلسې نه منع کړي لعنت او ملامت ووې او بیا واپس کوهاټ ته راغلو او کومه علاقه چه د غلته زمونږ نه پاتی وه هلته مو جلسې وکړې جرګې جوړې شوې او خدائي خدمتګار جوړ شول .

## دګانډهي جي په بلنه باردولي ته تګ:

چه دکوهاټ مېنار له راغلو نو خبر شو چه د پېښور نه خبر راغلی دی چه مهاتما جي
غوښتی یم. لیکن په کوهاټ کښې صرف دهغو علاقه پاتی ده ما ویل چه دکوهاټ
دوره ختمه کړم نو بیا به لاړ شم مونږ دهغو دوره وکړه ځای په ځای جرګی جوړی
شوې نو بل استازی راپسې راغی چه ته ګانډهي جي ډېر زر غوښتلی یې او لیکلی دی چه
چه څومره کار ونه پریږده او فوراً باردولي ته راشه زمونږ کار تقریباً ختم شوی و. زه سبا
له پېښور ته لاړم او د پېښور نه باردولي ته روان شوم چه بهوپال ته ورسېدم نو د نواب
صاحب اې. ډي. سي. شعیب قریشي صاحب چه زمونږ دخلافت ملګری و
او د مولانا محمد علي جوهر زوم و ولاړ و ماله راغی جوړ تازه موګرل زما هم ډېر
مهربانه وا و ماته یې ووې چه راځه سفر کښې به ستړی شوی یې او نواب صاحب
وایي چه لږ ارام وکړئ او بیا له به دهغه میلمه یې ما ورته ووې چه هلته به ګانډهي
جي زما انتظار کوی دنواب صاحب شکریه او په واپسي کښې به درشم خو هغه پرې
نه ښودم نو زه ورسره د ریل نه راکوز شوم او ورسره روان شوم چه مهمان خانې
ته ورسېدم نو شوکت علي صاحب هم هلته موجود و او په سباله نواب صاحب راته
ووې چه تابه وایسرای له بوزو هغه سره به دې لیدو کاته وشي او چه ته څه غواړې
هغه به درکړي باردولي ته مه ځه. خو ما دهغوی دې خبرې سره اتفاق ونه کړو
هغوی په ما ډېر زور واچو خو کار ونه شو سباله تری زه رخصت شوم او باردولي
ته روان شوم تېس له سردار پټیل او دیوی داس راغلی وو. تېس ته نږدې د
باردولي اشرم و داد ګانډهي جي اشرم دی او دې کښې همېشه اوسېږي ګانډهي جي

سره مې ملاقات وشو څه خبرې مو وشوې کړمې وه او زه سفر هم په تهرډ کلاس کښې کوم. ومی لمبل او جامې مې بدلې کړې. چه ماذکیر شو نو کاندهي جي سره هوا خورۍ له روان شوم. سي. آی. ډی یو مسلمان انسپکټر زمونږ دخبرو اوریدو دپاره مونږ پسې روان وخو چه څه وخت ورته زمونږ فکر شو نو شرمنده شو او واپس شو کاندهي جي ما سره د سرحد بحث څه لږ ډیر په ورځ کښې پوخل کولو، لیکن دا خبرې ی لا راته کړې نه وه چه د حکومت په شکایت مې رابللې یې. یوه ورځې یو مسلمان پټیل (نمبردار) زما د میلمستیا دپاره راغی او کاندهي جي ته یې ووې چه که ته اجازه کوې نو سبا له به دی زما میلمه شی هغه په ډیره خوشحالی اجازت ورکړو او د تلو نه وخت کښې ورته ووې چه په ده باندې ښې غوښې وخوروه، دلته خو مونږ په دالو نو مړ کړو هغه زه چیل کورته بوتلم دهغه ډیر ښکلی کور و او هغه ډیر په ښه حالت کښې و ډیر محبتی سړې و دهغه هغه اخلاص او محبت به راته هیرنه شی.

## دیوی داس سره دوره:

دیوی داس کاندهي دکاندهي جي په مشوره د باردولی دوره را باندې شروع کړه او څو مره اسشرمونه چه دلته وو هغه ته ول یې را وښودل. ددې اسشرمونو (تربیت گاه) هغه ساده زندگی زما ډیره خوښه شوه تر دې پورې یې په ما اثر وکړو چه زما هم دا خیال پیدا شو چه دخدائی خدمتگار و د تربیت دپاره به زه هم داسې اسشرمونه جوړوم د دی ځای خلکو د ازادۍ په جنګ کښې ډیره قربانی ورکړې وه او تر او سه پورې ډیرو خلکو جایدادونه چه لیلام شوي دې هغه لا هغسې دنورو خلکو په قبضه کښې دي. دلته د مسلمانانو او هندوانو تعلقات هم ډیر ښه وو او د حکومت په ډیرو کوششو نو

**او دباوونو** هم مسلمانانو دهندوانو مځکې اخیستې نه وې اوکه څه ناڅه یې اخیستې وې

هغه یې هم واپس کړې وې ما چه کوم کوم ځای تقریرونه وکړل هغه داسې وو چه مسلمانانو،

دا ملک دهندوانو او مسلمانو دواړو دی او ددې دازادۍ د پاره تاسو دواړو له اتفاق

په کار دی اوکه په چاکښې داهمت نه وي چه دازادۍ په جنګ کښې حصه واخلي نو

دومره خو ورله په کاردی چه دازادۍ په جنګ کښې چه دچا مځکې ارمالونه لیلامیږي

چه هغه وانخلي اوکه چیرې چا اخیستې وي نومناسب دادی چه واپس یې ورته

پرېږدي . مسلمانانو ته مې ووې چه وینئ شئ که چیرې او ده پاتې شوئ نو داکوم

انقلاب چه راروان دی دې کښې به لاهوشئ ؟ انقلاب سیلاب دی او همیشه او ده

قومونه وړي او وینې ابادوی تاسو ویښ شئ او منظم شئ او دانقلاب نه ګټه واخلئ .

څه ورځې پس جواهر لال هم دلته راغی او بیا مونږ تول سره دګاندهي جي بمبئ

له لاړو او دبمبئ نه بیا زه ګاندهي جي او دیوی داس ګجرات له راغوا او دلته ګاندهي

جي دیوبل نوی اشرم بنیاد کښېښود . دلته نزدې دمسلمانانو هم یو عربي مدرسه

وه چه هغوی زمانه خبر شو ما پسې راغلل اوزه او دیوی داس ورسره دهغې مدرسې

کتوله لاړو . په دې مدرسه کښې ډېر پښتانه طالبان هم وو دهغوی په لیدو ډېر خوشحاله

شوم او ډېرې خبرې مې ورسره وکړې . دمدرسې مقام او احاطه ډېره ښکلې وه تول

طالبان او استاذان محبتیان وو او ماسره یې ډېره دمحبته ډکې خبرې وکړې . د

طالبانو په اصرار ما هغوی ته مختصر تقریر وکړو او ورته مې ووې چه زه ستن ډېر خوشحاله

یم چه ستاسو سره مې ملاقات وشو ځکه چه زما ستاسونه ډېر توقعات دي که تاسو

ددنیا تاریخ وګورئ نو قومونه دطالبانو دقربانو په ذریعه ازاد شوي دي . دیوبند اسر

یې هم مجبوره کړو هغه هم ورته یو مختصر تقریر وکړو بیا بېرته راغلو او کاندهي جي سره یو
ځای شو. بېلونو: مدراس ته لاړو او خواوشا په ټوله علاقه کښې وګرځېدو. زما ډېری
ورځې وشوې او دامې خواهش وچه واپس لاړی خو کاندهي جي زه نه پرېښودم او
پوهولم یې هم نه او ماسره به یې د سرحد متعلق خبرې کولې او بیا به یې حکومت سره خط
وکتابت کوو چه په دې کښې ما په اخباراتو کښې ولیدل چه د میا احمد شاه او عبدالاکبرخان
او علی ګلخان وپیربخش دوی په مېنځ کښې جګړه پیدا شوې ده او د ډله بازی جوړه شوې
ده او جوړ ګډوډ ځای شوې ده. د دې په لیدو زه خفه شوم ولې چه زما د ډله
بازو او نفاق نه ډېره کرکه کېږی او زما دا یقین دی چه کوم قوم کښې نفاق او ډلې وي
هغه خپل منزل ته رسېدی نه شی او نن چه مونږ غلامان یو د دې وجه نفاق دی او
پرې جنبې دي ما کاندهي جي ته خپله اراده ظاهره کړه چه زما په غیرحاضرۍ کښې
دا واقعات پیدا شوي دي ماله تلل په کار دی نو کاندهي جي پس له دې نه د وایسرای
تولی قصې راته وکړې. ما ورته ووې چه دا ټول دروغ دي ته وایسرا ته ولیکه چه دا ټول
یې زما برخلاف د دروغو پراپیګنډ دی او که ستا یقین نه کېږی نو مونږ به هم درشو
او هغه خلک به راوغواړه چه تا له چا دا دلیری درکړې دی چه رېښتینولی (سپیناوی)
ورسره وکړم. مهاتما جی زما د دې تجویز سره اتفاق وکړو چه زه به ورته ولیکم چه ته
منصف شه ای هم وایسرا ته ولیکل چه لاړ د اروان ما باندې ډېر تاکید کړی وچه
تا ضرور سرحد ته لاړ شه نو که ته ماله اجازه راکوې نو زه به هم سرحد ته لاړ شم. د وایسرای
نه دا جواب راغی چه ستاسو د راتلو ضرورت نشته دی او نه زه دا مناسب ګڼم چه په
دې وخت کښې ته سرحد ته لاړ شې نو کاندهي جي ما ته ووېل چه زه پوه شوم ته په حقه

ي، پرنګيان دانه غواړي ته خپل کارکوه او بيايې ديويد اس ته ووې چه دی احمد آباد له بوځه او دهغه خاې هغه اشرام ورته وښيه او دهغه خاې خلک چه هلته دي هغه ورته وښيه. زه او ديويد اس احمد اباد له روان شو او چه هلته ورسيدو نو خورشيد بهن سره موپه تيليفون ملاقات وشو او دهغې داره هغه اشرام له لاړو.

د احمد آباد ډير مزيدار او ښکلی اشرام دی او ډير عجيبه خاې کښې دی او ديولوی خور په غاړه اباد دی ټول اشرام کښې ديويد اس وکس زلم د اشرام نر ښځې زمانه چاپيره شول او ما سره يې ډيره مينه محبت ښکاره کړه ماښام چه زه څه وخت دلمونځه فارغ شوم نو ددوی ټول ماله راغلل او د سرحد متعلق يې ما نه سوالونه شروع کړل چه دبعضي سوالونو په اوريدو به زه حيران شوم ولي چه دهغو به هيڅ بنياد نه وهغه به صرف زمونږ دبدنامولو پراپيګنډه وه. دخورشيد بهن دخواهش وچه احمد اباد ته نزدې يو پښتون پير دی او دهغه ډير مريدان دي او ډير رسوخ لري نو که چيری هغه مونږ سره ملګری شي نو دهغه په ذريعه مونږ ډير څه کولی شو ما سره هغه پير له لاړ شه ما ورته ووې چه زما خو هيڅ انکار نشته خو دا کار ددی قسم خلکو نه دی او نه يې ددی قسم خلک کولی شي زه ددی قسم خلکو پسې ډير ګرځيدلی يم. ديويد اس هم زما دخبری تائيد وکړو نو پس له هغه يې هغه خبره پريښوده. ما سره ددوی ډيری خبری وشوې او زمانه يې ډير تپوسونه وکړل او ماسره دخورشيد بهن ډير بحث مباحثې نو پس يې داخيال پيدا شو چه زه ستا سره سرحد له ځم او مونږ چه څه وخت واپس کاندهي جي له روان شو نو دا هم دا مره روانه شوه او کاندهي جي ته يې ووې که چيری ته ماله اجازت راکوې نو زه دخدمت دپاره سرحد له ځم نو هغه اجازه ورکړه او ورته يې دا ووې چه

دې خبره سوچ غور او فکر وکړه. احمد آباد باندې ښېږ سوه کاله مسلمانانو حکومت کړې دی دلته د مسلمانانو ډېرې ښې ښې ابادۍ دي مونږ هغه د پخوانو بادشاهانو آبادۍ وکتې دلته ډېرې کارخانې دي چه کپړې پکښې جوړېږي هغه موږ ولیدې او بل پکښې د هندوانو یو لوی قومي کالج دی چه هغه ته «ودیاپیټ» وایي د هغه لیدو له هم لاړو وَدیاپیټ والو زه میلمه کړم او یوه شپه مي ورسره وکړه، دا ډېر ښکلی کالج دی او ډېره ښکلې ابادي ده دې کالج ډېر زیات قوم پرست هلکان پیدا کړي او روزلي دي او هغوی د هندوستان دازادۍ د پاره ډېرې قرباني ورکړې دي چه څه وخت ما ودیاپیټ کالج کتلو نو یو هلک مي ولید وچه زور ور د انهټ لي وهلو ما تپوس وکړ وچه دا څوک دی هغوی وې چه دا د کاندهي جي نوسی دی. په کالج کښې هلکان نه وو د تحقیق نه را ته معلومه شوه چه هغه ټول نن په ګجرات کښې خواره شوي دي او کلي په کلي ګرځي نو زه پوه شوم چه دا په رښتیا قومي کالج دی او خپلو طالبانو کښې یې قومي جذبه پیدا کړې ده او دا دوی له چه داګوم تعلیم ورکیدی شي دا رښتینی تعلیم دی.

په احمد اباد کښې ډېر لیښتانه دي هغوی سره مي هم لیده کاته وشو هغوی هم د خدایي خدمتګارۍ په حقیقت پوه کړل په اخري ورځ د احمد اباد د هندوانو مسلمانانو یوه لویه جلسه وشوه په ز ډګونو ښځې، نر، پکښې شریک شول، هغوی ته مي یو مختصر تقریر وکړو د هغوی د هغې مینې محبت شکریه مي اداکړه او ورته مي ووې چه مونږ یوه ورور ولي جوړه کړې ده چه د هغه نوم خدایي خدمتګاري ده خدایي ته خود خدمت ضرورت نشته د خدای خدمت د خدای د مخلوق خدمت دی او مونږ که هندوان او که مسلمانان یو د خدای مخلوق یو د ښمنانو دیو بل نه جدا کړي یو خو په حقیقت

کښې یو یو. جلسه ختمه شوه او مونږ واپس ګانډهي جي له راغلو. ګانډهي جي له دوالیسرای
لار د ولنګډن خواب راغلی و زما په لیدو په خندا شو چه ته بالکل رېښتینی یې او
حکومت درواغجن دی. حقیقت دا دی چه حکومت د خدائي خدمتګارو د تحریک
نه یوېږی او دا تحریک نه غواړی. زه پوه شوم او اصلیت راته په ښه شان معلوم شو
والیسرا وایي چه دلته مه راځئ او ما ته هم لیکي چه تا ته د سرحد د تلو اجازه نشته نو څه
تا سو خپل کار کوئ حقیقت دا و چه د حکومت د دې پراپیګنډې نه مطلب دا و چه
د ګانډهي جي او زمونږ په مینځ کښې مخالفت پیدا کړي ما ونیسي او زمونږ تحریک ختم
کړي. او چه حکومت پوه شو چه ګانډهي جي په هیڅ شان دوی نه پرېږدي نو مونږ
د هغو د پنځو نه پچ شو، دوی ته معلومه شوه چه که مونږ دې ونیسو نو د کانګرس
داسوله ماتېږی. زمونږ د پرکسان دوی دا ایکسو چوالیس په دفعه (د قانون د
یو سل و څلور څلویښتمې مادې په حکم) نیولی وو. د دوی مطلب خو زما په نیولو کښې
و خو دې کښې ناکامیابه شول. ګانډهي جي زه یوه میاشت ځان سره وساتلم او چه
د هغه تسلی وشوه نو زه یې رخصت کړم. دیو یل اس هم ما سره د احمد اباده پورې
راغی زما د هغه ځای نه د روانېدو په وخت د مهاتماجي سکرټر مها دیو دیسایي
صاحب راغی او ماله یې یوه لویه پرېره راکړه چه هغه مهاتماجي ته زمونږ د چارسدې
اسسټنټ کمشنر لیکلې وه دا هغه پرېړنګی و چه حبیب نور پرې حمله کړې وه او هغه
پرې پچ انسی شوی و. د بابړې د دراماې قصه هم پکښې وه هغه راته ووې چه د
خواب مهاتماجي له را ولېږه ما چیټې جیب کښې واچوله او کاډې کښې راروان
شوم یوه شپه مې اجمیر کښې، یوه شپه مې جیپور کښې او بله شپه مې دیلي کښې

وکړه او بیا کلي ته واپس راغلم.

## بابړه کښې ډرامه او زمونږ کمزورې ملګرې:

څومره چه به حکومت مونږ سره سختي کوله هومره به زمونږ خلک پوهیدل او وچتیدل او څومره چه به زمونږ تحریک ترقي کوله او خدايي خدمتګار زیاتیدل هومره به حکومت خپل زور او ظلم زیاتولو. دچارسدې او بابړې بعضې ماشومانو هسې د توقویوه ډرامه وکړه لیکن حکومت خو بانه لټوله زه په دوره وم ډپټي کمشنر زمونږ سکوتر عبدالاکبر او احمد شاه او عبدالله شاه وغوښتل او په دوي یې دومره رعب واچولو چه عبدالاکبرخان د ډرامې والونه خپله بیزاري څرګنده کړه داجرئت یې ونه کړو چه ډپټي کمشنر ته یې ویلي واي چه داخو د هلکانو لوبه وه، داسې لوبې هلکان تول عمر کوي خو حکومتونه دومره اهمیت نه ورکوي. حکومت ته چه زمونږ کمزوري معلومه شوه نو فوراً بله ورځ یې چارسدې ته فوجونه اوتوپونه راغلل او د ډرامې هلکان یې ګرفتار کړل او فوجونو یې د پرانګو بابړې او چارسدې په کوڅو کښې ورخوشي کړل. بله دا چه په یوه عامه جلسه کښې دچارسدې په جامع مسجد کښې میا احمد شاه په دې هلکانو ملامتیا وویله او خپله بیزاري یې ترې ظاهره کړه چه ددې نتیجه داشوه چه حکومت هغوی ونیول او یو یې بوکال او دوه یې دوه نیم کاله په دې دومره معمولي خبره قید کړل.

زه چه د دورې نه واپس راغلم نو پرانګو، بابړې او چارسدې له لاړم خلکمې جمع کړل او د صبر تسلي یو تقریر مې ورته وکړو او د حکومت په دې قسم پالیسي مې نکته چیني وکړه چه داخو د هلکانو په توقه وه حکومت ترې بوقه جوړه کړه. زمونږ خلکو کښې چه خفګان او مایوسي پیدا شوې وه هغه لرې شوه او تسلي یې وشوه. زمونږ په ملګرو باندې

دېپټي کمشنر دومره يره او هيبت را وستو چه ماته په دوه پښو شو چه ته ټوله ورځ
دوري کوې ، جلسې کوی او په هغو کښې غير ذمه دارانه تقريرونه کوې او خلک دومره
خدايي خدمتګار شول چه په هغو قابو مونډل ګران شو ، په دې وجه موښږ د تحريک
نه استعفا کانی ورکوو . چونکه ددې زمونږ زاړه ملګری وو نو زما د دوی استعفا
کانی خوښې نه وې نو دا فيصله مو وکړه چه مردان ته لاړ شو او قاضی صاحب عطاء الله
خان او ثمين جان سره دې کښې مشوره وکړو . مونږ لاړو او د قاضی صاحب سره
مو شپه شوه د شپې مو دا خبرې شروع کړې ، زما عجيبه ملګري وو په کار خو دا و
چه د شپې ورځې په کار کولو ماته داد راکړې وای خوزه يې ملامته کولم . ددې ټولو
خواهش دا و چه زه دې دا جلسې پرېږدم او ددوی په شان په قلاره دې کښېنم
ما ورته ووې چه کار را باندې مه پرېږدئ او چه تاسو څنګه وايئ هغسې کار به کوم
تاسو ماله پوليکلي تقرير راکړئ زه به هم هغه په جلسو کښې خلکو ته کوم ليکن هغوی دا
هم ونه منله او دا ته يې ووېل که ته دا جلسې بس کوې نو مونږ استعفا کانی ورکوو قاضی
صاحب ، ثمين جان او د هغوی نورو ملګرو د هغوی ملګرتيا کوله مادوی ته ووې
چه د کانګرس لاړ اوړون سوله چه ده دا عارضی سوله ده او دا رونډ ټيبل کانفرانس
چه دی دا کاميابېږی نه او دا چه کله ناکامياب شو نو دا ټولو نه اول به ما نيسی او که
مونږ تقرير وکړو او که ونه کړو که جلسې وکړو او که ونه کړو نو هم ترې خلاصيدی
نه شو نو دا مونږ له خدای يو وخت راکړی دی په کار دی چه ددی نه فايده اوچته
کړو او شپه او ورځ په ځان يوه کړو او په دې خپل قام پسې وګرځو او چه دا تاسو
دا وايئ چه خپل تقرير کښې دا خبره مه کوه چه ... د پېرنګی پوښکو مومات کړې دی

او پاتې پښتنو ملا وتړئ چه دا بل ښکرلي هم مات کړو » نو اوس تاسو ماته ووائي چه زه دا ونه وايم نو څه ووايم ؟ هغوی ماته وويل چه ته وايه چه مونږ حکومت ته لاس ورکړي دی ما ورته ووې چه زه ستاسو نه پوښتنه کوم چه ايا په دی خبرو به پښتانه پوه شي او کومه جذبه چه زه پيدا کول غواړم هغه به پکښې پيدا شي ؟

دهغوی خبرو ته مې مجبوراً غاړه کښېښوده چه دوی را نه جدا نه شي حالانکه دا خبره ماته ښه نه ښکاريده او عجيبه خولا داوه چه زمونږ دوه جلسې مقرری شوی وې او دهغو اعلانونه هم شوی وو يوه سودم کښې او بله دخليلو په پښين وړې کښې راته لي ووې چه دې له به هم نه ځې ، ميا عبدالله شاه او جعفرشاه ووې چه مونږ خو استعفا ورکو ونن دی او که سبا ولې چه حکومت مونږ گرفتار وي . مونږ ډېره تسلي ورکړه خو رضا نه شو بيا مونږ ورته ووې چه ښه ده استعفا ورکړئ خو چه اخبارونو کښې يې چاپ نه کړئ ځکه چه حکومت به ددی نه ناجايزه فايده اوچته کړي خو هغوی دا هم ونه منله دهغوی دا خيال ؤ چه ددی نه مونږ حکومت خبرو وچه مونږ ددی تحريک نه ويزاره يو . زمونږ دې نورو دوستانو ورته ووې چه دا خبری دحکومت نه هسې هم پټې نه پاتې کيږی خو بيا هم هغوی په اخبارونو کښې اعلان وکړو . شپه ډېره تلې وه ددی خبرو نه پس مونږ اوده شو خو دغه شپه په ما ډېره بې ارامه تېره شوه او تلې خوب مې ونه کړی شو ما دی خپل بد نصيبه قوم ته کتل چه اول خو دوی دخدمت څوک نه وی او که څوک يو نيم پيدا هم شي نو څوک دخدمت موقع نه ورکوی . سحر چه زه او قاضي صاحب ذکرجبل و دپاده لاړو نو ما قاضي صاحب ته

داخبره وکړه چه ښه ده چه تاسو دانا روا په ماکوئ نو چه دقیامت په ورځ حساب
کتاب کیږی نوزه به ستاسو ګریوان ته لاس اچوم او ددې ټولو خبرو ذمه واربه
تاسوئ او ستاسو ددی فیصلی نقصان چه قوم او ملک ته رسیږي ددی ذمه
واری به هم ستاسو په سر وي نو قاضی صاحب ماته دوی چه زه څه وکړم ما ته
هم داخبره مناسبه نه ښکاري خو که ته لي منو نو دوی ټینګ او مونږ په ډاګه
پریږدي . چه چای موڅکله نو قاضی صاحب دوی سره د صودم او دسپینی
وړی ذکر وکړو او دوی یې په دی رضاکړل چه دې جلسوله دی دی لاړشی
خو په دی شرط چه تاسو ورسره لاړشئ او چه تاسو ورته څنګه وائ هغسی تقریر
به کوي یوی جلسی له ورسره میا صاحب احمد شاه او بلی له ورسره عبدالاکبر
خان لاړل . د صودم په جلسه کښې چه قوم کومه سپاسنامه ورله ورکړی وه
نو په هغی کښې داذکر هم و چه تاسو د پښتنو دشان سره چه دیو ک خدایی
خد متګار و اعلان کړئ او داالزم دي مونږ ددی ته زیاتو ته تیاریو . ددی
علاقی خانان او ټول خلک دقاضی صاحب دکار په برکت مونږ سره دملګرتیا
د پاره تیار شو . دسپینی وړی جلسه چه شروع شوه نو ډیری ښځی هم دی جلسی
له راغلي وې چه په دی کښې یو هوایي جهاز راغی او په دې ښځو راغوټه شو
دېږی ښځی وتښتیدې لیکن ماچه ورته اواز وکړو چه تاسو څنګه پښتني یئ
چه دهوایي جهاز نه تښتئ نو ټولی واپس شوې ، هوا باز خپل جهاز د بر حمله
دهغوی په سر و نو تېر را تېر کړو چه ښځی و نه یریدې نو مایوسه شو او واپس
لاړ و چه جلسه ختمه شوه نو زه د میا صاحب سره کلی ته راغلم نوری دو ری

پاتی شوی اوزه دکلی نه بهرته تلی نه شوم د خدای دی فضل ته کوره چه زما تلل راتلل بند شو نو بیا خلکو اتمانزوله تلل راتلل شروع کړل زما کار جاری شو او ډیر ښکیلو میا صاحب چه د لویی جرګی سکوټر و د خضر ډیری معاملاتو د فیصلی دپاره یی لویه جرګه اتمانزوله راوبلله چه کار ختم شو نو پیر شهنشاه او سردار دام سنګه ماته د دوی کولو ووی ماورته ووی چه زما خو عذر نشته خو صلاح صاحب عبد الاکبر خان او احتشام شاه میا صاحب زه د دوړو نه منع کړی یم تاسو که ما غواړی نو د هغوی نه اجازت واخلئ: هغوی میا صاحب مجبور کړو او ماله یی اجازت راکړو او هغوی سره د دوی دپاره روان شوم. ما د کوهاټ او بنو کلی په کلی دوره وکړه او ډیری ورځی می پکښی تیری کړی ډیری جرګی جوړی شوی او ډیر خلک خدایی خدمتګار شول. چه د هغه ځایه واپس راغلم نو سید فضل لطیف په هری چند کښی د لویی جلسی انتظام کړی وو او لوموند و اورا منیزوله یی دعوت نه لیږلی وو. هغه زه هغی جلسی له بوتلم ډیر مخلوق جلسی له راغلی وو جلسه وشوه ما پکښی تقریر وکړو چه: ای پښتنو ورونو مونږ ټول یو قوم یو او د یو بابا اولاد یو زمونږ مثال د یوی ونی دی چه د یکښی ډیری ښاخونه وی خو مونږ لی یو وی او چه څوک د هغی ونی نه یوه ښانګه پری کوی نو د هغی ونی سوری ته نقصان رسی او که د هغی ونی مونږ وچ شی نو ټولی ښاخونه یی وچی شی نو نن ورځی پیرنګیانو لګیا دی د غه ښانګی ورو ورو پری کوی، تاسو ولیږ شی که د غه ښانګی ختم شی نو ستاسو بچی به په نور پاتی شی او د سوری به یی ورک شی او که چیری د غه مونږ وچ شو نو د غه ټولی ښانګی به یی وچی شی یوه به هم پاتی نه شی، زه تاسو ته

دایم چه دښمن لګیا دی تاسو ورکوی او په دی کوشش کښې دی چه دا مونږ وچ
شی که تاسونه دا مونږ وچ شو نو بیا به ورک شئ. پاڅئ! داچیل کور جوړه کړئ
دا پېل بېلوالی پریږدئ یو قوم شئ، که یو قوم شوئ نو ستاسو دنیا به هم اباده شی
او اخرت هم. چه جلسه ختمه شوه نو زمونږ د تنظی کارکنان کلی ته رخصت شول او زه او
فضل لطیف باچا بلدکی ته او بیا دانی زوته لاړو او دهغی علاقی دوره موو کړه چه د
هغه ځایه واپس شوم نو غلام محمد خان دلوند خور دجلسی انتظام کړی ؤ زه
او میا احمد شاه او عبدالاکبر خان هلته لاړو، دلته هم ډېره لویه جلسه وشوه او
ډېری زنانه ورله راغلی وې او په هغه جلسه کښې ماسره زنانو داوعده وکړه چه:
«د که د ظلمونه پوره نه شوه - مخو افغانه جینکی به دې ګټینه» جلسه چه ختمه شوه نو
میا احمد شاه او عبدالاکبر خان واپس راغلل او زه یې هغوی ته د بائیزو د دوری
دپاره پرېښودم او غلام محمد خان سره پاتی شوم. مونږ د بائیزو او شموزو
دوره وکړه. زه د بائیزو دکارکنانو نه ډېر خوشحاله شوم ځکه چه هغوی پخپله
علاقه کښې ډېر کار کړی و او د تولو نه زیاته زما دخوشحالی خبره داوه چه کوم ځای
به جلسه وه او چه کومی ښځی به په کوتو (باغونو) جلسی ته ناستی وې نو هغو سره به
ځرخې هم وې او هغوی به د جلسی شروع کېدو نه وړاندې ځرخی کولې بله داچه
غلام محمد خان او زرین خان به زما د ارام ډېر فکر کولو د دوی په برکت به زه په
ارام وم، بله داچه غلام محمد خان او زرین خان په زنانه وکښې ډېر کار کړی و.
په لوند خور کښې د ښځو جلسه وشوه، په زرګونو ښځی ورله راغلی وې او ماله یې سپاس
سنامه هم راکړه او تقریرونه یې هم وکړل په دې زه خوشحال شوم ولی چه بغیر

د ښځو نه یو قوم ترقي کولی نه شي ولې چه زمونږ د کور او بچو تول پرورش د هغوی
په لاس کښې دی او زمونږ د کالې چه کومې دوه پایې دي نو یو سړی دی او
بله ښځه ده نو تاسو پخپله خیال وکړئ چه یوه پایه پنچړوی نو کاډی به څنګه لاړ شي؟
په سپاسنامه کښې دوی دا مصرع لیکلې وه: "لا که د ظلمونو پوره نه شوه - فخر افغانه
جینکی به دې کښې" له دې ځایه زه او غلام محمد خان دیوی ورځې د پاره
یوسفزو له لاړو هلته د یوسفزو یوه عظیم الشانه جلسه وه، زرګونو خلک او خدائی
خدمتګار جمع وو داسې لویه جلسه ما بل ځای لیدلې نه ده، ما په جلسه کښې تقریر
وکړو چه خدائي خدمتګار ځان ته خدائي خدمتګار وائي، لیکن خدای ته د
خدمت ضرورت نشته، د خدای خدمت د هغه د مخلوق خدمت دی او د خدای
مخلوق یوازې مسلمانان نه دي تول د هغه مخلوق دي، که هندو دی که سکه دی
که عیسائي دی زمونږ فرض د دنیا نه ظلم ورک کول دي او مظلوم د ظالم نه خلاصول
دي. زمونږ به د هغه قوم او حکومت مخالفت کوو چه څوک د خدای په مخلوق ظلم
کوي که ظالم زمونږ ورور او مسلمان هم وي. بله دا چه زمونږ خدمت به د خدای
د پاره وي د څه غرض د پاره به نه وي مونږ له چه څوک څومره تکلیف راکوي زور
زیاتی را باندې کوي مونږ به بدل نه اخلو بلکه مونږ به صبر کوو او د هغه سړي،
قوم یا حکومت د پوهولو کوشش به کوو، چه جلسه ختمه شوه مونږ د شپې د آرام
د پاره سودم ته راغلو دلته زمونږ ملګرو امیر محمد خان او مهر دل خان او شاکر الله
چا او د هغوی ملګرو په دې علاقه کښې ډیر ښه کار کړی و. دلته هم ډیره ښه جلسه
شوه او د دې ځای په ښځو کښې هم د ازادۍ جذبه پیدا شوې وه، د دې ځای د

دوری دختمید وروسته پس دسلیم خان په ډیری کښی د مومندو لویه جلسه وشوه

دعلاقی ټول مومند راجمع شوي وو او د دې تحریک په غرض او مقصد می پوه کړل چه

دا تحریک زمونږ د وروروالی او قامولی تحریک دی او مونږ دا کوشش کوو چه دټولو

پښتنو یوه وروروالی او قامولی جوړه کړو او ددوی ذړونو نه بغض، کینه، تربګنی

او دښمنی لیری کړو چه اتفاق یکښی پیدا شی، محبت او همدردی یکښی پیدا شی

او یو قوم شی. ای وروڼو! که یو قوم شوئ نو تاسو له خدای داسی ملک درکړی دی

چه د دولتونو او نعمتونو نه ډک دی خو ستاسو د بی اتفاقئ په وجه پری نور خلک ګټه

کوي او که تاسو یو قوم شوئ نو ستاسو ملک بل څوک خوړی نه شی ستاسو دنیا

او اخوت به اباد شی او دا داسی ملک دی چه دې کښی مو سره غریب پاتی نه شی ټول

به خانان شی.

دېره ښه او کامیابه جلسه وشوه او خلک د دی تحریک په غرض او مقصد پوه شول

او د انقلاب زنده باد، فخر افغان زنده باد په چغو کښی جلسه خوره شوه. پیاله دی خان

مونږ ښکار درکړی ته لاړو خلکو سره کښیناستو. دلته زمونږ تحریک ښه روان دی او

ډېر مجلسونه مو وکړل او بیا تری رخصت شو. خپل کلی ته لاړم په دې ډېر کړځیدو او

تقریرونو می اواز ناست و مرګ می خوږ بدن ما جوړه شوم لږ ارام می وکړو لیکن زما په نصیب کښی

ارام چیرته و؟ که زه به خلکو پسی نه تلم نو خلک ما پسی راتلل او ارام می نه شو کولی ما به د ډېرو هول

خونه پوهیدل، دا دهغوی هغه د ډېر محبت و او که خبر می ورسره نه کولی نو خفه کیدل به.

**د ډېرنګیانو د جبر و تشدد زیاتوالی:**

د سرحد حکومت دکاندهی لارډ اروین د سولی هیڅ پروا نه کوله، ورځ په ورځ

ي نوی نوی حکومته او قانونه يه مونږ لګول اول خوخدايي خدمتګار په چونوبند وو چه نه
رځي. بيا يي په سړکو نو هم ګرځيدو ته نه پرېښوول، بيا حکم جاري شو چه څو مره جرنيلي
سړکونه دي د هغو ته څلور څلور ميله يو خوا بل خوا جلوسونه جلسي او په ورډو کښې ګرځيدل
ل دي، علاقه په علاقه د دې نه علاوه دفعه ايک سو چواليس (۱۴۴ مه ماده) ولګيده او
ليس ته اختيار ورکړې شو چه تاسو پخپل حکم چه څوک نيسئ نيوی شئ. په صوبه سرحد کښې
ليس راج جوړ شو. يوه ورځ زه د خان بهادر ميا مشرف شاه د زوی فاتحې له تلم څلور
دايي خدمتګار بادر دئ هم راسره وو چه د مردان د جوند وادې له ورغلم نو زمونږ
ليد وسره يو پوليس سنتري راملګه کړه او د عام سړک د دروازې زمونږ موټر ته
ه کړه بله لار نه وه مونږ د موټر نه کوز شو او هغه ته مو ووې چه دا خو عام سړک دی
بله لار هم نشته مهرباني وکړه دروازه راته ليرې کړه هغه راته ووې چه سړک مرګ نه
نم ماته خو دا حکم دی چه دسرو جامو سړي په دی سړک مه پرېږده او که هغه څه ويلي
يايي په توپک وله. توپک يي مونږ ته مخامخ کړو او راته يي ووې چه که تلی شي نو لاړ
ئ! چا چه زه پيژندم هغوی ورته ډېر ووې چه داسی مه کوه دوی ته دروازه ليرې کړه
ووی چه ماته د خپل افسر حکم دی دروازه دوی له نه شم ليرې کولی مونږ واپس شو
نهو په غاړه د پوليس لاين سړک ته راووتو تانهی دارمو د دی خبری نه خبر کړه هغه
ووې چه زمونږ صاحب سره په دې کښې ليدل په کار دی ماورته ووی چه دا خو
د صاحب حکم دی دليد ونه به څه جوړ شی؟ تاسو فکر وکړئ چه ستاسو ما سره داسی
ل وي نو عام خدايي خدمتګار و ته به څو مره تکليف وي؟

په کلو کښې لا رو کو څو کښې به پوليس بې ګناه خلک وهل سواره به راتلل کلو کښې ګرځيدل

اود خلکو ستړونه به یې ماتول، لیکن مونږ د خپل طرف نه په سوله ټینګ اوسیږو او د داسې
کارمونه کولو چه په مونږ ئې الزام راشي او د اتول تکلیفونه مونږ په صبر او استقلال تېرول
او بیا په اخره نوبت دې ته ورسېږ وچه دوهلو په ځای به یې خدائي خدمتګار قتلول د
شپې به د دوي بارډرلارل په دفتر کښې چه به دکوم خدائي خدمتګار دیوټي وه هغه به
یې ونیو او چه څه به ورسره وه هغه به یې ترې واخیستل او بیا به یې په توپک ووېشتو. د غه شان
یو صوبه دار چه زمونږ یو خدائي خدمتګار غریب بې ګناه په اورمړوکښې و ویشتو هغه ورته
چغې وهلې چه زه یم او هغه یې شهید کړو، د کلو خلکو پولیس ونیول او توپکې یې ترې واخستے
خو زمونږ تحریک دومره اثر په پښتنو کړې وچه تشدد یې ورسره ونه کړه صرف رپوټ
یې وکړو او چه اسسټنټ کمشنر راغي نو ټوپکې یې ورکړې. پیرنګیانو ته په ډېر قهر به دي ورتلو
چه خلکو تشدد نه کولو پیرنګیانو به خلک مجبورول چه تشدد وکړي چه مونږ ورته بهانه
جوړه شي او سبه پرې زړونه یخ کړو او برباد او تباه یې کړو. د خدائي خدمتګار و اصل
صبرو خپل ځانونه یې خدای ته سپارلي وو او په دې یقین وچه یوه ورځ به زمونږ ه د
مظلومیت رنګ راوړي. پیرنګیانو به ویلې چه مونږه دې خلکو حیران کړي یو مونږ کو
کوو چه دوی تشدد وکړي. د تشدد علاج خو مونږه سره شته ځکه چه مونږ سره د تشدد
د ډېر سامان دې خو د عدم تشدد د علاج راسره نشته.

The non violent pathan is more dangerous than the violent pathan

پیرنګیانو به داخبره ډېره کوله چه:
د عدم تشدد د په اصولو روان پښتون د متشدد پښتون نه ډېر خطرناک دی
چه د کراچي د کانګرس د سالانه جلسې نه واپس راغلو زمونږ د صوبې لاټ صاحب
ما سره ملاقات کولو خواهش ظاهر کړو او ماله یې د بعضې کسانو په خولې خوابونه راولیږ

لیکن ماچه د پیرنګیانو زور او ظلم او زیاتي ته کتل نو زړه مي نه غوښتل چه لاټ صاحب
سره ملاقات وکړم اونه مانه پکښي د قوم او ملک څه فاید ښکاریده ولي چه یوطرف ته لي
با وجود د سوبې زمونږ د رانیز و قبیلیان پری نه ښودل او بل لي د لوبو توقو په درامه
زمونږ بچي ګرفتار کړل او په خدایي خدمتګارو لي توره تیاره جوړه کړې وه، په دی وجه
ما دهغه د ملاقات نه انکار وکړو لیکن زما د انکار باوجود حکومت اصرار کولو چه ما
سره دی خامخا وبني نو یوه ورځ زما مشر ورور ډاکټر خانصاحب راغی او راته یې
وویل چه د حکومت د ډیر اصرار دی نو ملاقات ورسره وکړه نو ما ورته ووې چه لاټ
صاحب زمونږ د جماعت د صدر او سکرټر سره ولی ملاقات نه کوي ولې چه ذمه وار
ملک خو هغوی دي او زما خو څه ذمه واری نشته او که چیری ما سره ملاقات کول
غواړي نو زه ورسره په دي شرط ملاقات کوم چه موجوده وخت کښې د حکومت
د طرفه کوم مشکلات مونږ ته پیښ دي که دهغې حل کول په اخلاص او ایمانداری
سره غواړی. لیکن لاټ صاحب دی شرط ته غاړه کښېنښوده او وې ویل چه په
سیاست کښې ایمانداری نه وی نو ما ورته ووې چه ایمانداری نه وی زه داسی
ملاقات کول نه غواړم ځکه زما سیاست د ایمانداری دی په دې وجه هغه ملاقات
ونۀ شو.

څه ورځې پس زمونږ ملګری میا احمدشاه صاحب د څه خبری د پاره مسټر
ټرنټ چه د پولیس نائب جرنیل و او زمونږ د صوبې د سی. آی. ډی لوی افسر و
ګی او بیا د واړه لاټ صاحب له لاړل، لاټ صاحب بیا هغه سره زما د ملاقات
خبره تازه کړه نو میا صاحب ماله راغی او ما نه اړ شو چه لاټ صاحب سره ملاقات

وکړه ما ورته ووې چه ماته په ملاقات کښې څه عذر نشته خو زه پکښې څه فایده
نه وینم ستا او دهغه دا ګفتګوی هم تسلي بخښ نه دی او بیا دپرانګرد فوج متعلق دا
ځواب چه مونږ سره طاقت دی او بیا دلادې نه دبنډ ولو ځواب چه مغه پښپایي خوست
سوختمک و. دمیا صاحب طبیعت زما په انکار خفه شو نو بیا یې جرګه راوغوښته او جرګې
ته یې دا مسئله پیش کړه او جرګې په کثرت رائ دا فیصله وکړه چه ملاقات کول نه دي
په کار د په دې میا صاحب نور هم خفه شو لیکن په دېرو منتو نو قاضي صاحب او علي اصغر
خان میا صاحب رضا کړه ، د فیصلې نه پس ما دهغه نه پوښتنه وکړه چه فردوس خان
او غلام محمد خان تاسو د ملاقات په حق ښتکه لاسونه وچت کړي و دهغوی په خیال
کښې ووې چه مونږ خو دومره دي ویری نه لاسونه وچت کړي وو چه که نه وو سره ملاقات
ونه کړې نو مونږ به ګرفتار کړې او بیا به جنګ شروع شي.

دیو جماعت کارکنان چه دویری نه داسی کار ونه کوي نو دهغو نه قوم ته او
جماعت ته نقصان رسیږي. دا خبره حکومت دلته پوری نښوه ، وایسرای ته یې
ورسوله او زما بر خلاف یې غلط پراپیګنډه شروع کړه چه دده د پرنګیا نو
نفرت دی دده مونږ سره ذاتیات دي ځکه مونږ سره ملاقات نه کوی او
وایسرای په دی الفاظو ګاندهي جي ته شکایت وکړه ، ګاندهي جي ماته ولیکل چ
ته خپل لاټ سره ملاقات وکړه زه پوه یم چه ته په څه وجه ملاقات کول نه غوا
خو دوی ستا بر خلاف پراپیګنډه کوی او په خلکو کښې ستا متعلق غلط فهمي پید
کوي اخر زه مجبور شوم او دا خبره می دجرګې انتظامیې ته پیش کړه او دهغ
په اجازه می لاټ صاحب سره په نتهیا ګلي کښې ملاقات وکړو.

په دوو او دوو کې قسمه یو مشهور کلی دی ... دی کلی یو دولتمند ملک جبار خان ... د بېر ... مزرج ... وفادار او د لینبتنو ملک مردار وو او په خپله ... تکاره ... ظلمونه کول ... او ... د ... خانزاده قوم ...



مبالات صاحب ته په خدایي خدمتګارو د ظلمونو او د رانیزو د قیدیانو دی ر ...

ووي لیکن باوجود د دې خبرو د پېرنګیانو په پالیسي کښې څه فرق رانغی بلکه

د اول نه زیات شول. حقیقت دا دی چه د دوی د اتول ملاقاتونه د دې قوم او

ملک د فایدې د پاره نه وو. د دې کښې د دوی مقصد دا وي چه دا سړي په څنګه

د وکه کړي خپل مقصد به ترې پاتې کړو او د خان سړي به یې ملګري کړو او ماڅه مرګ

ملاقاتونه کړي دي نو بغیر د لالچ نه مې پکښې بل څه لیدلی نه دي. حکومت د

مالیې په بهانه ظلمونه شروع کړل دا نه چه ګوندي خدایي خدمتګارو د مالیې نه

انکار کړی وخوله دومره ارزانه شوې وه چه خلک تنګ وو د مالیې وس یې نه کېده

او د مالیې بقایې یوازې په خدایي خدمتګارو نه وې د دوی نه زیاتی په سرکاري

خانانو او ملکانو وې خو هغوی ته یې څه نه وې خوا ران خدایي خدمتګار به یې تنګول

مالونه به یې لیلام کول حوالاتونو کښې به یې اچول او لا د هغوی برخلاف به یې دا پروپیګنډه

هم کوله چه دوی د مالیې ورکولو نه انکاري دي پخپله یې هم نه ورکوي او نور خلک هم

منع کوي حالانکه دا بالکل دروغ وو، خلکو سره به رښتیا مالیه نه وه او خدایي خدمتګارو

سره هم نه وه دې به حکومت ته وې چه دا تاسو نورو خلکو سره څنګه سلوک کوئ

دغسې مونږ سره هم کوئ، مونږ خو هم ستاسو رعیت یو چه بعضې خلکو ته معلومه شوه

چه حکومت د خدایي خدمتګارو په کړولو خوشحالیږي نو په خدایي خدمتګارو یې

د دروغو مقدمې شروع کړې، په دا وه کښې د جبار خان او الامیر ملک د لاسه خدایي

خدمتګار په اورکښې ولاړ وو. په اباز وکښې آفتاب ګل میا او یحیی میا او د دوی نورو

ورونو او عزیزانو خدایي خدمتګار د درګو په کوټو کښې بند کړل او د بوسو لوګی یې

صه به صوبه پښتونخوا کښې کاکا خیل میا گان دولتمند چې ... د
... حکومت سرمایه دار او معتبر جاګیردار وو او ټول دولتمند طبقې سره ګډ وو
... طبقه هم ... به عدم کښې ... اه ل او ملګري وو ۱۲۰ - ۴۶۴

ورته وکړل. ددې کاکاخیلو، میاګانو د پیرنګیانو سره دومره محبت او ادهغوی
دومره وفادار او خدمتګار وو چه څه وخت به د خدايي خدمتګارو د ژاتلو نه خبر شو
نو تو بکې به يې ورپسې واخیستې او دهغوی موک ته به تیار وو. د مالیې په بانه د ننګرام
عبد الله جان میا او دهغه زوی چه په خلکو څومره ظلمونه کړي دي دهغوبیان کول
نه شم ده هم خلک په کوټو کښې بند کړي دي او د بوسولوګي يې ورته کړي دي. فضل الرحمن
خان د شوقدر سرې خو پرېږده د ښځو بې عزتي يې هم کړې ده. بلې هاچه زمونږ
د هشتنغر په کلو کښې او میرو کښې د پولیس تانه دار ګرځېدو او هر چانه به يې پو
کوله چه دلته هم څوک خدايي خدمتګار شته او چه څوک به خدايي خدمتګار وه
به يې وهلو، تکولو او بې عزته کولو. د ملکنډ ايجنسي د سخاکوټ کلي نه یو څو ماشوم
زما دلیدو د پاره راتلل نو پولیس ترې خبر شو اول خوبي په دوی دېر د با وونه ډکړل
چه دوی ونه یرېدل او خپله اراده یې پرې نه ښوه نو بیا یې دومره ووهل چه سر
يې ورله مات کړل. هغو کښې یو ماشوم زما ورور ډاکټر خان صاحب مات سر کاندځ
جی له ولیږلو چه هغه دغو ورځو کښې شمله کښې و او دا تول حال يې ورته ووې. حقيقت د
دی چه پیرنګیان دغو ورځو کښې بالکل لیونې شوي وو او ګنهکار او بې ګناه تميز نه د ئ کاندهي جي دا
خبرې وایسرائ ولیکلې او ورته يې ولیکل چه دګی د تحقیق د پاره زه سر حد ته تلل غواړم خو وایسرائ اجازت
ورنه کړو. حقیقت دا ده چه پښتنو باندې څومره ظلم کیدو دا تول پیرنګیانو کولو. هغوی دانه غوښتل
چه پښتانه دې راویښ شي او منظم دې شي او په دې کښې د اتفاق او سیاسي شعور پیدا شي.

## ددیوې داس ګاندهي د سرحد دوره:

مهاتما جي وایسرائ ته دوباره ولیکل چه که حکومت ماله اجازه نه راکوي نو بیا د

جو اهر لال یلیا پټیل له اجازت ورکړیا چه هغوی سرحد له لاړ شی او تحقیق وکړی چه څرګ
سوله ماتوي؟ خو حکومت د دی نه هم انکار وکړو ځکه چه سوله خو دوی ماتوله بیا
کاندهي جي وابراته ولیکل چه زما زوی دیوی داس له اجازت ورکړه حکومت دی ته
هم تیار نه شو اخو چه ګاندهي جي د حکومت نه مایوسه شو نو وابیرال ی ته ي ولیکل چه بنده ده
ماله اجازت راکوئ او که نه راکوئ زه سرحد ته ځم، نو پس دهغی نه حکومت په دی رضا
شو چه بنده ده میرز دیو یداس له اجازه ورکوو په دی شرط چه هیڅ قسم جلسی او جلوس ونه
کړی. بګاندهي جي مونږ له تار راکړو چه دیویداس سرحد له راځی لیکن استقبال جلوس
و نمایش به نه وي. دیو یداس راغی او مونږ د ده استقبال ونه کړو. او دیو یداس چه
وخت راورسیدو نو مونږ ته ي هم دغه تماځي هغه خیال ظاهر کړو چه څه وخت مونږ د
پېښور نه اتمانزو ته روانید و نو مونږ دیو یداس ته ووې چه د پېښور نه تر اتمانزو پوری
سړک د لسو لسو ګزو په فاصله خدایي خدمتګار د حفاظت د پاره دریږی ودرو و خو هغه د
دې نه انکار وکړو چه سباله مونږ تهکال له لاړو نو خبر شو چه د لته ارباب عبدالغفور خان
د باد ر کلی عاشق شاه باچا او په ترڅه کښی ډیر بیګناه خدایي خدمتګار د حکومت ګرفتار
کړی و، او د ارباب عبدالعفور پلار ارباب جمعه خان د دیوی داس د پاره میلمستیا
کړی وه. د خلیلو، مومندو زمونږ ټول کارکنان موجود وو او دیوی داس ته ي هغه
ټولی قصی وکړی چه حکومت مونږ سره کړی وي. بله ورځ اتمانزو له روان شو. مونږ چه
ښناره روانید و نو موټر نه و، نو په لاری کښی کښېناستو او چه د شاهي باغ نه لږ وا ورلیدو
د زرین خان د تر نګزو موټر راغی د وه بنکلی خدایي خدمتګار په بنګلو ورد وکښی
کښی ناست وو او سره جنډه پری لګید لی وه مونږ د لاری نه کوز شو او موټر کښی

کښېناستو . زه او ډیوید اس او خورشید بهن د دې واړه روستو کښېناستو موټر
روان شو او ډېر په تېزۍ روان شو . یو مشهور ظالم ډاکو مفرور چه پېر قاضي مفرو
مشهور و مونږ ته د سرده، یاب د پل په غاړه قلي خان چه د حکومت سړی و . د لو خو څنګل
کښې کښېنولی وچه زمونږ موټر ورورسېد و او هغه دوه خدائی خدمتګار چه د موټر مخ
کښې ناست و د هغې با قاعده ورد ئې وی نو د هغې ډاکو نو د اخیال راغی چه دا به ځ
موټر وی نو بېړته کښېناستل او بله داچه دوی ته خو دا معلومه نه وه چه مونږ به موټر کښې
څو ولې چه مونږ دا ډې نه په لارې کښې ناست و . خو مونږ پېسې چه کومه لارې وه هغې
د غه مفروران را پاڅېدل او ډزې یې پرې وکړې . دا هغه لارې وه چه مونږ پکښې ناست
و، سړې پکښې زخمیان شول ، مالونه یې تړې واخیستل او یو بل ته یې ووې چه هغوی
دې لارې کښې نشته چه مونږ ورته ناست وو . دغه لارې چه چارسدې ته را ورسېده
مونږ ته یې دا ټول حال ووې بیا ما ته زمونږ د موټر هغه ډرېور ووې چه مونږ دغه ځا
له را ورسېدو نو ما وليدل چه دغه لو خو کښې یو سړی را وچت شو او بیا کښېناستو غا
چه دوی به دا خیال پیدا شوی وي چه دا موټر خو د جرنیل معلومېږي ځکه چه جنګ
هم پرې لګېدلي ده او باور دی فوځیان هم پکښې ناست دي او ودی له خو قلي خا
پولیټیکل ایجنټ ډایری ورلېږلی وه چه باچا خان او دوه ملګری یې په لارې کښې
در روان شو دوی ځکه په موټر غرض ونه کړه او په هغه لارې یې ډزې وکړ
چه مونږ پکښې د پېښور نه ناست وو . مونږ رز ډو کښې ووچه د دې لارې دو
نه خبر شو نو چه د چارسدې هسپتال له ورغلو هغه زخمیان مو هم پکښې ولیدل
هغوی را ته دا ټول حال ووې . د دغو ډاکې ما دونه چه خلک خبر شول د غو ډاکې

پسی دا کړی او نور خدایی خدمتګار او عام خلک دا وو تل خود وی تري وتښتېدل او چه تیرانه وو سېدل نو ژمونږ اپرېدی وروڼه ددی واقعی نه خبر شوي وو هغوی بې وسیول او هغه مالونه یې تري واخیستل او دا قاضي مفرور یې قتل کړو او کومی روپۍ چه زمونږ په سرعلي خان ورکړي وي هغه تري هغوی واخیستی او د هغو هغه سامان یې مونږ ته را ولېږلو او هغه مونږ خپلو خاوندانو له ورکړو چه هغوکښې یوه تاچه هم وه.

دا اپرېدو وروڼو دا خیال وچه که دا دپښتنو مېلمانه دګاندهي جي زوی او خورشید بهن دوی وژلي وای نو دپښتنو به په هندوستان کښې خومره بد نامی شوې وه د غه وجه وه چه اپرېدو دوی قتل کړه که نه وي نو ازاد قبایل هغه سړي نه وژني چه ددی ته پناه ورورسي وي. ددی مفرور په سر پېرنګیانو اپرېدو له ډېری روپۍ ورکولي، ولی هغوی نه اخیستي.

دا شکوری چه د پېرنګیانو دحکومت دا منصوبه خدای نا کامیابه کړه که د ګاندهي جي زوی یا د خورشید بهن چه دا د « دادا بايي ناوروجي » نوسی وه دا دابائي ناوروجي دکانګرس بانی وو او دده په کوشش کانګرس دی ځای ته رسېدلی وو که دا دلته په سرحد کښې وژل شوی وای نو پېرنګیانو له به هم دپښتنو برخلاف دپراپیګنډې ښه موقع په لاس ورغلي وه پښتانه به یې دنیا کښې بد نام کړي وو، او هندوان او پارسیان به یې هم دپښتنو نه ویزاره کړي وو او کوم اثر چه په هندوستان کښې او په کانګرس دخدایي خدمتګارو په وجه پیدا شوی وو هغه ته به ډېر نقصان رسېدلی وای او پښتانه به بیا دپېرنګیانو زور او ظلم ته یوازې پاتی شوی وای او دنیا سره به یې دستر ګو لګېدو شان نه وو پاتی شوی. خو مونږ خدایي خدمتګارو د

او د دوو په ځای دی یوه شی ، د شپې مونږ د میا صاحب میلمانه شو
محمد زمان میا صاحب احمد شاه میا مجبوره کړچه زمونږ سره
بمبئی ته لاړ شی احمد شاه میا هم د تلو انتظام وکړلو ، زه او دیوید اس
د ده په تلو ډیر خوشحاله شو او سبا له بمبئی ته روان شو په لاره کا دی کبنی
میا صاحب او دیوید اس کا غذات درست کړل .

## دړاونډ ټيبل کانفرانس ورځو کښي

دجرګي مشرانو کښي اختلاف ، شملې ته زما تګ ، شمله
کښي مصروفيت ، فارن سکرټر او
هوم سکرټر سره
ليدل

په بمبئی کښې د آل انډیا کانګرس کمیټئ جلسه وه او هغې له د ټول هندوستان ممبران
راغلي وو ځه وخت چه مونږ د بمبیئي ټیشن ته ورسیدو او د کاندی نه کونږ شو تو میا احمد شاه
ماله راغلی او وې پرخفه و. ده راته ووې چه ماته خو دیوید اس ووې چه ته د کانګرس ځای
له لاړ شه دا خو داسې شوه چه ماله یې جواب راکړو، امیر محمد خان د هوتی ورته ووې
چه ماته یې هم داسې ویلی دی لیکن ما ورته ووې چه کوم ځای فخر افغان صاحب وی نو
به هم هلته یم نو بیا هغه چپ شو لیکن میا صاحب وی چه زه یې ستا سو نه منع کړی یم او ما
یې ځواب راکړی دی تاسو سره نه ځم ما هم د میا صاحب د راضی کیدو کوشش وکړو خو دی
رضا نه شو نو بیا زما ځه مسلمانان د وستان ټیشن له راغلي وو موټر یې راوستلي وو هغوی
سره مې په تلو رضا کړو لیکن د میا صاحب طبیعت خراب شوی وبله ورځ مونږ د میا صاحب
لید وله لاړو. دی مو ولید ولیکن طبیعت یې درست نه ؤ ماته د کلیانړی د یو مهربان
پښتون نه معلومه شوه چه میا صاحب د پرخفه دی او وایی چه بس نور کار نه کوم او کلی ته
روان دی. دیوی داس چه ددی واقعی نه خبر شو هغه ورته ووې چه ما خو په دی
خیال ویلي وو چه دلته به تاته تکلیف وی په ځکه به ملا سته وی، دال، چپاتی به خوری
او هلته د کانګرس د میلمنو د پاره د پرسنه انتظام دی خو د میا صاحب خفګان لیری نه
شو ما هم میا صاحب ته د پرمنت وکړو چه واپس مه ځه چه مونږ ټیله فیصله کانګرس ته
وکړو او د کانګرس هغه بله دله هم راغلی ده ځکه ستا موجودګی ضروری ده خو چه سبا له مونږ
خبر یدو میا صاحب تلی و زمونږ معامله د کانګرس ورکنګ کمیټئ ته پیښ شوه او زمونږ د

حذ ز ۀ پاک چه عزت ورکوی ده عزت څوک والس کولے نـ
دد باچه خان رفیقان په قصور کښی داوه چه دا عزت صرف ده باچ
خان وَسے کیګی . ۱۲



دصوبهٔ سرحد لویه جرګه نوم یې منظور کړه او مالیه یی اختیار راکړو چه څنګه ستاخوښه وي په سرحد کښی صغمی تنظیم جوړ کړه .

## دجرګې مشرانو کښتی اختلاف :

زمونږ دپیښور یوورو سردار عبدالرب نشتر په دغه وخت کښی دا اعتراض وکړو چه دوی (خدایی خدمتګار) خو دکانګرس په اصولو کاربند نه دی ، بلکه فرقه دارانه نعري هم او په مثال کښی یې او وئیل چه دوی دنعرهٔ تکبیر الله اکبر اواز کوی ، کماندهی جی دده نه تپوس اوکړو چه د الله اکبر څه معنی ده ، نشتر صاحب جواب ورکړ چه : خدای لوی دی . نو کماندهی جی ورته جواب کښی او وئیل چه ولی خدای ورکوتی دی څه ؟

دغه شان دوی کامیاب نه شول ، ددی فیصلی نه پس مونږ سرحد ته را روان شو دراسیبد وسره ماخیل کار شروع کړو او دمردان او صوابۍ په دوره روان شوم میاصاحب خفه دیوی داس نه شوا ونقصان یی خپل قام ته ورسولو او زما مخالف شوا و چه کلی ته ورسید و نو دبلې دلې جوړولو کوشش یی شروع کړو او د صوبهٔ سرحد لویه جرګه یی هم را وغوښته چه دبمبیی دفیصلی دنه منلو دپاره یی تیاره کړی ، مالیی هم خبر را کړو او دجرګې ورځی له راغلم او دا معامله لوی جرګې ته پیش شوه میا صاحب د بمبیی دفیصلی په مخالفت کښی تجویز پیش کړو او تقریر یی وکړو او تائید یی عبدالاکبر خان او غلام محمد خان دلوند خوړ وکړو ، بیاما تول حقیقت ممبرانو ته ښکاره کړو ممبرانو زما سره اتفاق وکړو او دبمبیی دفیصلی تصدیق وشو .

زه چه په دوره صوابۍ له لاړم نو ډیر خوشحاله شوم ځکه چه ددی ځای خدایی- خدمتګارو په هر کلی کښی ډیر زیات کار کړی وا و هر ځای جرګې اوخدایی خدمتګار په

ډېر تعداد کېښې جوړشوی و. زمونږ دتحریک ډېر زور یا په تحصیل چارسدی کېښې دا و یا په صوابی کښې. ددغه ځای خدایی خدمتګارو راته یوه ډېر عجیبه قصه وکړه دوی وې چه تا ته معلومه ده چه زمونږ دترنګزو حاجی صاحب سره ډېر زیاده تعلقات دي. په ابتداکښې چه تاسو راغلی او دلته خدایی خدمتګاری جوړه شوه نو په دغو ورځو کښې مونږ حاجی صاحب له دمومند و غازی اباد له تلی وو هلته مونږ دحاجی صاحب دمشرځوی فضل اکبر باچاګل سره په مجلس کښې دخدایی خدمتګاری خبره وکړه هغه وې پام کوئ چه کوم ځای خدایی خدمتګاری ونه کړئ داسې تحریک نه دی مونږ ډېر حیران شو بیا مو حاجی صاحب نه خان له پوښتنه وکړه خکه چه هغه مو پیرو او مونږ لې مریدان وو چه بابا جی باچاخان زمونږ علاقه کښې دخدایی خدمتګاری تحریک شروع کړې دی او مونږ او نور خلک پکښې شریک شوی دی نه مونږ ته ووایه چه دا تحریک ښه دی او که نه؟ نو حاجی صاحب راته ووېل چه دغه تحریک دپېرنګیانو په حق کښې دی که مخالف دی؟ مونږ ورته ووې چه دپېرنګیانو مخالف دی نو هغه راته ووې چه دغه خو جهاد دی او تاسو کوئ نه ما دپېرنګیانو مقابله ونه کړه شوه نو دپېرنګیانو نه دې تور دوغږ نو له راغلم او باچاخان دغه جبلخانو تکلیفونو او تاوانونو ته سینه دال کړې ده. په خدایی خدمتګاری کښې ملا دده سره وتړئ؛ مونږ ورته ووې چه هسې باچاګل صاحب وایی چه خدایی خدمتګاری مه کوئ نو هغه لې را وغوښتو او ورته یې ووې باچاګله داسې خبری مه کوه که نه وی عاق به دې کړم. مونږ به دې ډېر خوشحاله شو چه حاجی صاحب هم ستاسره کلک ملګری دی.

زمونږ دصوبی جرګی چه فیصله زما په حق کښې وکړه نو میا احمد شاه صاحب خپله استعفا پیش کړه او منظور شوه او خلک خپلو کلو ته روان شول، زما طبیعت هم د دوری په وجه

خراب و پېښوونه لارم چه ډاکټر صاحب به ډارو راکړي او نه به لږ ارام وکړم لیکن دوېره-
اسماعیل خان رمضان خان راپسې راغی چه پاڅه چه دېره اسماعیل خان ته لاړ شو هلته
دېره برباد ی شوېده حکومت هندوان مسلمانان جنګولي دي او ډیر خلک یکښې مړه
شوي دي او ډېر اسباب ونه او ابادی سوزېدلي دي

شملي ته رمانک:

چه پېښور ته ورسېدو نو ماله دهاتما ګاندهی له طرفه تار راغی چه ددی تار په لیدو
شملي ته راروان شه رمضان خان او ما په دې فیصله وکړه چه د شملې نه په مخه به ډېرو
ته درشم. رمضان خان چه ماته د ډېره اسماعیل خان د هندوانو دتباهي او بربادی
تول بیان وکړو زه پوه شوم چه پیرنګیانو دوی له هغه سزا ورکړه چه دوی زما د رومبی
دوره په موقع زما استقبال به ډېر شان او شوکت سره کړی و او نه ما عظیم الشان جلوس
ی په تول ښار کښې ګرځولی و تول ښار یې ښایسته کړی و . ډپټی کمشنر دوی ته ویلي وو
چه د باچاخان استقبال جلوس جلسه تا سومه کوئ که نه دوی نو ثباه به شئ خو دوی ونه منل
زما زړه ته په دی واقعه لویه صدمه ورسېده چه دا پیرنګیان به زمونږ د مسلمانان تر
کومه په دنیا کښې شرموي او بد ناموی.

زه د دوه خدائي خدمتګارو سره شملې ته په ګاډی کښې روان شوم . چه زمونږ ګاډی
لاهور ته ورسېدو نو سردار سردول سنګه کولیشر سره زما د نورو ملګرو او دوستانو تېښن
ته راغلي وو او ماته یې ووی چه د سکهانو یو لوی کانفرانس دی او زمونږ هغه کنفرانس ته
روان یو او د جلسې ځای تېښن ته نژدې دی نو دوی زه مجبوره کړم او جلسې له یې روان
کړم په جلسه کښې ښې تول د ګجرات د جلیانوالې دوستان ولیدل باران ورېدو او مایو

مختصر تقریر وکړو او سکهانو ورونو ته مې ووې چه په ۱۸۵۷ع کال کښې ستاسو او زمونږ
پنجاب او سرحد په وجه هندوستان غلام شوې دې اوس زمونږ او ستاسو فرض دې
چه پاڅو، ملا وتړو او هندوستان ازاد کړو. دا کوم نفاق او جګړې چه زمونږ د دښمنانو
زمونږ په کور کښې پیدا کړې دې دا د هندوستان دازادۍ دپاره ډېرې خطرناکې دي
مونږ له بغیر د خپل ذاتي غرض د ملک او قام خدمت په کار دې. چه جلسه ختمه شوه نوراني
زاده هنسراج صاحب په زور جلسه ته بوتلو او د ښپې په کاډي کښې. هغه ځای په شملې ته
روان شو سحر وختي زمونږ ګاډي کالکا ته ورسېده او د هغه ځایه په موټر کښې شملې ته
روان شو چه ورسېدو نو جواهر لال اډې له زمونږ د بوتلو دپاره راغلی و. مونږ هغه سره
د مهاتماجي ځای له لاړو ولیکن مهاتماجي د وایسراې ملاقات له تلی ولږ ساعت پس
راغی او هغه سره مو ملاقات وشو. دلږ ارام نه پس مونږ ټول یو ځای شو نو ګاندهي جي
د وایسراې د ملاقات حال ووې او ما او جواهر لال نهرو ته یې ووې چه حکومت د صوبه
سرحد او یوپي تحقیقات ته تیار نه دې اوس چه ستاسو څه رنګه رضا وې چه هغه شان
کړې شي مونږ دواړو ورله دا ځواب ورکړو چه ستا په رضا مو رضا ده او په دې فیصله
وشوه چه مهاتماجي دې ګول میز کنفرانس له لاړ شي. وړاندې دا فیصله شوې وه چه په
دې دواړو صوبو کښې چه حکومت کوم ظلمونه کړې دي که حکومت د دې تحقیقات نه کوي نو
ګاندهي جي دې ګول میز کنفرانس له نه ځي. خو مونږ په دې نتیجه د ډېر غور نه پس ورسېدو
چه ګول میز کنفرانس خو د ټول هندوستان د ازادۍ سوال دې صرف د دوو صوبو د ظلمونو
د تحقیقات په نه کولو ګاندهي جي له د کنفرانس نه پاتې کېدل نه دي په کار. موټرونه راغلل او
سامان یکښې کښېښودې شو چه ګاندهي جي ایمرسن هوم سکرټرې سره په ټیلفون خبرې

وکړې نو د غو دواړو صوبو نه علاوه نورې خبرې چه حکومت د مهاتما ګاندهي سره منلې
وې د هغو نه هم په شا شوی و. مهاتما جي د موټرونو نه سامان راکوز کړو او موټرونه یې
رخصت کړل او په راونډ ټیبل کنفرانس کښې یې د شرکت اراده پرېښوه چه څه وخت موټرونه
رخصت شول نو جواهر لال ورته ووې چه انتظام په کار دی ولې چه په تلو کښې صرف یوه
سبانۍ ورځ پاتې ده ددې ته وینا په کار ده چه د سبا ورځ د پاره دې تیار واوسي خو
مهاتما جي د دې خبرې په اورېدو ډېر په قهر شو او وې وې چه هیڅ ضرورت د انتظام نشته
که حکومت غواړي چه زه دې ګول میز کنفرانس کښې شریک شم نو هغه به ددې خبرې
انتظام وکړي چه ما په وخت ورسوي. ګاندهي جي ته ما ووې چه ته دغه شان حکومت ته
کلک شه او کلکې خبرې ورته وکړه نو ته به وګورې چه بیا به حکومت د هر څه د پاره تیار
شي ولې چه دا یو ډېر عجیبه حکومت دی. مهاتما جي وخندل او وې ویل چه زه اوس خدای
خه متشکر کېږم. ما چه څه رنګې وې هغه شان وشوه چه سبا له حکومت هغه ټولې خبرې
منظورې کړې او د ګاندهي جي د رسولو د پاره دیو خاص ګاډي انتظام یې هم وکړه او د
بمبئ میل او د جهاز د پاره یې تارونه ورکړل چه د ګاندهي جي د رسېدو پورې ایسار شي.
تلو په وخت کښې ګاندهي جي ووې چه په راونډ ټیبل کښې هیڅ نه کېږي زه صرف
د اروان د زړه د پاره ځم. د دې کنفرانس د کامیابۍ امید نشته تاسو خپل
کار جاري وساتئ او ماته یې وویل چه هاول فادر سکرټر او ایمرسن هوم سکرټري
ته لیکلي دي چه د دې موږ سره نه ګوري او هغوی ستا سره لیدل غواړي نو
هغوی ضرور وګوره. ما ورته ووې چه ګاندهي جي زه د پیرنګیانو سره ملاقات نه
کوم نو ده راته وویل دا زه چه کوم نو ما ورته وویل چه ته خو مهاتما جي او زه خو کمزوری

انسان هم په ښو یلاني پېښه نه بزدم هسي نه چه وښو یږم، خو چه ته وایي زه به
ورسره وو ینم د رخصتیدو په وخت کښي ماورته وویل چه گاندهي جي چه سرحد ته
مظلوم دی چېر ته هېر نه نه شي. ددې په اورېدو يې وخندل او ويې ويل چه
د سرحد ورونړه زه هېرولی نه شم. زما دواړه خدايي خدمتگار د گاندهي جي ځکنې
او مونږ ورپسې روان شو. د خلکو دومره غوبل وچه مونږ يې کډ وکړې اوزه د مها
تماجي نه ډېر وروسته پاتې شوم او دادوه خدايي خدمتگار زما مکرې ده سره
د تيس پورې لاړل. زما ليدو د پاره يوه دوه پيښوريان راغلي وو په دې وجه
د تيس پوري ونه رسيدم. درواند په وخت کښي گاندهي جي هغه دوه خدايي
خدمتگار ځان ته نزدې کړل او ويې منول او دوی ته يې وويل چه که تاسو ونه وای نو
زما راو رسيدل ډېر گران و.

شمله کښي زمونږ مصروفيت:

د پوليس افسرانو او نورو خلکو چه په دغه موقع يې دا خدايي خدمتگار وليدل
نو ددوی د کار گذاری نه ډېر متاثره شول او ددوی به يې ډېر تعريفونه کول ا
د خدايي خدمتگارو په شمله کښي ډېر رعب قايم شو او مونږ چه به دغلته بازار
کښي گرځېدو نو نور خلک خو پرېږده پيرنگيانو او ميانو به هم خدايي خدمتگار
منډې وهلې او ويلې به يې چه دا هغه ريډ شرټ (سرخپوش) دي. چه سبا
د پنجاب يو خان بهادر چه په انټيليجنس ډيپارټمنټ کښي و دغه زوی چه زمونږ
په اسلاميه کالج پيښور کښي سبق وې ماله د چايو دعوت راکړو ماورته وويل چه
پلار خو د سرکار نوکر دی هسي نه هغه ته نقصان ونه رسي خو هغه زما خبره منظ

نه کوړه نوښنه مې ورته کړل. د دې طالب علم پلار سيسل هوټل کښې اوسېده مونږ له
یې هلته چائې وکړه. زه سره د هغه دوو خدائي خدمتګارو هوټل ته ورغلو هلته د بېر
پېرنګيان ناست وو چاې يې څکلې نو چه دا خدائي خدمتګار يې وليدل نو په ډېر تعجب
یې ورته وکتل مونږ له یې د دغه ځاى نه ځان له د چاى څکلو انتظام کړې وو او ما سره
یې د فيروزخان نون چه هغه وخت د پنجاب وزير وو او دوه د پنجاب ټيکه داران يې
مېلمانه کړي وو مونږ چه کښېناستو نو لږ ساعت پس سر فيروزخان نون راغى او چه
زه يې وليدم نو ښه شور يې جوړ کړو او را ته يې ووې: «خانصاحب! آپني تو غضب کر ديا
آپ کانګرس کې ساته مل ګئے هو؟» خانصاحب! تا خو عجيبه کار وکړو د کانګرس سره
ملګرى شوې؟ او س به هغوى مونږ له ځپل حق را نکړي. ما ورته ووې چه ملک صاحب
ته لږ په ارام سره کښېنه نو خبرې به وکړو چه کښېناستو نو ما ورته ووې چه ملک صاحب
مونږ څه چل کړي واى مونږ خو کانګرس له تا سو لېږلي يو که چيرې تاسو زمونږ مدد
کړې واى نو مونږ کانګرس څه کوو. مونږ خو اول لاهور ته درغلو او مسلم ليګ ته
موووی چه مونږ ستاسو مسلمانان ورونه يو زمونږ يو تحريک دى هغه اصلاحي
تحريک دى مونږ د پېرنګيانو د حکومت خلاف نه يو، مونږ د ځپل قام اصلاح کول
غواړو او پېرنګيانو په مونږ زور ظلم زياتى او تور شپه جوړه کړې ده او دنيا زمونږ نه
خبر نه ده. مونږ د مسلم ليګيانو نه دا هيله وکړه چه تاسو زمونږ په حال دا دنيا خبره کړئ
چه دى پښتنو څه ګناه کړې ده چه دې پېرنګيانو يې تور شپه جوړه کړې ده چه په پښتنو
دا دومره ظلم ولې کېږي؟ او په مسلم ليګ پسې دهلي او شملې ته هم لاړو خو تاسو زمونږ
ملا د ته غاړه کښېنبوده او مونږ له ملا س را نکړو نو مونږ به څه کول؟ مونږ مجبور

وو سیلاب اخیستی و نو کانګرس لاس راکړو او مونږ ورسره ملګری شو او
اوس هم زه تاته وایم چه یوازی د پنجاب مسلمانان دي زمونږ ملګرتیا وکړی نو مونږ د
ټول هندوستان د مسلمانانو په ملګرتیا پسی نه ګرځو صرف ستاسو د پنجاب د مسلمانانو
ملګرتیا غواړو که تاسو دا کوئ مونږ اوس هم د کانګرس پرېښودو ته تیار یو اوس هم
د کانګرس ورکنګ کمیټۍ ناسته ده زه به استعفا ورکړم نو سر فیروز خان نون ووې چه:
د هم سوچ کر جواب دینګے » یعنی مونږ به په دې خبره فکر وکړو او بیا به ځواب درکړو
بیا مې هغه شپاړس کاله پس بهار صوبه کښې چه هلته یو لوی فساد شوی و ولیدو
ما ورته ووې چه ملک صاحب تا خو ماله هغه ځواب رانه کړو ؟ نو وې خندل سترګی
یې ښکته کړې او روان شو. نو اوس دې د هندوستان مسلمانان فیصله وکړي چه ګرم مونږ یو که پنجاب؟
څه وخت چه زمونږ خبرې او چای ختم شوې او روان شو نو زمونږ میزبان په شمله
کښې د سبا د پاره د ډوډۍ دعوت راکړو سبا د ډوډۍ په وخت کښې چه ورغلو نو په
هوټل کښې ټول پېرنګیان او میماني په کرسو کښې ناستی وې مونږ له په بیل ځی کښې انتظام
شوی و. زمونږ سره د لاهور د سول اند ملټری ګزټ د اخبار چلوونکی او بل د کلکتې د
سټیټ مین خبرلوڅی هم په دې دعوت کښې وو. ما سره د انګریزی اخبار ایډیټر
خبرې شروع کړې چه اوس خو سوله وشوه نو د خدایي خدمتګارو څه ضرورت دی
ما له په کار دی چه دا تحریک فوراً ختم کړې؟ ما ورته ووې ښه دی خو په یو شرط هغه
وې هغه څه دی؟ ما ورته ووې چه هغه دا دی چه پېرنګیان دې ددې ملک نه لاړ شی
او دا ملک دې ازاد کړي نو بیا به دا تحریک پخپله ختم شی. ددې په اورېدو هغه غصه
شو او خو مره چه مونږ ددې میز نه چاپېره ناست و نو هغوی ټول و رپوړی وخندل

وړي هم ډېرې خبرې وشوې . دوی دی ختمه شوه اکثر میلمانه رخصت شول . خان بهادر صاحب وه هغه زوی او د کلکتې خبر لوڅي پاتې شول . خان بهادر صاحب خدایي خدمتګارو متعلق ما نه تپوس وکړو ما ورته توله قصه بیان کړه بیا هغه راته ووې چه ستا سو دی تحریک برخلاف ما ډېرې غلطې خبرې اوریدلی وې خو اوس ما ته معلومه شوه چه دا ډېر نیک تحریک دی او د خدای د مخلوق د خدمت د پاره دی او اخو کښې یې راته ووې چه زه هم خدایي خدمتګار یم او دې خدایي خدمتګارو سره یو ځای تصویر وباسم بیا یې یو انګریز فوتوګرافر راوستو او مونږ سره یې یو ځای تصویر وښکو د هغې نه پس مونږ رخصت شو او خپل ځای له دارام د پاره لاړو .

## د فارن سکرټرا و هوم سکرټر سره لیدل :

ما ژیګو د مسټر هاول فارن سکرټرې خط راغی چه سبا له ما په لس بجې وو وینه او د هغه سکرټرې راته ووې چه ستا د تلو د پاره به زه خپله د کښه د ر ولیږم ما ورته ووې چه ستا مهربانی ده زه خدایي خدمتګار یم ، د کښه کښې نه ځم ځکه چه سړی یې راکاږي سبا له به خپله پښو درشم سبا له ټیک لس بجې ورغلم هغه د بنګلې نه بهر ته راووتو او زه یې خپل دفترته بوتلم . لږ ساعت پس اسسټنټ فارن سکرټري ویلې هم راورسیدو . دی ما سره ډېر بلد و . دی په پېښور کښې د پېټې کمشنر هم وو او د بند وبست هتمم هم پاتې شوی و . خبرې شروع شوې ما ورته تولې قصې وکړې هغه ما ته ووې چه زمونږ او د پښتنو خو ډېر ښه تعلقات وو دا څه چل وشو چه په مونږ او تاسو کښې نفاق چا پیدا کړو ؟ ما مسټر ویلی ته وکتل ما ورته ووې چه دده نه

تپوس وکړه چه داټولي قصې د مستر ویلي په مخکښې شوي دي یا زما او د هاوا
د تحریک متعلق خبرې شروع شولي او په خبرو خبرو کښې هاول صاحب ماته د بر
شنه شنه باغونه و ښودل خو ما ورته ووې چه زه په دوه پیسو کوزاده کولی شم . د
پیسي دوه دي او په بله پیسه تلپلی باتینګی ماله خدای هر څه راکړي دي . زه
څه نه غوارم چه څه غوارم هغه د قوم د پاره غوارم . که څه راکوی نو هغه زما دی قوم له
راکوئ . حقیقت دا دی چه لکه څه رنګ مستر هاول اوډیل د پښتنو او انګریزانو
تعلقات ښه وو خو په انګریزانو کښې د کریفت جیمی سن . میجر کول اوکیرو غونډي کسان
راپیدا شول او دا تعلقات یې خراب کړل . په دې کښې د مستر ایمرسن هوم سکرټري
ټیلفون راغی ماته ده ووې چه ایمرسن صاحب دی او وایي چه ماسره دې ملاقات
وکړي ما ورته ووې چه ده خو ماسره د ملاقات وخت مقرر کړي نه دی ، خو ده ماته
ووې چه له دې ځایه ځې لاره کښې بنګله ده ورسره ووینه مستر هاول د پوشریف
سړی ؤ او ماسره یې په ډیر شرافت کښې خبرې وکړې او ده ټول عمر په ملازمت
کښې په صوبه سرحد کښې پښتنو سره تېر کړي دی چه زمونږ ملاقات ختم شو نو مستر
ویلي ووې چه زه به دې د هوم سکرټري دفتر له بوځم لیکن مستر هاول ماسره
بخیله د هغه دفتره پورې پیاده لاړلو نه په ګشته نه په اس سور شو ، اس یې د پسي
سائیس نیولی راوستلو زما په انتظار کښې د مستر ایمرسن هوم سکرټري اردلي
ولاړ و زه او فادر سکرټري له یو بل نه رخصت شو او اردلي زه د هوم سکرټري
دفتر ته بوتلم . هوم سکرټري یو عجیبه سړی ؤ او ماسره یې عجیبه خبرې کولې او
د باوونه یې هم راباندې کول اول خویې راته دا ووې چه تا په میرټ کښې تقریر کړې دی

به د پېرنګیانو مخ‌ته سپین دی او زړونه تور دي که څېرې زه ستا د اخبرې د لندن اخباراتو کښې شایع کړم نو بیا به ستا سو صوبې له هیڅ ورنه کړې او قول پېرنګیان به مو خلاف شي . ما ورته ووې چه د دې خبرې وجوهات خو ما پخپل تقریر کښې څرګند کړې دي او زه په دې رضایم چه زما هغه قول تقریر ته شایع کړې یوازې د اخبره مه شایع کوه چه د ولایت خلک په حقیقت خبر شي او زه یې هم خبرول غواړم .

بیا یې رانه ووې چه ته په حکومت د باوونه کوې چه که څېرې دوی مونږ له خپل حق رانه کړو نو مونږه به داسې وکړو او مونږ به دا وکړو . د پېرنګیانو حکومت داسې کمزوری شو چه ستاسو د باوونو نه به یرېږي ی ما ورته ووی چه زه په چا د باوونه نه کوم زه خو خدائي خدمتګار یم او خو چه زما د قوم خواهش دی په هغه حکومت خبروم . اختر پټ مېړه نه دی چه که څېرې تاسو مونږ له خپل حق رانه کړو نو بیا به وکتې شي نو سرې لږ نرم شو او ولې وې چه مونږ خو تاسو له خپل حق درکوو اخر کښې راته ووې چه خدائي خدمتګار د عدم تشدد پابند نه دی همیشه تشدد کوی ما ورته ووې چه مثال خو راته وښیه تیینګ تیینګی (زنګ) یې وغږولو د ده سکرټری راغی ورته یې ووې چه فائل راوړه هغه لاړ او فائل یې راووړ څیر ته یکښې تشدد راوړنه وتو راته یې ووې چه سرهند کښې لیډران ونیوی شو نو خلک تا نهی پورې ور سره لاړل او جنګي دوهلې چه انقلاب زنده باد ما ورته ووېل چه مانن . ستا نه واوریدل چه چغې وهل تشدد دی چه د هغوی لیډران مو بېګناه ونیول او تانهی ته مو بوتلل نو هغوی به دومره هم نه کول چه دوی سره تانهی پورې تللی وای بیا یې نارې وهلی وای . ملاقات ختم شو او زه د هوم سکرټری نه رخصت شوم . په امیرسن کښې او په هاول کښې څو مړه

فرق دی حقیقت دادی چه ایمرسن په پنجاب کښې لوی شوی وا و هاول سرحد کښې
پښتنو سره لوی شوی و. زه چه واپس خیل ځای له تلم نو دسیسل هوټل سره هغه زمونږ
د کالج طالب علم او د کلکتې د اخبار هغه خبر لوڅی ولاړ وو زه یې په زور هوټل ته بوتلم او د
هغه په کمره کښې چه کښیناستو نو ماته یې ووی چه ته سباله ضرور والیسرای دوینه او خان
بهادر صاحب هم راغی هغه هم ددې خبرې تائید وکړو ما ورته ووې چه زما دلیدو ی
ویلنګډن ملاقات خواهش وخو هغه نا جوړه ده نو په دې وجه یوازې والیسرای سره
نه وینم او په یوه بله موقع به دواړو سره ملاقات وکړم زما والیسرای سره د ملاقات
خواهش نه و ولې چه زما ورسره څه کار نه وهسې می دهغه وخت ولې ضایع کوه خو دوی
د ډیر اصرار وکړ نو ما ورته ووې چه ښه ده که هغه ماته ولیکی نو زه به ورسره ملاقات
وکړم دوی ووې چه هغه خو داسې نه کوی نو ما ورته ووې چه ما هم چاته دملاقات درخواست
نه دی کړی. دوی ماته ووې چه مهاتما جی هم والیسرای ته دملاقات دپاره لیکی ما ورته
ووې چه دهغه به دغه اصول وی او زما دا اصول دی. چه زما څه کار ورسره نه وي نو
هسې دملاقات څه ضرورت دی. زه په شمله کښې دهغه داشنا رای بهادر سره او سیل
دوی رای بهادر صاحب ته ټیلفون وکړو یو بل تجویز یې پیش کړو لیکن ما هغه هم
نامنظور کړو سباله یې رای بهادر صاحب سره په ټیلفون خبرې وکړې: او هغه یې هم ځان
سره ملګری کړو لنډه دا چه هغه ماته ووې چه ته دملاقات دپاره خط مه لیکه ستا سکرټری
دې ولیکی. زما والیسرا سره څه کار نه و نو دا ټولې خبرې راته بې فایدې ښکاریدې خو
دې ټولو دوستانو مجبور کړم. والیسرای ته یې خط ولیکلو د لاندې یې د تاج محمد
زما دسکرټری دستخط وکړو د والیسرای سکرټری ته یې ټیلفون وکړو چه مونږ دملاقات

پاره یوخط درلیږوچه فوراً بې والیسرا ی ته پیش کړې هغه هم خوشحاله شوا وما
ی بهادرصاحب ته ووې چه تاسوزما دضمیرخلاف کارما باندې کوئ او دا مې
ه ته هم ووې چه هرڅیرې زما دضمیرخلاف چا په یوکارمجبوره کړې یم نو دهغه نتیجه
ښه نه ده وتلې. مادبکرد خط جواب راغې چه د والیسرا صاحب طبیعت ښه نه دې سبا
ملاقات کیدې نه شي او دهغه سکرټرماله یوه خاصه چیټې ولیکله او په ټیلفون بې
هم دهغوی نه معذرت وکړو چه والیسرا صاحب خفه نه دې هسې تاسره بل خیال
پیدا نه شي. حقیقت دا و چه والیسرا صاحب په ډېرې خفه شوې وو چه ده ماته ځکله خط
نه دی لیکلی او دسکرټر په ذریعه بې ماله خط رالیږلی دی او زما دهغه ملاقات خبرې
هم ورته رسیدلې وې. زه داویلې شم چه دا زما غلطي وه دې خلکوسره زما داقسم خبرې او
بحثونه په کارنه وو او مونږ خلکوته په کاردي چه په داسې خبروکښې چپ پاتې کیږو
و ډیرې خبرې نه کوو او که مشوره یا څه خبره کوو نو ځپلو همخیالو دوستانو سره کوو
هوسرې خپل رازاوارادې نه خبرول نه دي په کار.

په شمله کښې دیوې هفتې اوام سره زما صحت ښه شو. زما دېرو هندوانو، مسلمانانو
سره ملاقاتونه وشول او دهغوی په ذریعه کښې چه د دېره اسماعیل خان دفسادپه سلسله کښې
کوم غلطې خبرې اوشوې نه حکومت پیدا کړې وو دهغې دلیرې کولو کوششونه مې وکړل د
خدائي خدمتگار تحریک د حقیقت نه مې خبر کړل او تسلي مې وکړه چه داجماعت دخدای
د مخلوق خدمت اوامام دپاره جوړشوې دی او ددوې کارد ملک دازادي او
ترقي دپاره دی. یوه لویه جلسه مو شمله کښې هم وکړه او خلکوته مې تول حقیقت
دخدائي خدمتگارو دتحریک ښکاره کړو. د دېرو مسلمانانو او هندوانو

په دعوتونو کښې شریک شوم او د جمعې په ورځ مې د شملې په جامع مسجد کښې لمونځ وکړو او یو مختصر تقریر مې هم وکړو چه اسلام دنیا ته د څه د پاره راغلی و؟ هغه وخت د مسلمانانو څه حال و؟ او نن د مسلمانانو څه حال دی؟ نن په علماو کښې پراته او خوښ دي حالانکه غلامي په اسلام کښې نشته. اسلام کښې غلامي د خدای لعنت دی، مسلمان او غلامي دواړه متضاد څیزونه دي. د افغانستان کونسل جنرل سره مې هم ملاقات وشو. لنډه دا چه په دې څو ورځو کښې مې د خدای خدمتګارو د پاره ښه کار وکړو او خدای دې پر اېښکنې. ښه موقع په لاس راکړه او زما امیدونه زیات تعاون وشو.

زه د شملې نه امبالې ته لاړم او د لته ما د جېلخانې یو د پېرهوبان دوست لاله دوني چند ولیدلو چه د هغه په بلنه دلته راغلی وم. په امباله کښې مو هم د شپې یوه جلسه وکړه او د جلسې نه پس د ډېرو مسلمانانو او هندوانو سره مې ولیدل. مسلمانان غریبانان دلیلي، د نه ډېر لود لو په وجه داسې بې بادی ته رسیدلي دي چه د سیاسي ژوندکي نه ادو خبر نه دي او نه یې څه خپل داسې جماعت شته او نه د بل جماعت سره کار کوي.

د امبالې نه لاهور ته راغلم پېلټ ستانم زما د جېلخانې د ملګرې ستو وهغه سره د هغه کور ته لاړم. دفتری پریس (ازاد مطبوعات) خبر لوڅي مور او غوښته او چه څه غلطي خبري د سول اینډ ملیټري ګزیټ هغه ایډیټر چه ما سره په شملې په هغه دعوت کښې خبري شوي وې او په اخبار کښې د شهیدا کولو د پاره شایع کړي وې، د هغې تردید مې وکړو. ده په خپل اخبار کښې لیکلي وو چه باچاخان کانګرس نه جدا کېږي. دا خبري چه سر نواب صاحبزاده صاحب عبدالقیوم لوستې وې نو ما پسې یې سړی لاهور ته رالېږه چه باچاخان ته ووایه د خدای د پاره چه د کانګرس نه جدا نه شې او که جدا شوي نو بیا پیرنګیان زمونږ ځولې له هیڅ نه راکوي. په لاهور کښې راته زما د جېلخانې یو ملګري ووېل، چه ته چه همیشه راشې د هندوانو مېلمه کېږې او مسلمانانو سره نه دېره کېږې نو ما ورته ووېل چه په لاهور کښې خو ډېر مسلمانان زما دوستان دي کوم یو راته ووې چه دا شه زما مېلمه شه او زه نه یم ورغلی. زه پښتون یم، پښتنو خو بې ستړه په کور کښې هم ډوډۍ نه خوري.

# خپله صوبه کنبی کار

دېره اسماعیل خان ته، اتمانزو ته واپسي، د احمد شاه معامله،

یاد د پروپه دوره (بنوں، کوهاټ) د سرحد لویه جرګه

د هزارې دوره (پکلي، بفه، شنکیاري، دودیال

مانسهره، سپیله، نوانشهر، ایبټ اباد، هري پور، سرای صالح، کلابټ، پچ، غرغشتي)

د هزارې نه واپس، ترنګزو حاجي صاحب او خدایي خدمتګاري

د خلیلو مومندو دوره، د مانړکانو بانډه، او ورمړ او

خالصې جلسې، لاټ سره لیدل، نوښار تحصیل

کنبي جلسې، صوابۍ تحصیل کنبي جلسې

## د ډېره اسماعیل خان ته تګ:

بیا د ډېره اسماعیل خان ته روان شوم، چه ډېره ته ورسېدم نو را ته معلوم
شوه چه رمضان خان حکومت گرفتار کړی دی او چه د ډېرو د ښار هغه تباهي او
بربادی او د هندوانو او مسلمانان نفرت او دښمنی می ولیده نو ډېر یات خفه شوم
او د تصفیې د پاره می د کوهاټ او بنو هندوانو او مسلمانانو پسې خوا بونه ولیږل
چه هغوی فوراً راشي او د دې مسئلې د جوړولو کوشش وکړي. هغوی زما
جواب فوراً راغلل سلا او مشوره مو وکړه او خان له مو هندوانو او
مسلمانانو سره ولیدل لیکن یو خو حالت ډېر خراب وا او بل پکښې حکومت کوټي ډلې
او خپل سړي لې په هندوانو او مسلمانانو پسې لګولي وو او مونږ لي کامیابي ته نه
پرېښود وغریبانان هندوان به راضي شوي وو لیکن غټو هندوانو سولې ته نه پرېښودل
او مسلمانان د وکیلانو په لاس کښې لوبېدل او هغه یې نه کوله ولې چه هغوی وي چه
زمونږ دکان به سوړ شي. په ډېرو کښې چه کوم خلک د سرکار تعلقدار وو په دې فساد
کښې هغوی ته ډېر نقصان رسېدلی و. دا ټوله کاروایي د حکومت وه او شیخ محبوب علي
چه دلته اسسټنټ کمشنر و او لکه څنګه چه یې د پېرنګیانو د پاره د امان الله خان په
وخت کښې کابل تباه کړی و د غسې د هغوی د پاره د ډېره اسماعیل خان هم تباه کړو.

زه د خپلو ملګرو سره پښیالي له لاړم او هغه خان بهادر له ورغلم او هغه نمایښتي
سرخپوش مې پخپله ولیدل چه فسادي کړي و خان بهادر را ته ووې چه ما له شیخ
محبوب علي چه د دې ځای اسسټنټ کمشنر دی دوه لاري د دې کسانو د رسولو

د پاره واکړې اوې او مونږ خو د حکومت خلک یو څه چه راته وائي هغه کوو، ماورته ووې چه حکومت
به هم وی خو داې خپل قوم دی، خپل قام سره ښوک داسی بد نه کوي. دهغه زوی غلام
سرورخان د علیګړ یونیورسټی نه په چوټیی راغلی و مونږ سره یې د پېره مینه ښکاره
کړه، ماورته ووې چه بابا دی پوه کړه که سباله د دی خپل قام حکومت جوړیږي نو دی
به څه ځواب ورکوي بیاتری واپس د پېرو ته راغلو د خان بهادر عبدالرحیم خان کنډی
په ذریعه کرنل ژل چه دد غه خای د پټی کمشنر و ماله د ملاقات دعوت راکړو خو ما د هغه
بنګلی له تلل مناسب و نه ګڼل او عبدالرحیم خان ته می ووې چه که چیری ستا خای کښی مو
ملاقات کیدی شی نوما ته په کښی انکار نشته. د پټی کمشنر هم پېری خبره راضی شو او هغه
مونږ له د چای دعوت راکړو لیکن مستر ایلام زمونږ د صوبی د پولیس جرنیل و په دوره
د پېرو ته راغلی او د پټی کمشنر ې د داسی ملاقات نه منع کړو خو ده پخپله ما سره د پېرو
د نواب په خان کښی ملاقات وکړو. د پولیس جرنیل منبه سکاو خو د خبرو چل نه ورتلو په
خبرو کښی یې ما ته ووې چه د دامی متعلق چه د حکومت خلاف تا کوم تقریرکړی وزه په
هغه کښی تا هر وخت ګرفتار ولی شم ولې چه ستا ذمه دار ملګری په هغوی الزام لګوی
او تا د هغه خلاف په حکومت الزام لګولی دی ماورته ووې زه د ګرفتاری نه نه یریږم
ځکه خو حکومت ته ربنتیا وایم او څوک چه یریږی هغوی حکومت ته د ربنتیا ویلی نه شی
ته منصف شه چه دا حکومت د توقی نه بوقه جوړه کړی نه ده؟ او د بچو د توقی په دامی له
اهمیت ورکول د داسی حکومت شان شایان دی؟ بیایی راته ووې چه ستا دا حکومت
خوښ نه دی نو بیا ولې د دی ملک نه بل خوا نه ځی؟ ماورته ووې جرنیل صاحب دا ملک
زمونږ دی ازکه ستاسی دی؟ نو ده راته ووی چه ستاسو دی ماوې څنګه د خپل ملک نه

بل ملک له لاړشم او دا به بنه نه وي چه تاسو دا زمونږ ملک مونږ ته پرېږدئ چاى ختم
شوه او مونږ خواره شو .

بیا د رمضان خان ملاقات له لاړم ملاقات مې ورسره وکړ او ډېر حالات را ته
معلوم شو . زه دهندوانو او مسلمانانو په سوله کښې ګډیاوم لیکن په خبر نتیجه ونه رسېدم
بلکه دلوېو هندوانو دا خیال وچه مونږ دخدايي خدمتګارو د لاسه تباه شوي یو
ماورته ووې چه دا څنګه ؟ دوی راته ووې چه دا داسې چه د دی تحریک په وجه
دحکومت رعب وداب پاتې نه شو ، حکومت کمزوری شو او امن يې قایم نه کړی
شو او مونږ لوټ او بربادشو . مونږ خو مزبوت حکومت غواړو ماددې په او ور
دېر وخندل چه بنه ده چه حکومت ته ګناه نشته نو لا لهجي ستاسو مره نقصان
شوی دی او ستاسو په دې بنار کښې څومره خدايي خدمتګار دی ؟ جواب راکړ
چه زما خو خبر نقصان نه دی شوی او نه دې بنار کښې خدايي خدمتګار شته ما ورته
ووې چه دکوم خلکو چه نقصان شوی هغوی خو ماته لیکلې بیانونه راکړي دی چه دا
فساد دحکومت په شرارت شوی دی او مونږ دحکومت له لاسه برباد شوي یو .

## اتمانزو ته واپسي داحمد شاه معامله :

په دې دوران ماته یو خط راغی چه ته فوراً اتمانزو له راشه داسې واقعات پیدا شوي
دی چه دمشورې ضرورت دي . زه لانه وم او ګډیاوم دا کوشش مې کولو چه دهندو او
مسلمان سوله وشي . لیکن ورځ په ورځ مونږ په ځای دد ی چه سولې نه نږدې شو لیرې
کېدو چه په دې کښې جرنیل عظمت خان راغی او زما په نوم يې یو دستي خط راوړی و
هغه کښې لیکلي وو چه د دی خط په لیدو فوراً راروان شه . دشپې مې دعظمت خان نه

پوښتنه وکړه چه خیر خو دی هغه راته ووې چه نور خو خیر دی لیکن میا احمد شاه زمونږ
مخالفت شروع کړی دی . ددې ځای کارکړوړ ونوسحر مونږ تول دده پروته روان
شو . اتمانزو ته ورسید و نو معلومه شوه چه میا احمد شاه صاحب زما مخالفت کښې په خپلو خیالی
خدمتګارو کښې ځانله یوه ډله برابروله کښې مصروف دی او د جرګو په ممبرانو کښې هم د نفاق
د پاره تګ و دو وخط وکتابت یې شروع کړی دی . ددی خبری په اوریدو خفه شوم ولی
چه زما د میا صاحب غوندی تعلیمیافته سړی نه دا امید نه و چه دی به په یوه معمولی خبره
په قوم کښې د ومره نفاق پیدا کولو کوشش وکړی او بل چه ددی نه خبر شوم چه حکومت
زمونږ په دی اختلاف ډیرې خوشحالی کړې دي او خپلو حاکمانو ته یې حکمونه جاری کړی
دي چه د میا صاحب امداد وکړی او د عبدالغفار خان مخالفت وکړئ . جعفر شاه او
عبدالله شاه راغلل او ماته یې دا تجویز پیش کړو چه مونږ دا غواړو چه ته او میا صاحب د
یو خو ملګرو سره زمونږ کلی کښې جمع شئ او مخامخ خبری وکړئ . ما د هغوی دې تجویز
سره اتفاق وکړو او سبا له زه احمد شاه . عبدالله شاه . تاج محمد خان . حاجی عبدالغفار خان
او عبدالاکبر خان د میا جعفر شاه صاحب کلي ته لاړو . یو ځای شو چه دوړه ی موو خوره
نو ما سخته په ډیره کمره کښې کښېناستو او ورونه مو بند کړل . خبری شروع شوې ، احمد شاه
دی خوا اخوا خبرې کولې او چه په زړه کښې یې څه و هغه یې نه ظاهرول یا یې نه شو ظاهرولی
شپه ډیره تیره شوه ماورته ووې چه میا صاحب خپل مطلب ووایه نو هغه بیا هم شپ
شپ وکړل او ویل وې چه ماته دلویې جرګې فیصله منظوره نه ده یوه عامه جلسه دې
وکړې شي او هغوی ته دې دا معامله پیش کړې شي چه هغوی دا فیصله وکړي ماورته
ووې چه ښه ده مونږ ته ستا دا خبره منظوره ده لیکن که هغې عامې جلسې دا فیصله

وکړه چه مونږ د کانګرس نه نه جدا کېږو نو بيا به د غه خبره ومنی؟ نو ځواب يې راکړو چه
بيا به زه استعفا وکړم ما ورته وويې چه استعفا خو دی ورکړې ده چه دعامې جلسې ضرورته
نيا ده يې نو د جلسې څه ضرورت دی؟ بيا يې دا خبره وکړه چه زما به هندوانو باور نشسته
هسې نه چه سباله دا سړی دوکه وکړي نو بيا به مونږ څه کولی نه شو نو ته مونږ له اجازت راکړه
چه مونږ يو بل جماعت جوړ کړو چه سباله زمونږ لاس دهندوانو برخلاف ازاد وی
ما ځواب ورکړو چه زه منافق نه يم زه ددی اجازه درکولی نه شم ولې چه دا خيز د خپل
قوم دپاره مفيد نه ګنړم پاتی دهندوانو دوکه شوه نو زه ددې په باره کښې ستاپه خلاف
کښې داعرض کوم چه ستا داخيال درست نه دی چه کښې مونږ کانګرس سره يو ځای
شو نو مونږ ورپوری وتړلی شو او هندوان چه هر څه کوی مونږ به خپل لاس خو ځولی
نه شو ملکه زه تا سره داو عده کوم چه کله کانګرس مونږ سره دوکه وکړه دهغه ساعت به
کانګرس پريږدو ته به معکښې لي مونږ به درپسې يو او چه ته څه وائې هغه به کوو نو کم
از کم ته دهغې پورې وار خو وکړه اخر ستا زما متعلق څه خيال دی زه خو چه هر څه کوم
خپل ملک دپاره کوم. عبدالله شاه او جعفر شاه هم زما دخبری تائيد وکړو او ويې ويل
چه ګول ميز کنفرانس په لندن کښې شروع دی داد سود او زيان وخت دی مونږ له
انتظار په کار دی او دا خبری پرېښودل په کار دی او بل يې ديو خاص سرکاری سړی
خبره وکړه، احمد شاه ته يې وويې چه هغه ماته ويلی دی چه احمد شاه دی دا خبری
پريږدی په دی حکومت ډيری خوشحالی کړې دی او مونږ له يې حکم راليږلی دی
چه د عبدالغفار خان خلاف داحمد شاه مدد وکړئ ميا صاحب مو په دې رضا
کړه چه په دې زه به اختلاف پرېږدم او په قلاره به کښينم او دنتيجې انتظار به کوم

مونږ. ټول خوشحاله شو او اوده شو سحر وختی چه لوښځ موو کړه نو زه عبدالله شاه
عبدالاکبرخان، حاجی عبدالغفارخان اوتاج محمدخان د جعفرشاه د باغ لیدو له
لاړو زه تړي اود سماتی له لاړم، چه واپس راغلم نو حاجی عبدالغفارخان او
تاج محمدخان خفه ولاړو. راته یې ووې چه احمدشاه میا په ښکاني فیصلی باندې ټینګ
نه شو هغه او مونږ. ته خه نورې قصې وکړې او عبدالاکبرخان یې زمونږ. نه بیل کړ.
زه هم ددې په اورېدو خفه شوم په دې کښې سړی راغی چه چای تیار ده نو چه چای ته
کښېناستو نو احمدشاه صاحب بیا هغه قصې شروع کړې چه ښکاني فیصله شوې وې ماورته
ووې چه ددې خبرو فیصله خو ښکاني شوې ده، اخر احمدشاه میا صاحب دخپل زړه
هغه پټه خبره خو ګنده کړه او ماته یې ووې چه زه ددې خبرې برداشت کولی نه شم چه
ټول خلک دې دیو سړي په خولې پسی روان شي ماورته ووې چه میا صاحب همیشه په
دنیا کښې خلک یو سړي پسی روان وي او دا خو د قوم او ملک دپاره ډېره دفایدې خبره
ده چه ټول قوم په یو سړي متفق شي نو خپل منزل ته ورسي خو دې خبرې ته کتل په
کار دی چه هغه سړی چه خه کوی دخان دپاره کوی او که د قوم دپاره؟ په خپله خوښه
کوي که دملګرو په سلا؟ که دخان دپاره کوی او په خپله خوښه یې کوي نو بیا هغه پسی تلل
نه دي په کار. او دغه ځای ته خلک په خدمت رسېږي نه په مخالفت. ته زمانه زیات
خدمت وکړه هغوی به زمانه زیات ستا خبرې منلو ته تیار شي تا چه په ولایت کښې
سیلونه کول هغه وخت زه ددې خپل قام دپاره په جېلخانه کښې پروت وم او میچني
می اوړولې ددې بحث مباحثونه دا یوه فایده وشوه چه هر سړي د میا صاحب داصلي
غرض نه واقف شو. عبدالله شاه او جعفرشاه غیر جانبداري ظاهره کړه عبدالاکبرخان

ووی چه زه به پس له دی نه سیاست نه کوم او حاجی عبدالغفار خان او تاج محمد خان سره مې وعده وکړه چه تاسو سره به د سکول په کار کښې مدد کوم مونږ ټول خپلو کلو ته روان شو. عبدالاکبر خان میا عبدالله شاه ځان سره په زور قاضی خیلو ته روان کړه مونږ. پوه شو چه عبدالاکبر خان کمزوری سړی دی میا صاحب ورله دوکه ورکړی د عبدالله شاه په احمد شاه چه دده تربور و سره ورځ نه پېرزوکېده. عبدالله شاه ډېر دله باز او د پرو جنبو جوړولو ماهر او شوقی سړی وا و دا توله تماشه د جوړه کړې وه.

مونږ. داحمد شاه دوی کلی ته لاړو ولې چه مونږ د عبدالله شاه ډېر رود اکبر جان مېلمانه وو چه د دوی نه فارغ شو نو حاجی عبدالغفار خان ماته راننوتی شو او وې وئیل چه عبدالاکبر خان خوبې بالکل بدل کړې دی ما وې ته بی پوه کړه هغه دې ما پری د ډېر کوشش وکړو خو پوهېږی نه. سبا له کلی ته راغلو بله ورځ ما واوریدل چه عبدالاکبر خان او احمد شاه زما برخلاف یوه لویه پرپره چاپ کړې ده چکښې لیکلی دو چه زمونږ د مصرو په شان په او بو کښې او بهشو او زمونږ هیڅ هستی پاتی نه شوه. په دې اشتهار داحمد شاه، عبدالله شاه او عبدالاکبر خان دستخطونه وو. مونږ خپل بعضی ممبران را غونډ کړل او دهغوی په مشوره مې دهغوی په شان چاپ شده ځواب ورکړو او نور دیو خو خدای خدمتګار و سره بیا د ډېرو په دوره روان شوم.

## د ډېرو دوره:

په دی وخت کښې خبر شو چه زمونږ لاټ صاحب سرهستوور د ډېرو چه د ډېر بنه او شریف سړی و د غرنه پریوتو او مړ شو او دهغه په ځای سر رالف کرف لاټ شو دی یو فوجی سړی و دده خیالات مونږ ته معلوم وو دی ورو کی زمونږ په صوبه کښې لوی

شوی دی ، دا چه د وزیرستان ریزیډنټ ؤ نو ده یو خپل افسر ته د خدائی خدمتګارو متعلق خپل خیالات ظاهر کړی وو چه که لږ غونډی وینه توینه شی نو ښه به وی . دلاټ کېډو سره ئی شملی ته ویلی چه زه عبدالغفار خان ګرفتار وم ولی چه دا ډیر ښه وخت دی ددې نه فایده اخیستل به کار دی ، په دوی کښی نفاق پیدا شوی دی خو شملی ورسره اتفاق ونه کړو ځکه چه ګول میز کنفرانس روان ؤ د مرکزی حکومت دا خیال و چه مهاتما ګاندهی دده په ګرفتاری لنډن کښی څه قدام وچت نه کړی او ده ته ئی ولیکل چه دا خلاف به دوی پخپله تباه کړی زمونږ د دخل ضرورت به باقی نه شی ، هغوی نو هندوستان ته کتل او د دی دی ئی خبر نه وو چه پښتون د نورو هندوستان په شان نه دی ، دا یو ژوندی قام دی اول ویده و اوس ویښ شوی دی او سیاسی شعور ئی کښی راغلی دی نو هغه به د نا پوهو کار ونه کړی .

مونږ خپل کار او خپلو دوړه ولو زور ورکړو ولی چه ما ته معلومه شوه چه حکومت مونږ ډیر زر ګرفتار ول غواړی . کلی په کلی ورکړځیدو او خلک مو په حقیقت پوه کړل او دی خبری له مو ډیر زور ورکړو چه زمونږ جنګ د عدم تشدد جنګ دی او ددې لاره کښی چه هر قسم تکلیفونه او مصیبتونه راځی نو په صبر ئی تیر وو . مونږ به د چا نه بدل نه اخلو مونږ خدائی خدمتګار یو خدای به زمونږ بدله د ظالم نه اخلی مونږ دیپتو نه به دوره وو غیمه شپه د جلسی نه فارغه شوی وو ایله مو سترګی ورغلی وی چه د عمر زوی عبید الله خان چه د پولیس کپتان و د دلاټ صاحب یو دستی خط ئی راوړو په هغه کښی ئی لیکلی وو چه زه تاسره د ډیره اسماعیل خان د تقریرونو متعلق ګفتګو کول غواړم ته مهربانی وکړه پېښور ته راشه ما ورته ولیکل چه زه د قانون برخلاف تقریرونه نه کوم او نه می کړی

دي تاته که څه غلط خبر رسيدلى وي دا به ستاد خفيه پوليس والو غلطي وي زه په
وخت کښې درتلى نه شم ځکه چه ما دځېل پروګرام نه تول خلک خبر کړي دي زه هغه
نه شم څه وخت چه فارغ شوم نو پېښور ته به درشم نو که تاته ضرورت ښکاريږي وزه به
سره ووينم چه څه وخت مى داخواب ليکلى عبيد الله خان له ورکړو نو فورا روان شو
ډيره اسماعيل خان په دوره کښې حکومت ډېر کوشش وکړو چه زه بعضى علاقو ته لا
نه شم او ددى دپاره يى خان بهادر عبد الرحيم خان ماپسى راولېږلو خو زمونږ
مقامى ملګرو دا خبره خوښه نه کړه او مونږ دتولى علاقى دوره وکړه بيا مونږ بنو ته
لاړو جرنيل عظمت خان زمونږ نه مخکښې دکار دپاره دلته راغلى و، دبنو دوره
کلى په کلى وکړو.

مونږ چه ډنګى نه مروت ته روان شو نو مونږ له خورشيد بخت سعد الله خان
، ودجواهر لال اوښې په موټر کښې مخې له راغلل او راته يى ووې چه جواهر لال دا
حکم راليږلى دى چه تاسو فورا دسرحد لويه جرګه جوړه کړئ او دتعدى په مطابق
کار شروع کړئ ما ورته ووې ښه دى تاسو دجلسى دپاره خلکو پسى خطونه جارى
کړئ او په مقرره تاريخ به زه درشم مونږ دجلسى دپاره تاريخ مقرر کړو او هغه
نه پس ددى پېښور ته لاړل او زه دبنو نه دکوهاټ دورى له راغلم دکوهاټ
دوره هم په ډېر ښه شان وشوه دلته زمونږ په نزکو نو خدايى خدمتګار دو
جلسى موو کړې کلى په کلى، تپه په تپه وګرځېدو مونږ چه څه ډنګه دوره دپښتون
داتفاق دپاره شروع کړې وې دغسې دوره ميا احمد شاه دپښتون د نفاق
پاره شروع کړې وې خو دايو څيز يى زمونږ نه زيات وچه ده به زمونږ برخلاف

په پرېږي هم چاپ کولې اخبارا تو کښې به یې هم زمونږ برخلاف پراپېګنډه کوله د پنجاب اخبارات هم دده ملګري وو ولی دهغوی مقصد هم دپښتون کوډ وران ول دی داحمد شاه دوی مقابله زمونږ خدائي خدمتګار خصوصاً جرنیل انځرګل او عبد المالک استاذ دچارسدې وکړه او احمد شاه دوی پخپل مقصد کښې کامیاب نه شول. مونږ چه دکوهاټ دوره ختمه کړه او دپیر شهنشاه صاحب په ځای کښې موشپه وه نو زمونږ دهغو او تل بعضې مخلصان ملګري چه د میا-

صاحب دپراپېګنډې نه متاثر شوي وو دتحقیق دپاره دغلته راغلل او ما ته یې ووې چه دا تا څه چل وکړو چه دپښتنو یو ځان له جماعت دې کانګرس کښې مدغم کړهلو تا خو به اول مونږ ته دا خبرې کولې چه دا جماعت او تحریک خو دپښتنو دې ما ورته ووې چه تحریک خو هم هغسې دپښتنو تحریک دی د کانګرس سره خو صرف مونږ تعاون کړېدې چه هغوی هم دپیرنګیانو نه دهندوستان ازادي غواړي او دا د تعاون فیصله خو ستا سو لوېي جرګې کړې ده مونږ خو جېلخانه کښې قید وو پښتنو باندې چه څه وخت پیرنګیانو توره شپه جوړه کړه او خدائي خدمتګار دې ګرفتار کړهل نو مونږ دګجرات په جېلخانه کښې وو چه جعفر شاه او عبد الله شاه راغلل او مونږ ته یې ووېل چه پیرنګیانو په مونږ توره شپه جوړه کړې ده او تحریک تباه کول غواړي مونږ څه وکړو؟ مونږ له چه راغلل نو زما خو ملاقات هم بند و احمد شاه او عبد الاکبر خان ورسره ملاقات وکړو او مونږ په شریکه دا دا یې ورکړې چه لاړ شئ ود مسلم لیګ مشرانو سره ووینئ چه مونږ سره امداد وکړي. دوی لاړل او بیا راغلل او ووېل چه مسلم لیګ زمونږ ملګرتیا ته تیار نه دی او کانګرس وایي چه

تاسو هم د ملک ازادۍ غواړئ او د عدم تشدد په اصولو کار بندئ او مونږ هم نو په دې وجه مونږ ستاسو امداد ته تیار یو مونږ ورله ځواب ورکړو چه واپس لاړشئ او خپلې لویې جرګې ته دا مسئله پیش کړئ هغوی راغلل او جرګې فیصله وکړه چه مونږ کانګرس سره ملګرې کیږو او ملګرې شول او هغوی زمونږ پراپیګنډه په اخبارونو کښې وکړه او د تحقیقاتو د پاره یې جرګه راولیږله. دا خو هغوی د ملګرتیا برکت دی چه زه بهر ګرځم او ستاسو سره جلسې کوم که دا نه وې نو زه به اوس جیلخانه کښې قید وم او دا تاسو چه لګیا یئ د تحریک کار کوئ دا خو د کانګرس برکت دی که نه وې نو پیرنګیانو تاسو کار ته پرېښودلئ څه؟ د هغوی تسلي وشوه او خپل کلي ته روان شول او مونږ پېښور ته راروان شو.

چه راورسیدو نو معلومه شوه چه حکومت زمونږ کارې ولا خدائی خدمتګار په مخه کړې دی. دوی په پېښور ښار کښې د سامان دیوځای نه بل ځای ته وړلو او رسولو کارکولو. دا ډیر سخت او مشقتي کار و، او مقامي خلکو نشو کولی دا د بهر نه راغلي خلک وو او اکثریت یې کښې زمونږ د مومندانو ورونو او قابو سل په سل د خدائی خدمتګار دی په تحریک کښې شامل و، او مقدمې پرې جوړې کړې دي او د باوونه پرې هم کوي چه خدائی خدمتګاری نه لاس په سر شئ که نه وی نو د ملکه ځئ او چه په دوی کښې کوم د کار خلک وو نو په هغوی یې دا مقدمه جوړه کړه چه تاسو ددې ملک نه یئ او په فلانۍ دفعه (قانوني ماده) کښې مونږ تاسو د دې ملکه باسو. دا خلک ډیر د کار او تکړه خلک او ښه پښتانه وو پلرونه او نیکونه یې د افغانستان نه راغلي وو او هم دلته زمونږ په صوبه کښې اوسیدل. دوی ته یې ووئیل چه:

تاسو خپل ملک ته لاړشئ حال دادی چه داغریبانان خو پلا ر په نیکه دلته اوسیږی. موږ دما لګو په منډهی کښی دحکومت ددی ظلم برخلاف یوه لویه جلسه وکړه او په زرګونو ښځی نږ، پکښی شریک شول اودحکومت ددې رویې برخلاف موتقریرونه وکړل. زموږ دجلسی نتیجه ښه شوه او په حکومت یې دومره اثر وکړو چه هغه خلک یې پرېښوول او مقدمې یې واپس کړې.

ددې دورو اوبی ارامی په وجه زما طبیعت بیا خراب شو دلته می ارام کولی نه شو. دخوږ ځو دپاره کوه مری ته لاړم قاضی عطاؤالله او غلام محمدخان هلته وو. په کاډی کښی کښېناستم او مری ته ورسیدم. شیر بهادرخان دبروچ لادی کښی ناست و اوخپل کلی ته راتلو چه زه یې ولیدم. دلادی نه داکوز شو او ما سره یو خو ورځی پاتی شو. څه ورځی می ارام وکړو چه طبیعت می ښه شو نو زه او شیر بهادرخان واپس راغلو.

## دسرحد لویه جرګه:

کانګرس ماله اختیار راکړی وچه ستا څه دنګی خوښه وی دسرحد لویه جرګه جوړه کړه لیکن ما په پېښور کښی دټولې صوبې دکارکنان راجمع کړل او ددی خبری کوشش می وکړو چه دکانګرس دجرګی سره په یو ځای والی کښی څه اختلاف پیدا نه شی. خو زمونږ دپېښور ورونه په دی رضا نه شو او بیا می دکوهاټ او بنو کارکنانو ته ووې چه زه پخپل اختیار دسره صلاح نه مقرروم. تاسو په اتفاق سره یو صلاح خوښ کړی. هغوی پیر شهنشاه خوښ کړو اوصلاح شو. او سعدالله خان په اتفاق سره جنرل سکرټری شو اومرکزی دفترموهم اتمانزو کښی مقرر کړو ولی چه هغه دجرګی او

خدایي خدمتکارو د ومبني مرکز و . دصوبي جرګه جوړه شوه او کانګرس له مودي خبري خبر ورکړه ،هغه قوم دنیا کښي د پرېبل قسمته وي چه هغوی کښي داسې خلک پیداشي چه بخپله خود قوم او ملک دخدمت دپاره تیار نه دي او چه ښوک پکښي د خدمت دپاره پیداشي نو هغوی خدمت ته نه پرېږدي .داخلک چه دڅه وخت د پاره جیلخانې ته لاړشي نو دا خیال کوي چه زه خواوس لیل وشوم او دخپل ځان دوراندې کېږ وکوسنبنونه شروع کړي اوخپل غرضونه یي په مخه واخلي او که ښوک دخدای دپاره ددې قام خدمتونه کوي نو دهغوی مخالفت شروع کړي خوهر ښوک چه دخدای دپاره دقام خدمت کوي نو دهغوی مخه ښوک نه شي بندولي او هغوی دچا مخالفتونه نه کوي ځکه چه خپل څه غرض یي نه وي مخالفت خوداتیاتو کښي پیداکېږي . دښنا ردي ورونو ته هم موږ دمیا صاحب په شان دپرمنتونه وکړل چه دې کښي څه شته نه او دقام خدمت دې راځي چه په ښه کښې ورته ملا وتړو !خو دوی هم خپلو غرضونو په مخه کړي وو او دجرګې او خدایي خدمتګا رو خلاف یي پراپیګنډه شروع کړه او دې ته یي فکرونه کړو چه په دې طریقه خو موږ خپل ځان ته او قوم ته نقصان رسوو او دغلامۍ ځنځیرونه مضبوطو .

په ډېلي کښي دکانګرس ورکنګ کمیټۍ اجلاس واو دهغه دپاره د ۱۹۳۱ ع کال داکتوبر میاشت مقرره شوې وه زه دلوند خوړ غلام محمد خان سره ډېلي ته لاړم . په ورکنګ کمیټي کښي ما داخبره پیش کړه چه تر اوسه زمونږ دملک ملکي مجنسي قیدیان په سوله کښي رها شوي نه دي او هغه شان جیلخانه کښي پراته دي او موږ ته حکومت داوایي چه دا علاقه دکانډهي اروین پیکټ نه بهر ده دورکنګ کمیټۍ دا اجلاس

دې مرکزي حکومت ته سفارش وکړي چه زمونږ د املکري قيديان پريږدي دوي
ووېي چه موږ له دکاندهي جي دراتلو پورې انتظار کول په کار دي.

## د هزارې دوره:

د ورکنګ کميټۍ جلسه ختمه شوه او زه او غلام محمد خان واپس راغلو نو بيا ما د هزارې
دوره شروع کړه ولې چه دی اوسنی دوره کښې صرف د اضلع زمانه پاتې وه. شل پينځه
ويشت خدايي خدمتګار مې د هرې تپې نه يو يو را وغوښتل او د ځان سره مې بېنه په
شان او شوکت هزارې ته بوتلل دې دوره کښې د ستي جان شاګرد باچاګي چه ډېر خوش
اوازه هلک و موتږ سره و ده به دا نظم وې: «انګريزه څه خپل وطن ته کړ ريږه». ما يو
پوه او هوښيار خدايي خدمتګار پټ چې له ولېږلو چه د هغه ځای حال معلوم کړي. او په
خلکو سره زما دورتلو مشوره وکړي ولې چه دی علاقې ته حکومت زمونږ خدايي خدمتګار
نه پرېښودل او په ډېر بد سلوکی سره يې واپس کول نو ما داغوښتل چه زه غور وتپه
(اوناخاپه) دې علاقې له لاړ شم او چه حکومت خبرېږي چه زه د غلته رسيدلی يم
مونږ سحر وختي په ريل کښې د پېښور نه را روان شو. حکيم عبد السلام صاحب له مو
مخکښې خبر ورکړي وخه وخت چه زمونږ ګاډی شادېړۍ ته ورسيد و نو حکيم صاحب
په تيسن ولاړ و مونږ ګاډی بدل کړو او بل ګاډی کښې سواره شو او چه هري پور تيسن
ته ورسيدو نو ډېر خلک زمونږ د استقبال د پاره تيسن ته راغلي وو، چونکه زمونږ پروګرام
ډېر پټ و په دې وجه دګاډي نه کوز نه شوم او د خپلې ډبې په دروازه کښې ودرېدم او
د خلکو شکريه مې اداکړه يو خوشخبري مې هم وکړه چه په واپسي کښې به ستاسو په خدمت
کښې حاضر شم. ګاډی روان شو مونږ چه مخکښې لاړو نو يو موټر مو په سړک ولېد چه

سرخیوش پکښې ناست دي او ډیل سړي په منډه پوښتي دي د دوی په لیدو ډېرخوش حاله شوم چه شکر دی دلته هم خدایي خدمتګار جوړ شوي دي. مونږ چه په حویلو ستیشن کښې د ګاډي نه کوز شو نو هغه موټر هم را ورسید. دوی هم را کوز شوا و یو بل ته ورتېر شو بیا مو یوه لاري کوایه کړه او یکلي ته روان شو. زه په لاري کښې سور شم او باجي والا مو موټر کښې سواره کړه. هغوی مخکښې او مونږ ورپسې شو. د کوهاټ ډپټي کمشنر په شان د هزاره ډپټي کمشنر اپ کینس هم چه څه وخت زما د راتلو ته خبر شوی دی نو لیوني شوی دی او په دی نه پوهېدو چه څه چل وکړم. په ډېرو کوششونو باندې لي غلام ربانی وکیل په دې خبره راضي کړو چه زه به بیا ستا و رور چه په ښار کښې سب ډویژن و او موقوف شوی دی بحال کړم که ته د دوی مخالفت ته ملاو تړې. مونږ چه د حویلیو ستیشن نه روان شو د سړک په غاړه چه کوم کوم کلي را تلل هغوی ته به مو خپله قصه کوله. ایبټ اباد ته ورسیدو او چه د بازار نه مینځ کښې تللو نو ډېر خلک زمونږ د راتلو نه خبر شول. څه وخت چه مانسهره ته نزدې شو عبدالقیوم خان سواتي وکیل چه زما د خلافت ملګری او ما سره یې قید تېر کړی و سپین وکلي سره د خونورو معتبرو مشرانو زمونږ هر کلی ته ولاړ وو. د هغه نه معلومه شوه چه غلام ربانی وکیل د حکومت په مشوره مانسهره کښې د خو کسانو سره ولاړ دی او هغوی له یې توری جنډې ورکړې دي. مونږ چه په تولو صوبه کښې د اتماشه لیدلې نه وه او چه هغه ځای ته ورسیدو نو داخپل موټرونه مو ودرول. هغوی کښې څو کسانو زمونږ د موټرونو د ودرولو کوشش هم وکړو خو مونږ موټرونه و نه درول. لیکن یو عجیبه سړی می په نظر راغی چه په یو لاس کښې یې توره جنډه وه او په بل لاس یې مونږ ته سلامونه کول. ورو ورو سته معلومه شوه چه دا خلک یې دوکه کړي وو. بې خبره یې را وستي وو

اوتوریُ جنبشِ ورکړی وي

پکلي ته ورسید و د لیفی خلک تقریباً دوه میله مخی له راغلی وو مونږ ورسره پیاده بیغ ته روان شوماښام ورسید و مونږ یې دسپن په غاړه یوښه ځای کښی ډیره کړو. دغه ځای ډیر ښه ځای وو. د توره جنبش په دې قصه چه دغه خلک خبر شول نو ډیر خپه شو. د هزاری خلک پښتانه دي خوژبه تری ورکه شوی ده د ډیرو کلو دخلکو د دې توره جنبش په وجه مونږ سره همدردي پیدا شوه او مونږ سره خدائي خدمتګار شول. د لیفی او د دې علاقی تول خلک سباله په جلسه کښی شریک شول. د لیفی جرګی او خدائي خدمتګارو د جلسی ښه انتظام کړی و. د توره جنبش په وجه زمازره ته هم ډیره صدمه رسیدلی وه حالانکه په داسی څیزونو سیاست کښی څوک کول په کار نه وي چونکه دا زما اول ځل و ماچیرته پخپله صوبه کښی توره جنبش لیدلی نه وه خکه ډیر خفه شوی وم او دا زما کمزوري وه. ما په جلسه کښی ډیر تیز تقریر وکړو او دې خلکو ته می دوي چه تاسو خپله ژبه پښتو هیره کړې ده دغسی تاسو کښی پښتو هم نه ده پاتی شوې. د پکلي بعضی خلکو هم تقریرونه وکړل او په ډیره کامیابی سره زمونږ جلسه ختمه شوه خلک خوارهٔ شو ماښام حاجي فقیراخان هم د پیښوره راورسید و دې زمونږ ډیر زور ورکارکن دی خو هزاري ضلع کښی ډیر کار کوي. مونږ دهزاري د دورې پروګرام دحاجي فقیراخان او نورو کارکنانو په مشوره جوړ کړو. مونږ د پکلي په علاقه کښی ځای په ځای جلسی وکړې او په هزاره کښی پکلي داسی علاقه ده چه خپله ژبه پښتو وایي. کوم ځای چه پښتو خپله ژبه پریښودې نه ده هلته زمونږ تحریک ډیر کامیاب وي خصوصاً چه مونږ د شینکیاري د جلسی انتظام کړو نو حکومت زمونږ په جلسه کښی دشرارت د پاره خپل خه خلک راولیږل

دخدای فضل وچه هغوی جرئت ونه کړې شو او جلسه په ډېره کامیابۍ ختمه شوه. هزاره کښې حکومت کوشش کولو چه زمونږ په لاره کښې مشکلات پیدا کړي خو خلقو کښې پوهه راغلې وه او دغلام رباني تور وجنډو مونږ له کافي کار کړې وا او خلقو کښې یې پوهه او احساس پیدا کړې و. مونږ اخرې جلسه ددې یالو کښې وکړه او ددې ځای ډېر ښکیالي پښتانه دي ددوی اول دجلسې څه خیال نه وا او نه یې زمونږ په تحریک کښې دشرکت څه خیال ولیکن ددوی یو مشر غلام رباني په تور وجنډو کښې شریک کړی وا او ددې غیرته یې ځپل کلي کښې جلسه وکړه او مونږ سره دخدائي خدمتګارو په تحریک کښې شریک شو. حکومت چه به څو مره زمونږ مخالفت کولو نو هغه څیز به زمونږ دپاره مفید او دحکومت دپاره مضر ثابتېده ولې چه مونږ هر څه کول نو دخدای دمخلوق دخیر دپاره مو کول. له دې ځایه مونږ مانسهرې له راغلو، په زرګونو خلک زمونږ استقبال له راغلي وو او زمونږ جلوس په ښار او دښار په بازارونو کښې ګرځېده او چه دغلام رباني وکیل کور له راغلو نو دانقلاب زنده باد چغې یې ووهلې او دبعضې خلقو خودا اراده وه چه دده په کور کاڼي و وروي خو ما منع کړل چه دا زمونږ اصول نه دي. زه دا په دعوه سره ویلې شم که حکومت دلته دتور وجنډو واقعه کړې نه وای نو شاید چه دومره خلک به په جلوس کښې شریک شوي نه وو.

مونږ دمانسهرې نه سپیل وته لاړو او دسبا دپاره مو مانسهره کښې جلسې اعلان وکړه، دسپیل وتول خانان زما مهربانان وو، خو عبدالقیوم خان او غلام رسول خان مې دجبلخانې یاران وو. شپه مو په ارام سره تېره کړه، سبا له نو بعضې دعلاقې مشرانو سره خبرې وشوې او دهغوی په زړونو کښې چه غلطي پراېکلې ی زمونږ دتحریک برخلاف غلط فهمي پیدا کړې وې هغه لیرې شوې. دچای نه پس مونږ دتلو انتظام کو

چه په دې کښې د مانسهرې انسپکټر راغی او ماله یې د ډپټي کمشنر خط راوړو او داخبره یې هم وکړه چه ډپټي کمشنر سره د پولیس کپتان مانسهرې ته راغلي دي. ماچه خط پرانستو نو هغه کښې لیکلي وو چه په جلسه کښې د غلام رباني سره ته ددې تحریک مباحثه وکړه او بل که څه فسادو شو نو څوک به یې ذمه وار وي او انسپکټر را ته ووې چه دا تول شرارت ددې ډپټي کمشنر دې ماوې چپ شه ته خو سرکاري نوکر یې. ما ډپټي کمشنر ته وکیل چه دې معامله کښې د بحث ضرورت نشته زه د لته د خدايي خدمتګاري د تحریک اشاعت له راغلی یم زما کار اشاعت دی او بیا منل او نه منل ددې خلکو کار دې. پاتې شو فساد نو زمونږ نظر په دعدم تشدد ده که چیرې څوک مونږ سره فساد کوي هم مونږ ورسره فساد نه کوو نو په دې سبب که چیرې فساد و شو نو د هغه ذمه وار به ته یې. تا نه دار رخصت شو او مونږ هم مانسهرې ته روان شو په لاره کښې چه به څوک خبر شول نو مونږ سره به ملګرې کیدل چه مانسهرې ته ورسیدو نو ډیر خلک مونږ سره ملګرې شوي وو او هلته د جلسې په ځای کښې به زرګونو خلک راجمع شوي وو. د جلسې ځای سره نزدې موخه خلک جمع ولیدل تحقیق نه راته معلومه شوه چه دا د حکومت خلک دي او حکومت په خپل ورل ددوی ته پیسو په طمعه، لالچ دا خلک دې علاقې ته زمونږ د مخالفت د پاره راوستلي وو او دلته جلسه کوي او هغه وکیل لګیاو تقریرې کولو خو په دې پوه نه شوم چه په کومه موضوع تقریر کوي.

ما خو خلوته پخپله جلسه کښې د خدايي خدمتګاري حقیقت بیان کړه او خلک می په دې پوه کړل چه خدای ته د خدمت ضرورت نشته د هغه خدمت د هغه د مخلوق خدمت دی، دا ملک خدای مونږ له راکړی دی او د غه شان خدای هر یو قوم له یو ملک ور کړی دی، ددې د پاره چه هغوی او د هغوی بچې پرې اباد شي ملک خو زمونږ دی خو

اختیاري دبل دی او دغه وجه ده چه زمونږ بچي وږي تږي او برېنډ دي ومړي پروی
نور خلک کوي. غلامي د خدای لعنت دی او مونږ له ددی لعنت نه خلاصول په کار
دی او دا به هله وشي چه مونږ کښي قام ولی، وروروليٰ، اتفاق او مینه محبت پیدا شي. نن دا
دنیا د قامولی، د نیاده او تاسو وګورئ چه چا کښي قاموليٰ او وروروليٰ او اتفاق دی، نو هغه آباد
دي او چه کوم قومونو کښي پرټي، جنبي تړبګني او دښمني دي هغه برباد دي. زه امید کوم چه
تاسو به زما په دی خبرو غور او فکر وکړئ که دي کښي یو اځي زما فایده وي نو عمل کوئ او
که دي کښي ستاسو د دنیا او اخرت ګټه وي نو عمل پري وکړئ چه تاسو اباد شئ او ستاسو
بچي اباد شي. په کار دی چه تاسو هم تولو پښتنو سره په دي تحریک کښي شریک شئ. دا جلسه
د بره په کامیابي ختمه شوه، هر یو کار چه د خدای د پاره وي د هغه مخه څوک نیوی نه شي
حکومت بچیل فریب کښي کامیاب نه شو، جلسي سره زمونږ دیو مهربان حاجی صاحب هغه له د
ارام د پاره لاړو. د علاقی د پر معززینو جلسی له راغلی وو هغوی سره خبري وشوي د
حاجي فقیرا خان او حکیم عبدالسلام په تجویز او تائید ددي خبري فیصله وشوه چه زه
دي د هغو خدائي خد متګارو سره یو ځای یو تصویر و باسم چه یکلي کښي د حکومت د طرف نه
پري ظلم او زیاتی شوی دی. جیلخانو کښي یي اچولي دي او په بینتو نو وهلي دی. داد
یکلي د معززینو او مخلصانو یوه ډله وه چه ددوی داخلا تو درته څه ذکر وکړم. علي کوم خان
چه په دوی کښي یو خان و دا ته ووی چه پلار می د حکومت د وېري نه دی تحریک د پره
مخالف دی زه یي د کور نه شړلي یم خکه چه زه خدایي خد متګار یم زه ددی په وانه کوم
او د خپل مظلوم قام د بېدارولو کوشش کوم دیو بل مولانا صاحب نه معلومه شوه چه
وخت یي مونږ په بینتو نو وهلو نو ما سپر نقتل نټ نه روي چه زه عالم یم ما مه بو بنداو

نو زه یي ډېر ښه ښینته وو هلم او زمانوږ ملګري یي پنځه لس ښینتونه وهلي وو.

د پکلي د خدایي خدمتګارو یوی بلی خبری په ما ډېر اثر وکړه. د راتلو په وخت کښي مي علي ګوهر خان او یو څو نورو خدایي خدمتګارو ووې که ستاسو خوښه وي نو زه به مو ځان سره پېښور ته د سیل د پاره بوځم نو راته یي ووې چه زړه خو مو ډېر کېږي خو زموږ په سر ډېر کار دی د دی نه تلی نه شو نو زه د دې په اورېدو ډېر خوشحاله شوم چه د دوی دې تحریک سره څومره محبت دی.

موږ د پکلي د مانسهرې نه را رخصت شو حکیم عبد السلام صاحب د هری پور زموږ سره ملګری و هغه د نعمت الله خان دعوت د شپې د پاره منظور کړی و او موږ ماښام د هغه ځای ته ورسیدو. د هغه د کلي نه جلا کوټه وحجره وه. شپه مو په ارام سره تېره کړه، سبا له را روان شو، حکیم صاحب زموږ تلو د پاره یوی لاری سره خبره کړی وه لیکن سبا له هغه را نغله، موږ پیاده روان شو لاره کښي چه به کوم کلي په مخه راتلو نو هغه کښي به مو خپل تبلیغ کولو زموږ د پاره پیاده تلل ښه شو ځکه چه ډېر کار وشو کله چه موږ نوانښهر ته نژدې شو نو ډېر هندوان او مسلمانان زموږ په انتظار کښي ولاړ وو او چه موږ یي ولیدو نو انقلاب زنده باد چغې یي وهلي هغوی زموږ جلوس په ښار کښي وویستو.

موږ ډېر ستړي شوي وو، موږ یي د ارام د پاره یو ځای ته بوتلو ماښام نژدې موږ ارام مو وکړو، ډوډۍ مو وخوړه او د شپې د پاره یو بل ځای ته لاړو سحر وختي چه څوک زموږ لید وله راغلي وو هغوی سره مو خبری وکړې. دلته موږ ته معلومه شوه چه په هندوانو او مسلمانانو باندی حکومت ډېر زور اچولی وچه

زمونږ بایکاټ وکړي او استقبال ونه کړي خو کامیاب نه شو سبا له چه مونږ جلسې
له ورغلو نو په زرګونو هندوان او مسلمانان جمع وو او جلسه ډېره په کامیابۍ وشوه ا
خلک مې د خدائي خدمتګارۍ په تحریک پوه کړل او ورته مې ووې چه هر چاله چه خدا
ملک ورکړی دی نو د هغه اختیار د هغه قوم دی ، یو مونږ بدقسمته خلک یو چه ملک
زمونږ دی او مزې پرې نور خلک کوي ، په کار دی چه مونږ ټول په شریکه ملا وتړ
چه خپل ملک ازاد کړو مونږ به اباد شو او زمونږ بچې به اباد شي ، چه څه وخت ما تقر
ختم کړو نو زمونږ د پېښور یو قاضي چه د پولیس انسپکټر و ما ته را نزدې شو چه تاسو
چیرته ځئ ما ورته ووې چه ایبټ اباد له هغه ووې چه هلته ایکسوحولیس دفعه لګېد
ده (د قانون ۱۴۴ ماده نافذه ده) او زه د پولیس کپتان را لېږلې یم چه د څلور ونه ز
کسان یو ځای تللی نه شي . ما ورته ووې چه ډېره ښه ده مونږ به څلور څلور ځو لیکن
یقین نه دی چه کپتان صاحب به دې خپل حکم ټینګ باتې شي ولې چه په د غه طرل
به زمونږ ډېره پراپیګنډه وشي چه مونږ له دې ځایه په مختلفو سړکونو څلور څلور
شو نو قاضي صاحب زما په خبره پوه شو او کپتان له یې ځواب یووړ . مونږ د تلو انت
کولو چه قاضي صاحب بیا راغی او راته یې ووې چه کپتان صاحب وې چه دوی تر
کښېنی یو ځای د تلو اجازت دی . د کاکول او د نورو کلو خلک راغلي وو چه مونږ س
زمونږ کلو ته لاړ شه خو زمونږ پروګرام جوړ شوی و نو دوی مرهمی وعده وکړ
دوباره راشم نو درو به شم . مونږ لاړې کښېنی سواره شو او ایبټ اباد له روان شو
خدائي خدمتګار وخیله با جه ددو ددو یه لاره کښې غږ وله . چه د ایبټ اباد ښا
نزدې شو نو یو سب انسپکټر ولاړ و هغه زمونږ لاړې ودروله او ویلې چ

مه غونډی ملاست ته دویل چه تاسو لیکلی حکم شته هغه ږې نه نوماورته ووې چه مونږ
بغیر دلیکلی حکمه نه باچه نه بندوو نو هغه ووې چه سبه ده نو زه مو ډیپټی کمشنر له بیایم مونږ
ورته ووې چه زمو هر چیرته بیایي مونږ دتلو نه انکار نه کوو خو ته هم زمونږ سره په ډی
لاری کښی کښینه ولې چه خلک به جمع شی او دلته خو دفعه ایکسو چوالیس (۱۴۴ ماده) ده نو
دخلکو جمع کیدل خلاف قانون دی خو هغه زمونږ ددی خبری هیڅ پروا ونه کړه هغه زمونږ
دلاری مخکښی روان شو او مونږ ورپسی لاری روو و ورو روانه کړه او باچه موغږ وله
چه چا به دباچی واقه اوریدونو مونږ پسی به راتلو او چه څه وخت دپولیس لاین ته ورسیدونو
پر خلک راجمع شوي وو هلته پولیس سره دافسرانو تیار دولاړ وو هغوی مونږ ته ووې
چه دا باچی والا دیپټی کمشنر غواړي ماورته ووې چه دده قصور څه دی؟ او که چیرې
قصور وه تا سر دوی بیایئ نو بیا مونږ هم ورسره ځو، مونږ ټول بوځئ په دی
شمکش کښی دوه ساعت تیر شو باچه غوږېږي او خلک جمع کیږي په دی کښی بهادر
ان انسپکټر ماته رانزدې شو چه دخدای دپاره دا باچه خو بند نه کړې! باچه می
نه کړه یوه عجیبه نظاره وه دملګو هلکان د دفترونو کارکنان او دښار خلک په
ساعت کښی په ډلو ډلو راجمع شو او که حکومت مونږ سره چیرې چار کړې نه وای نو زمونږ
دومره پراګنده شوی نه وای او دومره خلک به زمونږ نه خبر شوي نه وو. اخر ډیر
ث مباحثی نه پس مونږ ته اجازه وشوه او مونږ دایبټ اباد اسلامیه سکول ته راغلو
چه داځای دایبټ اباد دخلکو زمونږ دارام دپاره مقرر کړې وسباله دجمعی ورځ وه
ونږ اعلان وکړو چه سباله به جامع مسجد کښی وعظ کیږي تاسو ټول هندوان
سلمانان دا وریدو دپاره راشئ! مونږ لږ ارام وکړو بیا مو دایبټ اباد مسلمانانو

سرۀ د تحریک متعلق تبادلۀ خیالات وکړل او ورته می ووې چه مونږ هم یو قوم یو، مونږ
لۀ هم د خپلی آبادی او ترقی د پاره څه جد وجهد په کار دی او که تول عمر به دی نیستی
او غلامی کښی پراته یو نو ورک به شو. زمونږ اصلی مطلب قوم کښی مینه، محبت، تعاون
ورورولی او اتفاق پیدا کول دی. د پر هندوان او مسلمانان به زمونږ الیډ وکتوله داتلل
او هر چاته اجازت و. گودکا او نور فوجیان او ښځی او بچی هم زمونږ لیډ وله داغلل مونږ
ور سرۀ د مینی محبت خبری وکړی او د خپل تحریک په غرض مو پوه کړل چه مونږ به د
خدای د پاره ستاسو او د تول قام خدمت کوو. حکومت خو دفعه ایکسوچوالیس په دی
وجه لګولی وه چه دلته جلسه و نه شی او خلک زمونږ د تحریک نه خبر نه شی. څه وخت
حکومت خبر شو چه سباله د جمعی ورځ ده او جامع مسجد له دا بیت اباد د خلکو نه
نور د بهر خلک هم د لمانځه د پاره راځی نو دا جلسه زمونږ د پاره ښه ده نو د پیتی کمشن
د جامع مسجد امام سرۀ د کمیتی د ممبرانو دا و غوښتل او هغوی ته یې ووې چه په
طریقه چه کېدی شی باچا خان د تقریر نه منع کړی. مونږ شپه په ارام تېره کړه
چای موڅکله نو امام صاحب د کمیتی ممبرانو سرۀ راغلل او ما سرۀ یې ځان له خبر
وکړی ما ورته ووې چه تاسو د پیتی کمشنر له ووایئ چه مونږ دا کار کولی نه شو ولی
جماعت د تولو مسلمانانو دی او یو مسلمان بل مسلمان د جماعت نه منع کولی نه شی
خو زمونږ مذهب دی او زمونږ خو دومره زور نشته چه یو مسلمان په جماعت کښی
نه منع کړی. ستو تاسرۀ زور شته ته یې ولی نه منع کوې؟ بیا می ورته دا خبره وکړه چ
د پیتی کمشنر په دې کښی بل څه مطلب نشته هغه پوه دی چه جماعت د هر مسلما
خو مونږ مسلمانان په کور کښی جنګوی او بې اتفاقی راکښی پیدا کوی. مونږ مسلم

ولې دوستانو چې لسه پخپل کور کښې ناچاقي پیدا کوو ؟ زما خبرو په هغوی ډیر ښه اثر وکړو او ډپټی کمشنر له روان شول. چه ډپټی کمشنر پوه شو چه زما دوونه چلیدونو قلار شو. په جماعت کښې دو مره هندوان او مسلمانان جمع شو چه دپښې ایښودو ځای نه و. د ماتحنه نه پس زه پاڅیدم او تقریر مو شروع کړو. د قرآن شریف خلورایاتونه می ولوستل او نجمی مې خلکو ته وکړه چه خدای پاک وایي چه زمانه امداد په صبر او اتفاق سره غواړه ئ وخدای وايي چه څوک زما په لاره کښې مړ شي نو دا مړه نه دي ژوندی دي خو تاسو به دی نه پوهیږئ او خدای پاک وايي چه زه د صابرانو ملګری یم بیاوایي چه زه پخپلو بندګانو امتحان کوم د مالونو، او ځانونو، او اولاد، او فصلونو هر کله چه دوی نه زما په لاره کښې څه نقصان ورسي نو دوی وايي چه مونږ هم د خدای یو او هغه له به ورځو، د هغه خلک زما د رحمت حقدار دي او دوی په سمه لاره روان دي او بل ځای خدای پاک وايي چه په تاسو کښې دې داسې یوه ډله وي چه خپل کار و نه پرېږدي او خلک د بدی نه منع کوي او نیکی ته يي رابولي. زما ورونو! مونږ د خدای دپاره د خدای د مخلوق خدمت ته ملا تړلې ده که تاسو هم د خدای د مخلوق خدمت کول غواړئ او خدای رضا کوئ نو مونږ سره په خدایي خدمتګارئ کښې ملا وتړئ چه دا دنیا مو هم جنت شي او اخرت کښې هم د جنت حقدار شو.

جلسه په ډېره کامیابی ختمه شوه د تلو انتظام مو کولو چه په دې کښې زمونږ د کلي دیوخان زوی چه هلته سب انسپکټر و، راغی او راته یي ووېل چه بهادر خان انسپکټر زه تاله رالیږلی یم چه څه وخت دوی روانیږئ نو باجه دې نه غږوي ما ورته ووېل چه بهادر خان خو زمونږ ورور دی خو زه نه پوهیږم چه ده ته په باجه غږولو کښې څه تکلیف دی ؟

زما د طرفه د سلام نه پس ورته ووایه چه که چیري تاته زمونږ په باجه ذاتي څه تکلیف وي نو
مونږ به باجه بنده کړو او که تا ته څه نقصان نه وي نو ته زمونږ باجه څه کوې؟ زمونږ په ملک
کښې دلیسې افسران خپل فرض نه پېژني او نه یې پوره کوي بلکه همیشه د خپلو انګریزانو افسرانو
د پاره هغه کارونه کوي چه هغه د دوی فرض نه وي .

لاړی تیاره وه ، مونږ لاړی کښې هر یو پرته روان شو ، په لاره کښې د حویلو په
تیسن خلک جمع وو هغوی ته مې هم یو مختصر تقریر وکړو . په سرای صالح کښې خلک زمونږ
په انتظار کښې وو خو په مونږ نا وخته شو نو خواره شوي وو . د هریپور خلک غریبانان د
شپا د نه بهر زمونږ په انتظار کښې ناست وو مونږ ما سخښتن ورورسیدو او د دوی د
انقلاب زنده باد فخر افغان زنده باد چغې ووهلې او زمونږ جلوس په بازارونو کښې
وګرځید و بیا لاړو د دوی موو خوړه او بیا اوده شو ، د بخشالي بګجران شهزاده صاحب
مې د حالات معلومولو د پاره پېچ ته لیږلی و هغه هریپور ته راغی او ما ته یې د پېچ حال
ووې چه خلک ډېر زیات په شوق کښې دي ستاسو ورتلل ډېر ضروري دی ماده سره
وخت مقرر کړو ، د دی خبری مې پری ډېر تاکید وکړو چه دا خبره عامو خلکو ته زما د
تللو نه وړاندې معلومه نه شي ولې چه بیا به حکومت زمونږ لاره کښې رکاوټونه واچوي
مباله چه مونږ د چا مسلمانه وو . ورغلو او چه هلته ورسیدو نو یو مولوی صاحب چه ماله راته
خدایي خدمتګار و منع کولو خو ما ورته ووی چه را پرېږده یې دے . نو ماله راغی ، ما خان
سره کښېنولو چه د دوی وخت راغی نو خلکو لیرکولو خو هغه په زوره د دوی کښې خان شریک
کړو . زما مهربان محمد اکبر قریشي راته ووې چه بیکا یو خوتنه د تورو جنګ وسره راغلي
وو په سرک ولاړ وو خو چه د خلکو زور یې ولید و نو غریبانان ګډ وډ شوا و خبری تری یا تی

شوې ماورته روې چه دومره خلک وو چه ماتورې جنډې هیڅ لیدلی نه دې. چه د
جلسې ځای ته ورسیدو نو دېر پولیس لاتې په لاس ولاړ وو او چه زه تقریر ته پاڅیدم
نو هغه مولانا مې ولیدل چه په زوره زوره تقریر کوی او څه کسان ورته ولاړ وو. خلکو ته
چه داخلک حکومت راغونډ کړی دي، خانان، ملکان دی او زمونږ برخلاف جلسه کوی.
مونږ اول فیصله کړې وه چه دا دی ځای نه به شپې له کلابټ ته ځو او سبا له به هلته
جلسه کوو. په جلسه کښې مې دا دی اعلان وکړو. کلابټ دا باسین نه دې غاړه دی او
صوابۍ په بله غاړه ده. دا یوسف زی دی او د هغه ځای خان زمانخان زما د پروا قف و
دا یوځل دی د صاحبزاده فضل رحمان په ځای کښې لیدلی و، ما او قاضی عطاء الله خان
ته یې د پرکلک نت د میلمستیا کړې و، زه خبر نه وم چه د حکومت په لمسه به مونږ د
خیل کلی نه منع کوی مونږ چه څه وخت کلابټ ته نژدې شو نو د کلابټ د خان تره د خپلو
سړو سره کوټک په لاس ولاړ دی او مونږ خپل کلی ته نه پرېږدي حالانکه چه په هغه کلی
کښې د هغوی پور ورعزیز مهدی زمانخان د غلته زمونږ د جلسې انتظام کړی و
او مونږ یې میلمانه کړې و، زمونږ لاری والا د پر تکړه سړی وچه مونږ داخلک ولیدل
نو ما دې لاری والا ته ووې چه ته دا لاری لږ ودروه، دې خان سره زه لږ په خبره
کوم ده ماته ووې چه ته داخلک نه پیژنې، دا هزاره وال پښتانه دی او ده خپله لاری
پرې ورتېزه کړه خان مخامخ زمونږ لاری له راغی او سوټې یې کړې زمونږ نه چاپېره
شو د دا یو په دوی لاری نیغه ورو سته او زمونږ لاری تری تیره شوه دوی تا پسې
منډې ووهلې خو وروسته پاتې شو او مونږ کلی ته ورسیدو. په هزاره کښې خو دفعه
ایک چوالیس (۱۴۴ ماده) لګیدلی وه نو په سباله موجماعت کښې خلک جمع کړل. د جماعت

نه بهر اسسټنټ کمشنر سره د دغو ټولو خانانو او پولیسو ناست وو زمونږ تقریر یې اوریدلو ما پخپل تقریر کښې دا خبره وکړه چه ای د هزاره ی پښتنو د سیند نه دې غاړه او هغه غاړه ټول یوسف زی دي تاسو خولږ هغې غاړې ته وګورئ چه هلته څه حال دی او دلته ستاسو څه حال دی؟ بله دا چه ما د ټولې صوبې دوره وکړه او په هر ځای کښې حکومت زمونږ مخالفت ته خلک لمسولي دي خو مونږ بل ځای توره جنګه لیدلې نه ده، دا مونږ هزاره کښې ولیده او نه په مونږ لیسې چاکوټکې را اخیستي دي چه زمونږ کې اته مه دا ځی او نه یې زمونږ د جلسې مقابله کښې چیرته جلسې جوړې کړې دي دا هر څه مونږ دلته په هزاره کښې ولیدل هغه هم پښتانه دی او تاسو هم پښتانه یئ راځئ چه دا دې وجه معلومه کړو ما چه په دې مسئله څو مره غور او فکر کړی دی نو وجه یې دا ده چه تاسو څښه ژبه هیره کړې ده او تشه ژبه درنه ورکه شوې نه ده بلکه ورسره هغه پښتو درنه هم ورکه شوې ده. د هزارې پښتنو! زما دا خبره یاده ولرئ چه د چا نه ژبه ورکه شوې ده هغه ورک شوي دي او چا نه چه خپله ژبه سپکه شوې ده هغه سپک شوي دي. جلسه ختم شوه مونږ سره چه کوم لاری والا راغلي وو نو د واپسۍ په وخت کښې هغه پولیس منع وهلي وو او ورته یې ویلي دی چه پام کوه چه سبا له دوی پسې رانه شي.

چه اوس یې له راغلو نو لاری نه وه تمتمو نه و لاړو ولیکن پولیس منع کړې وو چه دوی سره لاړ نه شي یو تمتم والا ووې چه زه د پولیس هیڅ پروانه کوم او تاسو سره ځم مونږ د هغه په تمتم کښې خپل اسباب ونه کښېښودل او ده سره پیاده روان شو تو له لاس په غړه کښې وه د پیر د مزی سره دا ترایي وه چرایي وه لاړه کښې چه کوم کلي په مخه راتلل هلته به خپل کار کولو. حکیم صاحب او زمونږ د هریپور کرنیل صاحب محمد حسین خان

مخکښې د انتظام د پاره تلي وو ولې چه د کلا بټ د واقعې نه پس مونږ په دې نتيجه ورسيدو چه زمونږ مقامي ملګري مخکښې ليږل په کار دي چه هغوي خپل کار وکړي د دغه ځاى يو ځلمي خان زمونږ د ميلمستيا انتظام کړې و داکلي د اباسيند په غاړه اباد دې مخکښې لږه ده خو اباده ده جلسې له لاړو په جلسه کښې د علاقې خلک راجمع شوي وو د پورې اباسيند د غاړې خلک هم راغلي وو. د دې علاقې خلک په پښتو پوهيدل او د پښتو نظمونو پورې ډير اثر کړې و شپه هم مونږ د غه ځلمي خان سره تيره کړه ډير مخلص او شريف هلک و پوليس پرې ډباوونه کړې وو چه دا خلک ميلمانه نه کړي خو ده پې څه پروانه وه کړې افسوس دې چه دده نوم زمانه هير دې. سباله د دوي کلي نه نژدې يو بل کلي و د هغه کلي خان مونږ ميلمانه کړو چه هلته لاړو نو هغه خان راته ووې چه د اسمبلا وکيل ميا علي حيدر شاه چه د هغې علاقې د پيتي او د پير پائي بهادر خان چه هلته د پوليس انسپکټر و په ما ډيرکوششونه وکړل چه زه تاسو ميلمانه نه کړم خو ما ورله ځواب ورکړو چه تاسو مې ميلمانه يئ نو هغوي هم ميلمانه کوم ولې چه تاسو حاکمان يئ او هغه مې ميلمانه دي هغه خان ما ته په خندا شو چه دا خو ستا پښتونوالى دې او ځان له پښتانه هم وايي. د هر يو په علاقه کښې چه څو مره مشکلات مونږ ته پيدا شوي وو دا د دې دومره برکت و او دوي پيدا کړي. وو دا لاخه کوې چه مونږ کوم ځاى ته د خپلو ورتلو او جلسې کولو خبر ليږلې و هغه ځاى د دې ځاى نه دولس ديارلس ميله ليرې و مونږ يوه لاري کړې وه. چه د روانيدو وخت راغې نو معلومه شوه چه علي حيدر شاه او بهادر خان زمونږ هغه لاري د پوليس تانې ته بوتلې وه هغه د دريور ورته چغې وهلې چه هغوي سره مې وعده کړې وه او کرايه مې ترې اخيستې ده ولې

زمونږ پېښوریان ورونه، سرکاري افسران ورته والي هغوی پرېږده مونږ بوځه او چه د سرکار دی کار د پاره دلا دی ضرورت وی نو ته ځنګه بل څوک بوتلی شې. علی حیدرشاه د پیټی او بهادرخان انسپکټر چه مونږ سره کومه لویه هزاره کښې کړې وه داسی مونږ سره په ټوله صوبه کښې چاکړې نه وه او دریم سړی چه د دوی نه هم دوه ګوټی د پاسه ؤ خوشدل کپتان ؤ.

مونږ چه خبر شونو حکیم صاحب عبدالسلام غریب ډېر پریشانه شو هغه موټرلی پیدا کولو پسی اوړي ته روان شو او مونږ پیاده روان شو مونږ شپږ میله پیاده تلی وو چه حکیم صاحب د دوو موټرونو سره راورسېده مونږ په دوو موټرو کښې نه ځائېدو ولیکن هغه موټروالا ډېر ښه سړی وو او په زوره یې پکښې ځای کړو مونږ تکړه وو او مونږ به اکثر ټولی دوری پیاده کولی خو وخت به راسره وو دلته خو را سره د هغو خلکو فکر وو چه زمونږ انتظار به کوی، جلسی نه چه مایوسه شی خواره به شی زمونږ به دی پیاده تلو کښې دومره فایده خو شوه چه په لاره کښې به موکوم کلی مخی ته راتلو نو په هغه کښې به مو کار وکړو. چه مونږ د جلسی ځای ته نزدې شونو خلک غریبانان په انتظار کښې ولاړ وو دا کلی هم د هغه مخکښنی کلی په شان دا باسیند په غاړه او د تاتمی په خوا کښې و. جلسه په ډېره کامیابی ختم شوه او خلک مو د خدایی خدمتګاری د تحریک نه خبر کړل. د غو نو نه مشرانو قوم راغلی و دوی مونږ سره خدایی خدمتګاری کښې د ملګرتیا وعده وکړه. مونږ چه به هر چیرته تلو نو د پیټی میا صاحب او بهادرخان انسپکټر به راپسی وو مونږ د شپې د پاره دې کلی کښې پاتی شو، د شپې د ټول کلی مشخې راجمع شوې ما او حکیم صاحب ورته تقریرونه وکړل چه ترکومی پورې تاسو

دقام دپاره ملا تړلی نه ده قوم وچتیدی نه شی او دخپل ملک دجامو اغوستو دعدې
می تړی واخیستی چه دخپل ملک جامی به اغوندي .

زمونږ دی جلسې له دپوړی علاقی د زروبی صدر سره دیو خوخدایی خدمتګار
هم راغلی وو او مونږ ته یی وویل چه له دی طرفه وزکار ستي نو زمونږ کلی ته به راځئ ،
مونږ دخپلو تللو اراده پټه ساتلی وه چا ته معلومه نه وه چه مونږ به کوم خواځو سرحد
پولیس هم راغلی وو او دپنجاب پولیس هم راغلی وو هغوی هم تحقیق کولو خو مونږ هم
دخپلی ارادی نه څوک نه خبرول . چه سحر چای مو وڅکله نو ما حکیم صاحب ته وویل
چه ته زمونږ دپاره دپنځو تمتمو انتظام وکړه او بیا مو هم خبره پټه وساتله چه
کوم خوا به ځو ؟ چه مونږ ادی له روان شو نو دزروبی صدر صاحب دوی موږ رخصت
کړل او داوعده می ورسره وکړه چه دپنج دوره ختم کړو نو صوابی ته به راشو او ضرور
به ستاسو کلي ته راځو به دغه وخت کښی ما خپله اراده ظاهره کړه چه زما داخبره
دپنج یو تانه داد واو ریدلو به منلی ه مونږ نه مخکښی لاړو او زمونږ یو تمتم لی په
زور روان کړو او زمونږ نه وړاندی ورسیدو . ما حکیم عبد السلام صاحب
او دهغه اړی کارکنان ده پیری شکر یی نه پس واپس رخصت کړل صرف ده هیوره
هغه کونیل صاحب راسره پنج ته روان شو تمتمو کښی سواره شو سړک کچه وه شکی
دی ، خوړونه وو او ریګونه وو ، اسونه به ډیر تکلیف و ، اکثر به ورسره پخپلو پښو تلو
ځای په ځای خلک سړک ته زمونږ دلید و دپاره راوتلي وو هغوی سره مو خبری
وشوې . زه به دعامو خلکو مینی او اخلاص ته حیران شوم او شکر به می کولو چه الله تعالی
په پښتنو ډیر فضل او کرم کړی دی چه ددوی په زړونو کښی دی دقامولی او ورورولی

عبدالرحیم خان مرحوم چه پر حبوشین شوه . خو پر زور آورو او خولکو تر بلله تنګ
راغلی او تخیل . ده باز ار مشهد ته مقیم شو . مسله ته ورله مور مرحوم راغلی اوالګه . ملخه وخت
هلم کوول . هلی ته به چه بیا راغلی رحیم خان مرحوم څلله راغل . رامد خو کی تر ا وتلل
ورتو مړه ته روان یو . ده تقریر ده پاره ۵۱۸ موږ د ... * ده ... حکومت

احساس پیدا کړی دی ، مونږ چه چه ته نږدې شو نو به زړګونو خلک ز مونږ په انتظار
دکلي نه بهر ولاړ وو او جنډې ورسره وې . زمونږ په لید و هغوی نو هم راوباندی نو
شول او چه رانږدې شو نو مونږ هم هغوی سره پیاده روان شو ، څه وخت چه دپنجاب چا
به حد کښې داخل شو نو مونږ پولیس او خانان او ملکان ولیدل چه ولاړ دي توپک
او توری جنډې یې په لاس کښې دي سره کچه و ، ډیګونه وو او ډیر خلک وو ، په دی
وجه دومره دوړې وې چه تیاره یې جوړه کړې وه . مونږ چه د خلکو ته نږدې شو
نو خدایي خدمتګار او نور خلک ورسره ل د طورو خان عبدالرحیم خان ماله راغي
او راته یې وویل چه پولیس درته سره بند کړی دی او یو پیرنګی هم ورسره دی مونږ
مخکښې نه پرېږدي ماورته ووې چه څه حکم ورسره شته چه اخر په څه وجه مونږ
نه پرېږدي هغه وې نشته پولیس په توپکو سنګینونه جوړ او کړي دي او مونږ ته یې
یې نیولي دي ماورته ووې چه څه حکم ورسره نشته نو ورځئ پرېږدئ مه وددرېږئ کا
هغه پیرنګی د پولیس کپتان و او ډیر تریخ او خراب ومخکښې هم چه مونږ خدایي
خدمتګار چه له راغلي وو نو ډولونه یې ترې شلولي وو جنډې یې ترې اخیستي وې
او چه ته یې نه وپرېښې . هغه پولیس له د ګولی چلولو حکم ورکړی وخو مونږ هجوم
چه یې ورتغی نو به هغوی داسې هیبت راغلی وچه توپک یې چلولی نه شو او ورته کړ
به تلل په دی تیل کښې پیرنګی هم تمیله شو او چه څه وخت هغه پوه شو چه پولیس ګولی
نه چلوي نو څپله یې یو توپک واخیست او امین جان خان ورته سینه برېنډه کړه
چه وله هغه باندی هم هیبت راغی او دا امین جان نه یې پوښتنه وکړه چه عبدالغفار خان
چیرته دی ؟ امین جان پوه شو چه دی ګولی نه چلوی نو زه یې ورته وښودم هغه ماله

[illegible]
[illegible]

داعي او ماته يې ډېره مشکله داوويې چه ماسره حکم دی مالاس وچت کړو او خدايي

خدمتګار د دې دپاره ماهغه پېرنګی ته وويې چه داخوستا ډېره بې وقوفی ده چه تاماته

حکم نه دی ښکاره کړې تاله په کار وچه ماته دې مخکښې حکم ښودلی وای مونږ د

حکومت حکم منلو ته تيار ديو اوس که داګولۍ چلېدلې وای خلک مړه شوی وای نو د

دې به څوک ذمه وارو ؟ هغه ومنل چه دا زما غلطي وه . دخدايي خدمتګارو په ده

دومره رعب پرېوتی ؤ چه ټول رچپډ او حکمنامه يې اوروليې اولوستلې هم نه شوه

ماتو ته يې واخيسته او ومې لوسته هغه کښې ليکلي وو چه تاسو دلته جلوس او جلسه

کولی نه شئ ما هغه له ډېره تسلي ورکړه او ورته مې وويې چه مونږ ته بالکل دا حکم

منظور دی د سرحد ورته نږدې ؤ ماهغه ته ووی چه مونږ سرحد کښې خو جلسه کولی

شو ؟ هغه وويې چه بې شکه دا حکم د پنجاب دپاره دی مونږ سره هغه ټول خلک سرحد

ته واوړېدو او يوه لويه جلسه مو وکړه . په دې جلسه کښې د ټچ د ټولې علاقې دهرکلي خلک

شريک وو ما جلسه کښې د خپلو راتلو مطلب بيان کړو او د خدايي خدمتګارۍ د تحريک

نه مې خلک خبر کړل او ورته مې وويې چه تاسو هم پښتانه يئ او مونږ هم پښتانه يو ديو بابا

اولاد يو مونږ غواړو چه تاسو هم مونږ سره په دې نوي ورورولي خدايي خدمتګارۍ

کښې شريک شئ زمونږ د ټولو پښتنو به يوه جرګه وي قومي مسئلې به هغوي فيصله

کوي او په دې وسيله به ديو بل د غم تکليف او مصيبت نه خبر يو . و نو مونږ به هم د نورو

قومونو په شان يو قوم شو مونږ به آباد شو او زمونږ بچي به آباد شي .

جلسه ختمه شوه او خلک رخصت شول ، ټول خلک خواره شول ، مونږ ځان ته

په ميدان کښې پاتی شو درواښه وتجويز مو کولو چه په دې کښې د اسميلا هغه د پټي ميا

اود پیر پاپي انسپکټر داغلل اوزه یې بېل کړم او دا ته یې ووې چه مونږ ستاسره دورکړي

ولې یو ښو خبرې کول غواړو. ددوی ورو دولي خو مونږ هغه ارځ کښې لېدلي وه دا غلامان

وروڼه یو عجیبه مخلوق دي چه حاجت یې پېښ شي نو دسړي وروڼه شي او د پیر منکیان

دپاره چه ملاوتړي نو دسړي برخلاف هر قسم حربي استعمالولو ته تیار دي. ددوی په

ملک او قوم باندې هیڅ کار نشته او هر وخت په دې کوشش او فکر کښې وي چه مونږ

به څنګه داسې کار وکړو چه صاحبان خوشحاله شي او په هغوی مو احسان وشي او دا هر څه د خپل ځان

دپاره کوي د صاحب د خوشحالۍ دپاره یو ذلیل نه ذلیل کار ته هم تیار دي. ما ته ددوی چه څه

وایه ددوی دا ته شروع شو چه تا ته معلومه ده چه په دغه علاقه کښې حکومت په تا باندې د دفعه

ایک سو چوالیس ولګوله په دې کښې ته نه جلسې کولې شې او نه تقریر ورنه کولې شې نو دغه به

ښه نه وي چه تا سوله مونږ لادې درکړو او مونږ سره هر یو په ته لاړ شې او بیا دغه ځایه

پېښور ته لاړ شې! ما دوي لېدلي وو چه د پیرنګي سره ناست وو او خبرې کولې دا ښځې

ورته هغه پرا و کړې وه چه په هر طریقه چه وي چه دوی ددې علاقې نه واپس شي هغه د پنجاب

څه افسرانو د خو صاحب خوږ او ددوی د پاره د صاحبانو خوشحالول یو ه لویه خبره

وي ما ورته ووې چه واپس تلل نه شو او نه مونږ دلته نور د ورځ کوونت مونږ د غرغشتو

خان میلمانه کړې یو غرغشتو ته ځو او هغه سره شپه تېروو سبا له به په دې لاره پېښور ته

ځو. ماخپل خدايي خدمتګار په څلورو څلورو ټولو کښې تقسیم کړل او غرغشتو ته روان شو

چه هغوی لا دل نو بیا زه هم د سودم د سالار صاحب او عبدالرحیم خان سره غرغشتو له

روان شوم او د خان حجرې ته مو ځان ورسولو ما بنام نزدې و چای مو وڅکله بیا دام

مو وکړو د ما بنام د لمونځ نه پس مې د کلي خلکو سره ولیدل، خبرې مو وکړې بیا مونږ ټول

دوډی ته کښېناستو چېرته زما دخولې نه داووتل چه داپېرنګی سبه سهار ونوزمونږ - خدائي خدمتګار د هرپور کورنیل راته ووې چه سبه سهار چېرته و، داخو بیا وروسته سبه سهار شو اول خو چه مونږ ته نزدې شونو ماسره جنډه وه فوراً ئې زما په جنډه حمله وکړه اوزما نه ئې جنډه ونیوه اوچه ما چک ورکړو او جنډه مې ترې خلاصه کړه نو بیا ئې په ما حمله کوله چه په دې کښې غوبل جوړ شو. بله دا چه هغه خوسپایانو له حکم ورکړې وو چه په دوی کولی وچلوئ خوسپایان وارخطا شوی وو، دی په خدائي خدمتګارو د مخکښې نه عادت و. زمونږ خدائي خدمتګار چه دلته په دوره راغلی وو د هغوی نه ئې جنډه په زوره اخیستی وه او ډولونه ئې ورله هم شلولی وو او بیائې واپس کړې وو د ده داخیال وچه دا ځل به هم زه هغسې کامیاب شم خو دا ځل خدای داسې وشرمولو او داسې بې رعبه شو چه زه ئې درته بیان کولی نه شم، دالاخه کوی چه دخلکو په زړونو کښې دحکومت رعب پاتی نه شو.

شپه ډېره په خندا او خوشالی تېره شوه سحر خدائي خدمتګارو چای څکلی د هرپور کورنیل صاحب محمد حسین بهر په پېره ولاړ و چه ما دده څه خبرې واورېدې ما ورته غوږ ښنتو او ورته مې ووې چه څه خبره ده، هغه اووئیل چه یو څو افسران راغلی وو ما دننه راپرې نهښول ځکه چه تاسو چای څکلی. ماورته راپرېږده چه دننه راشی چه را دننه شول نوما وخندل او ورته مې ووې چه خیر دی بیا موخه نا درشاهی حکم راوړی دی؟ نو هغه وخندل ویل چه زمانوم نادر دی، دچایو ست مې ورته وکړه چه ما چای وڅکلی هغه یو بل حکم ماله راکړو چه د دفعه ایکسو بیالس ( دقانون ۱۴۲ ماده ) مطابق تاله حکم درکیدی شی چه ته فوراً د دی علاقې نه وځه ما ورته ووې چه حکم ما ته منظور دی چه څه

دوه دي وخورو نوفوراً له دې ځايه روان شوا وستاسو د حکم تعميل به وکړو مونږ چه دوه دي وخوره نو دنلوا انتظام مو وکړو خو معلومه شوه چه لا دوه الاوله او تم تم نو لپوليس حکم وکړې دی چه داخلک په سورلی کښی بونه ځی مونږ يوتم تم د اسباب د پاره هم پيدا نه کړو ماتول خدائي خدمتګار بيا ځلور ځلور کړل خپل اسبابونه مو واخيستل او روان شو چه ماسپښين شو د سړک په غاړه يو کلي ته لمانځه له ورو ګرځيدو خلک چه خبر شو نو يو ساعت کښی جماعت د کلي د خلکو نه ډک شو د لمانځه نه پس مو خلک د حکومت د زور او زياتی او د خدائي خدمتګاری نه خبر کړل او په دې مو پوه کړل چه د حکومت مونږ ليښتانه مخ قسم ترقی او اتفاق ته نه پريږدي تاسو په دې خبره خان پوه کړي .

## دهزاري نه واپسي:

په دی کښی بيا هغه افسران راغلل او وائي چي دوه ی چه تا ايک سو چواليس ماته کړه ماوی په لومړ هم دا دفعه ماتيږي ؟ نو لورځه تري جوړ نه شو نو يوه بله دفعه يي راته ښکاره کړه چه د نورو پريوتو نه اول د پنجاب نه بهرشی او که بهر نه شوی نو قانونی کاروائي به درسره وشي ما هغه ډپټي کمشنر ته وليکل چه لا دی او تم تم تاسو په مونږ بند کړي دی مونږ سره څه داسی ذريعه نشته او نه هوائي جهاز شته چه د نورو پريوتو نو راندې د پنجاب د علاقی نه بهر شو مونږ ته د پنجاب نه بهر کيږو د پاره څه انکار نشته که تاسو راله د بهر کيدو انتظام کولی شئ د دې نه پس افسران مخکښی او مونږ ورپسی په سړک کښی ځای په ځای زمونږ د بند ولو د پاره يي وني اچولی وې ، مونږ خبر شو چه ډپټي کمشنر او د پوليس کپتان سره د خپلو خانانو او ملکانو راغلي دي او مونږ ته وراندی په سړک ولاړ دي نو زه د خدائي خدمتګارو نه مخکښی شوم او چه څه وخت مونږ هغوی ته نزدې شو او خلکو مونږ وليدو

و دشاو خوا خلک دغلته راغونډ شو او مونږ پیښی روان شو، مونږ منع کول چه ایک سو چوا-
لیس دی مونږ سره مه راځئ خو هغه دخدای مخلوق چا په قبضه کښې راوستی شو ل
هغه مجسټریټ او دپولیس کپتان ماله راغلل او راته یې ووې چه زمونږ په کوشش سره
د پیټی کمشنر صاحب راضی شو چه ستاسو دپاره دسورلي انتظام وکړي، دپیټی کمشنر
هم زمونږ مخې له راغی، زه تړ ی شوی وم او به می وڅکلې هغه خلکو ووی مونږ تاسو له
چای پخه کړې ده، مونږ سره چای وڅکئ، ما یې شکریه ادا کړه او ورته می ووی چه ستاسو
چای مونږ وڅکلې او که ژوندی یو نو بیا به راشو. په خبرو کښې دخدایي خدمتګارو ذکر
راغی نو هغه دپیټی کمشنر راته ووې چه ستاسو نظریه دعدم تشدد نه ده، داخو چل دی
وس چه ستاسو طاقت نشته نو تاسو تشدد نه کوئ خو چه طاقت پیدا کړئ نو بیا به تشدد
وئ ما ورته ووې چه زمونږ دا تحریک د ربښتیا و تحریک دی، مونږ منافقان نه یو
چه په خوله مو یوه دي او په زړه مو بله وی. خدایي خدمتګار لا ډیر ته وختل او زه چه
وتړ ته ختم نو هغه دپیټی کمشنر راته ووې چه دخدای دپاره بیا دې علاقې ته رانه شې
ورته وې چه پیچ کښې زمونږ ښښتانه ورونه دي، دوی دپنجاب نه جدا کړې، نو بیا به
راځم. مونږ ددی نه رخصت شو، زه دپولیس کپتان ځان سره خپل موټر کښې کښېنولم
خدايي خدمتګار لي په لاری کښې کښېنول. تا نه دا رهم ما سره موټر کښې ناست وما ته
ووې چه ته دې خلکو له څو مره تنخوا ورکوې؟ دهغه په دې خبره ما ډیر وخندل او
ته می ووی چه دوی ستاسو په شان دګرایي تنخوان نه دي دا هر یو سړی دخپل جایداد
وند دی او په دې کار کښې خپلې پیسې لګوي نو هغه راته ووی چه بیا د دې نه فایده څه؟
ورته ووې چه فایده دا ده چه مونږ خپل قوم دغلامۍ نه ازادوو، د پښتنو دغلامۍ نه نفرت

دی اود غلامی ژوند تیرولو ته تیار نه دی چه په دی کښی داتک کلا ته ورسیدو او زمونږ
نه لاری د پېروروسته پاتې شوې وه . نو دهغې د پاره داتک په ډاک بنګله کښی ایسار شو .
داتک ډاک بنګله ډېره په ښکلی ځای کښی ده . مونږ برنډه کښی ناست وو او اباسیند ته
موکتل نو هغه راته ووې چه پښتانه بل شان قوم دی دوی د پنجابیانو په شان نه دی
ماورته ووی چه تاخولا اصلی پښتانه لید لی نه دي ته که چیری یو ځل پیښور له راغلې نو مونږ
به درته ټول پښتانه وښیو . د خدایی خدمتګارو لاری را ورسیده مونږ پاڅیدو
موټر کښی کښیناستو او خیراباد ته ورسید و نو د موټرو اولاری نه کوز شوو او هغه پېر نګی
ډېر په مینه محبت زمونږ نه رخصت واخیستو او زمونږ یو ورو کی خدایی خدمتګار
باچاګل یی ځان ته نژدې کړو او مایی شکریه اداکړه او هغه راته سره دوړ و ملګرو رخصت
شو . د خیراباد په بازار کښی مونږ د لاری انتظار کولو چه خلک خبر شول په یو ساعت
کښی ډېر خلک راته چاپیر شول مونږ نو سباره پورې یوه لاری وکوه و سبا نام نو سباره ته
را ورسیدو . مونږ به وختی را د سیدلي وو زمونږ لاری چه په لار درا تله نو یو فوجی د
او تو پک په لاس را منډه کړه ، لاری والا ته یی ووې چه ودرېږه مونږ لاری ودروله
هغه راته تو پک نیغ کړو او ویی ویل چه که لاری دروانوئ اوس مو به تو پک ولم ماورته ووی
چه مونږ خو کمزوری خلک یو ستا د توپک د خواب نه یو که چیری د خدایی خدمتګار د یو
ته تلل جایز نه وی نو مونږ ته ووایه چه کوز شو . په دی کښی د هغه صوبیدار راغی هغه
هم ووې چه ما سره هم حکم نشته زه صاحب پسی ځم ، صاحب یی هم راغی هغه چه مونږ ته
وکتل نو واپس شو . نه رانږدې شو او نه یی راسره خبری وکړې . هغوی نه لی ووی چه دا د
پولیس کار دی اخر چه پولیس راغی او د تلو اجازه یی را کړه ما ورته ووې چه مونږ په دی

نه شو چه داود دلي مووږلي يو او اوس پرېږدې مووږلي نو هغه پوليس والا وخندل او وې وي چه دسړکار په دماغ کښې فرق راغلې دې.

نوسبا رکښې مې ټول خدايي خدمتګار رخصت کړل په دې کښې يو پېرنګې راغې او معلوم خدايي خدمتګار دونه يې وويل چه زه اوس عبدالغفار خان ليدې شم؟ ماورته ووې چه په ډېره خوشالي مونږ خو خدايي خدمتګار يو او هرچا سره ګورو هغه سړه مې وليدل بيا زه پېښور ته روان شوم لاړم په لاره کښې پنجره شوه ما سخته پېښور ته ورسيدو. خدايي خدمتګار په دفتر کښې پاتې شول او زه او باچاګل دډاکټر صاحب بنګلي له لاړو.

سانه اول هم يوه ګمنامه چيټي راړسيدلې وه چه په هغه دچانوم نه وخو ماته يې ليکلي وو چه زه تاخبر وم چه حکومت دا فيصله کړې ده چه تاستا ورور او ستا ټول خاندان ګرفتار کړي او ددې ملکه مولېرې کړي. او يوې جزيرې ته مو ولېږې خوزه دې خبر وفکر نه کوم ځکه چه خوک دخداى دپاره دقام خدمت کوي نو دا هرڅه پکښې وي اوس بيا خپلو دوستانو خبر کړم چه دسرحد حکومت مرکز ته ليکلي دې چه څه وخت دې ګرفتار کړو داسې يو ملک ته يې لېږل به کار دې چه هغه ډېر لېرې وي او دسرحد باد پرې نه لګي اول چه دګجرات جيلخانه کښې وو نو دسرحد ټول کار به يې چلولو داخلي داسې ځاى ته يې لېږل به کار دي چه دې دسرحد دخلکو نه خبر نه شي او که داسې ونه شو نو ددې تحريک ختمول مشکل دې. سرحد حکومت کوشش کوي چه تاسو زر ګرفتار کړي. ماورته ووې چه خوک هاتيان ساتي نو دروازې لوې پرېږدي تاسو ددې پروا مه کوئ چه خداى شته نو هيڅ نشته حکومت به خپل کار کوي او مونږ به خپل کار کوو.

ماسره فکر وچه حکومت به ما دصوبه سرحد دوړې ته پرېږدي که نه؟ ما هغه

دوره په سنبه شان وکړه دهغه اړې دوره می هم وکړه کوره په کوره، علاقه په علاقه وګرځید

اوس می هیڅ پروانشته که حکومت می هرڅخت نیسی نو می دې نیسی .

## د ترنګزو حاجی صاحب او خدایی خدمتګاري :

د پاچاګل په نوم زمونږ خلاف یوخه پراپیګنډه شروع شوی وه زما پرې یقین نه

کیده ماوی دی خود حاجی صاحب زوی دی او حاجی صاحب زمونږ ملګری دی ک

په څنګه زمونږ برخلاف پراپیګنډه کوی نو ولي می په ۱۴ جون ۱۹۴۲ د دوهم جنګ دوران و

د پرې پټ مومند وته ولیږه چه حکومت خبرنه شی ولی لاړو او هغه ېې رلیده د پیری خبر

ورسره وشوې ، دغه وخت حاجی صاحب د ترنګزو وفات شوی و او پاچاګل کل اختیا

وخو چه واپس راغی نو بله ورځ زه صوابۍ له تلم په لاره کښې د هوتی بازار کښې مولانا ګل با

په مخه راغی هغه اشاره وکړه زه ورته ودریدم هغه بیل کړم ده راته وې چه ستا برخلاف

توله پراپیګنډه قلی خان کوي خود پاچاګل په نوم یې کوي زه سباله مومند وته ځم او پاچا

سره ددی فیصله کوم چه دا چرته خدای مونږ له یوسړې پیدا کړې دی نو ده پسې پراپیګ

مه کوه او که کوې نو بیا مونږ له دده په ځای یو بل سړې راکړه .

زه دیوځور ځوله دحال معلومولو دپاره اتمانزئ ته لاړم او په دې فکر کښې و

نن دی که سبا حکومت دې نیسی وخت ضایع کول په کار نه دی اوپه کور کښېناست

اوشومره چه کیدې شی کار کول په کار دی . ماخو د صوبې توله دوره ختم کړې وه .

خلیلو مومند وجرګو او خدایی خدمتګارو متعلق راته داسی خبرونه رسیدلي و

هلته بعضی داسی خلک شته چه د خپلی ناپوهۍ په وجه خلکو ته دوکي ورکوی او د م

عالیه دحکم نه بغیر داسی کارونه کوي چه مناسب نه دی او جرګو او خدایی خدمتګار

هم داسې خلک شته چه مذهبي جامه کښې په دله کښې نفاق پيدا کوي. بل داچه د ارباب عبدالغفورخان او عاشق شاه باچا په نيولو خلکو کښې تيزي هم پيدا شوې ده لوماوېچه دې علاقې له لاړشم چه کلې ته ورسيدم نو راته معلومه شوه چه زما ورارہ عبيدالله خان چه دماليې په حوالات کښې بھوک هړتال کړې دوه هفته حکومت په پښو او په ميټر کښې پې د کپتان صاحب بنګلې ته ورسولوزه دهغه دليدو د پاره واپس منباره ته لاړم.

## دخليلو مومند و دورہ:

ما دخيلو مومند و دوره شروع کړه چونکه دفعه ايک سو چواليس لګيدلې وه نو مونږ يوه لوبه جلسه تهکال کښې دششيپي په يو جماعت کښې وکړه حکومت ځای په ځای دفعې لګولې وې او زمونږ جلسې پې بندی کړې وې سبا له کلوته روان شو او کلي په کلي به ګرځيدو او خلک به مو په خدايي خدمتګاري پوهول او دوباره مې په جماعتونو کښې وعدې واخيستې چه تشدد به نه کوو صبر به کوو ولې چه خدای د صبرناکو ملګری دی او چه خدای دچا ملګري وي فتح به دهغه وي رومبې جلسې مو د مومند ونيپي په پادګی، بادرکلې، بله بيره، شيخان، شاب خيل، متنې په جماعتونو کښې وکړې او خلک مو پوه کړه دلته مې دخدايي خدمتګارونه بياد عدم تشدد وعدې واخيستې اخري جلسه مولنه ئ کښې وکړه او خلک مې په دې پوه کړل چه داناسو چه زماد بادشاهي چغې دهئ نوچه داتحريک مونږ شروع کړې دی داخود باچايي دپاره نه دی چه زه دی بادشاه شم او که چيرې تاسو ما بادشاه کړې نو اول خو په اسلام کښې باچايي نشته او بله داچه ستاسو به خاورې په سرشي

او زما به مزي وي نو تا سو پوه شئ چه نه ما او نه بل خپل با چا کړئ . مونږ باچایان جوړول نه غواړو ، باچایانو ته موضوعات نشته زمونږ به یو مشر وی او دقوم په رایه او مرضا او مشوره به وي او هغه سړی به وی چه دقوم خدمتګار وي ، دخان ، غریب او میا ملا فرق به نه وی بلکه هر هغه سړی به وی چه هغه نیک او ایماندار او دقوم او ملک خیرخواه وی تکلیفونه او قربانی او ډیر خدمت یې دقام او ملک کړي وي او چه ددی مشرۍ اهلیت او پوهه هم پکښی وي ، زمونږ حکومت به دجماعت تابع وی جماعت به د حکومت تابع نه وي ، بادشاهی خراب شی دی او دقوم او ملک پکښی ډیر نقصان دی ، او که چیری نن یو باچا شته هم وی نو سبا به یې زوی باچا وي نو څوک ویلی شی چه کوندی هغه به هم ښه وي او باچایان کله دخپل قوم ترقی غواړی ؟ ولی چه هر وخت دا خیال کوی چه که دا خلک پوه شول نو ما به لیرې کړي . نو هغه هر وخت دقوم د پوهې لاره کښی خنډونه اچوی دا ملک زمونږ دټولو پښتنو دی نو مونږ یو سړی نه خان کوو زمونږ به کوشش داوی چه ټول خانان کړو او داسی حکومت به جوړوو چه هغه کښی مساوات وي او دټولو خلکو پکښی یو شان خیر او فایده وي ، که پوره دی او که سپوره وی په شریکه به وی . امن وی ، انصاف وي زمونږ به دټول قوم یوه جرګه وي او دهغی په خوښه به یو صلاح وی .

زمونږ جلسو کښی به ښځې هم شریکیدلی . دخلیلو مومند و دوره چه ختمه شوه نو اخر کښی به زه دا ووایم چه دخلیلو مومند و جرګو او خدائی خدمتګارو ډیر ښه انتظام دی هر کلی کښی دفتر دی او په هغه کښی شپه او ورځ دخدائی خدمتګار پهره وي . په هر دفتر کښی یو کاریال دی چه کیتله په کیتله غږیږی دا ټول

انتظام د ارباب عبدالغفور خان او سید عاشق شاه باچا دی.

## ماتړ کانو بانډه، او رمړ خالصه:

خبره راغی چه قاری صاحب نخچل کلی ماتکیانو بانډه کښې د یوی لویی جلسې انتظام کړی دی او ماته یی لیکلی دي چه مونږ د خپل تحصیل د خدائی خدمتګارو د تربیت د پاره کیمپ کوو د دی د پاره ستا راتلل د لته ضروری دی. ما دغوی دعوت منظور کړی او د اتمانزو نه سحر وختی دستی جان کلی ته لاړم ولی چه باچاجی راته وی چه زمونږ د کلی نه لاره تلل یه کار دی، د سحر چای مو ستی جان سره وڅکله. دیر انګو صلی او سالار هم را ورسیدل او بیا مونږ نستی ته روان شو، زمونږ د راتلو نه چه د نستی خلک خبر شول نو ډیر خلک راجمع شو هغوی ته می یو مختصر تقریر وکړو او دوی ته می ووی چه خپل کور جوړ وو، دشمنی، ترګلنی، پری جنبی او نفاق پریږدو ددی د لاسه زمونږ کور بر باد دی، د نستی نه مونږ د سیند غاړی له لاړو د بیړی انتظام شوی و بیړۍ تیاره وه صلی صاحب او سالار د صاحب واپس شول مونږ په خیریت سره له سیند نه پوری وتو ځای په ځای خدائی خدمتګار ولاړ وو ماله یی اس را وستی و خوزه پیاده دوی سره روان شوم. د قاری صاحب کلی ته ورسیدو قاری صاحب ډیر ښه انتظام کړی و دفتر او دغه احاطه یی ښکلی کړی وه. خلک د دفتر کښی ناست وو تبادله خیالات وشول او ډیره دی وخت شو ددی نه پس جلسی له لاړو جلسه د کلی نه بهر وه، ډیر خلک وا او په زړګونو ترا وښځی راغلی وو جلسه کښی تقریرونه وشو، نظمونه لی وویل، زما د تقریر وخت کښی می اول د دی د پاره چه د قادی صاحب زامن حکومت ګرفتار کړی وو هغه دی ظاهره کړم او خلکو ته

می ووې چه نن دی که سبا په مونږ یو امتحان راتلونکی دی تکلیفونه او مصیبتونه راتلونکی
دي که تاسو به صبر سره دهغو مقابله وکړه نو امید دی چه مونږ به کامیاب شو او خلکو ته
می دا هم ووې چه مونږ خدایي خدمتګار تاسو د خدای د پاره خدمت کوو ولې چه
تاسو زمونږ قوم یئ او احسان در باندی هم نه کوو خکه چه دا زمونږ فرض دی او یوازی
زمونږ نه دی دټولو پښتنو فرض دی ، مونږ ستاسو ګټه وی یو او که چیرې داسی
خلک په ملک کښې وي چه ددی خپلی ګټی د پاره ملاتړلی نه شی نو ندې ترې لیکن
زمونږ پښې دې دښمن ته نه راکاږي ، او که زمونږ ملګرتیا نه کوی خیر دی خو چه د
قوم او ملک د دښمن سره ملګری نه شی . بیا ښځوله ور غلم او هغوی ته ووې چه دا ملک
چه څنګه د سړو دی داسی ستاسو هم دی او دا ستاسو چه څنګه خیال دی چه سړي لوی
دي او ښځه وړوکې ده دا په اسلام کښې نشته لوی په عمل ده که ښځه با اخلاقه ، نیکه
او پاکه وي نو هغه لویه ده او که دغه شان یو سړی وي نو هغه هم لوی دی او که دغه شان
یوه ښځه بد عمله ، بد اخلاقه وی نو هغه وړوکی ده او که یو سړی هم دغه شان وی نو
هغه هم وړوکی دی ، په دې ملک کښې ستاسو مونږ سره یو شان حصه ده ، ښځه او
سړی دکاډی دوه پایې دی که یوه پنچر شی نو ګاډی مخکښې تلی نه شی . جلسه په کامیابۍ
ختمه شوه .

زمونږ دا ورمرو صدر صاحب او ورسره دیر خدایي خدمتګار راغلی وو زه
هغوی مجبور کړم او ځان سره یې راوړ او روسته بوتلم د دوی د دفتر ته چه ورسید و نو څه
اول دخپل شهید خدایي خدمتګار صوبیدار صاحب د بچوکتوله او عاله لاړم بچې یې ما
له راغلل او خپله غېږه کښې می کینښول دعامی ورته وکړه او سیما نده ګانوله می تسلی

هو کړه چه مرګ ښته او خلاصی تري نشته او دی خو په داسی مرګ مړ دی چه خدای
ورته ژوندیلي دي خو مونږ پری نه پوهېږو او چه ترڅو دا دنیا اباده وي دهغه نوم
به هېر نه شي، دشپې موجماعت کښې جلسه وکړه دلته هم جلسې بندې دي سباله د
اورمړو منځ کلی له لاړو دلته زمونږ په خدایي خدمتګارو کښې بی اتفاقی وه ددی
می دخدایي خدمتګاری په مطلب او مقصد پوه کړل او ورته می ووې چه تاسو په دی
تحریک خان نه دی پوه کړی او تاسو نه هېره شوی ده چه مونږ خدای سره دا وعده
کړې ده چه مونږ به پرې جنبې، دشمنی، ترګلنی، مخالفت، جګړې او بی اتفاقی نه
کوو نوزه ستاسو په خدمت کښې داعرض کوم چه څوک دشمنی، ترګلنی، پرې جنبې،
پرېښودی نه شی نو هغوی دې خدایي خدمتګاری کښې نه داخلېږي او چه داخیزونه
کلی پرېږدی نو بیا دی خدایي خدمتګار شی او که دې کښې هم داخیزونه پری نه
ږدو نو ددی ورورولی فایده څه شوه؟ دې څیزونو خو مونږ برباد کړی یو. زما په
تقریر دوی نه پوه شول او څه اثر پری وشو. له دی ځایه مونږ دریم کلی ته لاړو، او دمړ
دړې کلی دي، هلته مو هم په جماعت کښې جلسه وکړه. زمونږ د ویرولو دپاره حکومت
دجلسی په رخت کښې ډېر باډر پولیس راوستلی وو چه خلکو یې هیڅ پروا ونه کړه
نو بیا لاړل. ددی ځایه زما اراده وه چه کیجوری له لاړ شم لیکن زما طبیعت خراب شو
او هغه دمرکز نه دوه میله لیری وه او پیاده مزل و. نو بیا شپې له میاں ګوجرو له لاړو او
بابو فضل الهي سره مو دخوند شپه تېره کړه دشپې مو جماعت کښې جلسه وکړه او چه خلک
زمانه خبر شول نو ښځې نر په ډېره مینه محبت جلسې له راغلل سباله هزارخانی له
لاړو. ددې ځای دجرګی او خدایي خدمتګارو انتظام می ډېر خوښ شو او بیا په دی

علاقه کښې کلي په کلي وګرځېږ او خلک مې په عدم تشدد په ښه شان پوه کړل او په صبر مې ډېر زور ورکړو او د دې ځې دوره ختم شوه.

## لاټ سره لیدل:

زما طبیعت ښه نه وځکه چه نه د شپې ارام وو او نه د ورځې باچاګی دستي جان شاګرد و هغه به نظمونه اوورول هغه هم ناجوړه شو هغه مې هم کلي ته رخصت کړو زه پېښور ته راغلم او ډاکټر صاحب سره پاتې شوم هغه راته د لاټ صاحب د ملاقات په باره کښې ووې چه تاته به یاد وي چه څه وخت ته په ډیره اسماعیل خان کښې یې دوره وې نو ما ته لاټ صاحب یوه چیټهي ستا د ملاقات د پاره رالېږلې وه، زمونږ مخکښې لاټ صاحب مړ شوی وو او د هغه په ځای سر رائیلف ګرفیته لاټ شوی و ما وته ووې چه ما ته په ملاقات کښې څه عذر نشته، هغه لاټ صاحب له زما د موجودګۍ خبر ورکړو او د ری بجې ملاقات مقرر شو زه ټیک دری بجې د لاټ صاحب بنګلې له لاړم د هغه سکرټر زما په انتظار کښې ولاړو ما ته یې ورلېږې کړې او لاټ صاحب له یې بوتلم، لاټ صاحب ما له مخې له راغې او زه یې ځان سره په کوسۍ کښېنولم او سکرټری بهر ته را ووت او مونږ لېږې ورپودې شو دروغ جوړ نه پس اول سوال یې په ما داوکړو چه زه تول عمر پېښور کښې پاتې شوی یم خو ته مې لیدلی نه یې ما ورته ووې چه تا سوله اکثر هغه خلک راځي چه خپل کاروونه لري. بیا د خدائي خدمتګارو خبرې شروع شوې، ده راته ووې چه زمونږ او د پښتنو ډېر ښه تعلقات وو خو د بعضې خلکو په ګرمو تقریرونو هغه تعلقات خراب شو ما ورته ووې چه تعلقات په تقریرونو نه خرابېږي تا ته به معلوم وي چه تېمین پښتنو سره کوم قسم سلوک کړې او د دې په اوږدو سره لاټ صاحب سترګې ښکته کړې.

جیمسن د پلیس کپتان وچه په ۱۹۳۱ع کښې د چارسدې په شرابخانه مونږ پکټنګ لګولی
و ده د خدايي خدمتګارو مخصوص ځايونو ته دکې کوزې ځورندې کړې او دخپې توب
مشین یې پرلیسې راوړو او دهر خدايي خدمتګار پرې حسیان شول او دا اواز به یې کولو
چه د پېښتنو غېرت کوم خدايي خدمتګارو نه به یې جامې وشلولې او بربنډ به یې کړل او چه
په وهلو کښې به بې هوشه شونو دغو لودمتیاز و به یې د ده وکې جورکړې ده ځه ته به یې کذا کړو
داز مونږ پښتانه د موک نه هم بدګڼړې ماورته ووې چه ګوره مونږ خدايي خدمتګار
هم ستاسې رعیت یو نو مونږ سره هم کم از کم هغه سلوک کوئ چه نور و رعیت سره یې کوئ
نو هغه ووې چه مونږ یو شان سلوک کوو او خلک بې ګناه نه ګرفتار وو ما ورته ووې
چه په دې ستاسره بحث نه کوم لیکن اکثر خدايي خدمتګار بې ګناه ګرفتار ووئ او د
دروغو مقدمې پرې جوړوئ ده ووې چه هغوئ ځه ناځه کړې دي ماورته ووې چه
د سودم خلانو څه کړې دی چه تاسو ګرفتار کړي دی؟ او د مردان په حوالات
کښې پراته دی شاه پسند خان او الله داد خان د جلیل ځه تقصیر کړې دی؟ شیر
بهادر خان او دهغه نور و خوارانو څه قصور کړې دی؟ اخر کښې د ازاد مرحد خبرې شوې
ماورته ووې چه تاسو د پولیټیکل ایجنټ په محکمه په کوروړونو روپې لګوئ نو دد ی نه
څه فایده وشوه؟ نو ده ووې چه مونږ خپله علاقه بېدې باندې د دې خلکو دشر نه
بچ کړې ده ماورته ووې چه د څومره مودې نه تاسو په دې لګیایئ او ترکومه حده کامیاب
شوې یئ نو ده ووې چه دډیر شو کالونه زمونږ دا کوشش دی خو ترا وسه پورې
کامیاب شوي نه یو ما ورته ووې چه مونږ له پنځه کاله موقع راکړئ او تاسو چه څومره
روپۍ لګوئ دهغې شلمه حصه مونږ له راکړئ بیا زمونږ او دخپل کار مقابله وکړئ که زمونږ

هغه لا ره فایده منده وه نو هغه جاری وساتئ ! ما ته یې ووې چه تاسو به څه کوئ ما
ورته ووې چه مونږ به دغه روپۍ دخلکو په تعلیم صنعت او حرفت باندې ولګوو
او دخلکو به دا یقین راولو چه مونږ دا هر څه دقوم دفایدې دپاره کوو او دقوم خیرغواړو
پښتون داسې قام دی چه دی دزور په نسبت په احسان زر تابع کیږي بیا به نه
پخپله ډاکې کوی او نه به بل څوک پرېږدی . نو چه دلاټ صاحب نه نور څه جوړه نه شو
نو ما ته یې ووې چه دې ملک ته د روس او افغانستان نه ډېر ویره ده تو به دې
وجه مونږ دا کار کله پرېښودې نشو او دا فوجونه چېرته کمولی شو ؟ ما ورته ووې دافغانستان
غریب خواړو څه خبره مه کوه ولې چه هغه تا ته معلومه ده چه خپل ځان هم ساتلی نه شی
نو په مونږ به څه حمله وکړی ؟ او بله دا چه ستاسو په افغانستان کښې کوم باچاخوښ
نه وي نو هغه باچایي کولی نه شی پاتې روس شو نو که دهغه نه تاسو ته خطره وي نو په
کار دی چه مونږ له دخپل ملک واک او اختیار راکړئ په قول هندوستان کښې ستاسو
دومره فوج نشته لکه چه نن په سرحد کښې زمونږ خدایي خدمتکار دي . چه مونږ
له اختیار راکړئ نو بیا که روس زمونږ په ملک راتلونو مونږ به یې مقابله کوو او زمونږ
ښځې نر به دملک دحفاظت دپاره تیار وي نو بیا روس حمله نه شی کولی او که دا نه کوی
نو مونږ خو ستاسو دپاره جنګ نه کوو او س مونږ پوهه شوي یو چه جنګ دې مونږ
کوو او مزې دې ستاسو وي . زما ډېرې خبرې ده نوټ کړې او راته یې ووې چه
زه سبا له ډیلی ته ځم او ددې خبرو ذکر به وایسرای سره وکړم بیا یې راته ووې چه
زه امید کوم چه اینده به هم دغه شان زما او ستا ملاقات کیږي ما جواب ورکړو
چه لکه دا ځل چه دې څه دنګې ماپسې پولیس رالیږلی و دغه شان ماپسې پولیس رالیږه

نو زما اوستا ملاقات به کیږي . ده راته ووې ته خو عجیبه سړی یې ته خولږ بهر وګوره
ګومره خلک زما ملاقات ته راغلي دي زه ورسره ملاقات نه کوم او تاته زه وایم چه زما
ملاقات ته راځه او ته نه راځې نو ما ورته ووېل چه دا بهر خلک چه راغلي دي دا خو خپل غرض د پاره
پسې راغلي دي او زما خو غرض نشته . ملاقات ختم شو او زه د ډاکټر صاحب بنګلې له
راغلم . په سبا له می د نوښار د تللو انتظام وکړه

## د نوښار په تحصیل کښې جلسې :

د لسم دسمبر سحر وختي زه سره د خپلو مومند و خدایي خدمتګارو د نوښار ته
لاړو او دفتر ته ورغلو سلار صاحب سره د نورو خدایي خدمتګارو د دفتر کښې موجود
و اولږ ساعت پس د سینل د غاړې د کلو په دوره روان شو په لاره کښې می د شا-
هباز ګړۍ جرنیل ولید وچه پولیس په لاري کښې جیلخانې له بوتلو او دوه نیم کاله یې قید
کړي ؤ . مونږ باران کښې د کنډرو جلسه وکړه او دهغه نه پس سلار صاحب او د نوښار
کارکنان رخصت شو او مونږ د اکوړی جرنیل صاحب سره پورې وتو او پیر سباک کښې
مو جلسه وکړه او د پیر سباک نه شپې له زړې مینې له لاړو خلک راته انتظار کښې وو د
شپې مو هلته هم جلسه وکړه او د سحر لمونځ نه اول د زړې مینې نه روان شو باقي
تول د سینل د غاړې کلو کښې مو جلسې وکړې او خلک مو د تحریک په غرض پوه کړل شپه
مو خیرآباد ته ورسوله . زما طبیعت د اول نه سبه نه ؤ اواز می ناست و او د دې بې ارامی
په وجه نور هم ناجوړه شوم . ما به ډېر کوشش کو چه د کار نه پس می ارام ته پرېږدي
خو دوی نه پرېښودم . د شپې مو دلته جلسه وکړه . په دولسم دسمبر د ختکو علاقه
کښې د اباسینډ په غاړه خیرآباد کلی ته نږدې دیوی لویې جلسې انتظام مو کړو

هغی له د صوابي تحصیل په ژړګونو خدای خدمتګار راغلی وو د پیچ خلک هم په ښنا ز و
دا پوري وتي وو او موږ ته ولاړو کښې راغلی وو. زه د لږ ارام نه پس جلسې له لاړم،
شاعرانو قومي نظمونه واوروّل ډیر اثر یي وکړو. اخر کښې ما پخپل تقریر کښې ووی چه
زمونږ د صبر جنګ دی مونږ به د وهلو او ښکنځلو بدل نه اخلو مونږ به صبر کوو
او ځان به خدای ته سپارو مونږ. خو خدای خدمتګار یو خدای به زمونږ بدل
اخلی د خپلو زړونو نه خودغرضي او نفاق لیري کړئ ځکه چه د دی د لاسه بربا د
شوي یو ځان کښې ښه اخلاق پیدا کړئ ولې چه د ښو اخلاقو نه بیر ښوک ترقی کولی
نه شي. بله خبره می دا وکړه چه ای پښتنو ورونو زه په دی نه پوهیږم چه تاسو ولي
د پیرنګیانو نه یریږئ دوی خو ستاسو په شان بنیادم دی ستاسو په شان یو
قوم دی تاسو خو پرو جنګو او نفاق تباه کړئ ویره د د کښې پیدا شوی ده، د چا
په زړه کښې چه د خدای ویره وی نو د هغه په زړه کښې د بل چا ویره نه راځی او د چا
نه یریږی او د چا په زړه کښې چه د خدای ویره نه وی هغه د هر چانه یریږی. نو په
دی وجه چه مونږ د حکومت افسرانو ویښونو ویریږو. ای ورونو تاسو په زړه کښې د خدای
ویره پیدا کړئ او بیا می ټولو ته اپیل وکړو چه کوم کلی کښې جلسه وی. نو هلته د دوی
چای مه کوئ او مه پاتی کیږئ او د کلی خلکو ته می هم ووې چه چرته چای، د دوی
هم مه ورکوئ مونږ غریب قام یو خلکو له چای، د دوی نه شو ورکولی بیا می ورته
خلکو ته ووې چه ای ورونو! تاسو د خدای د پاره یوه ورځ روژه نیوی نه شئ؟
او که ښوک د دوی د ډله څخه هم کړي نو تاسو یې مه خورئ نو چه یو ځل خلکو ته د دوی
پاتی شی نو بیا به داسی نه کوی.

## صوابۍ تحصیل کښې جلسې:

زه بیا د فردوس خان سره مانیرۍ ته روان شوم په لاره یو بوډا سړي راته
ووې چه باچاخانه زه خونن ایله پوه شوم چه پیرنګي هم زمونږ په شان بنیادم دي.
شپه مې فردوس خان سره په ارام تېره کړه سباله یو خدائي خدمتګار وفات شونو
د هغه جنازه مو وکړه بیا مو د ملګرو سره د ځای تصفیه وکړه. دوی ملګرو سره له ځای
ورکړی وو یو کس تیم پکښې خفه و هغه مو راضي کړو بیاله دې ځایه باجا ته روان شولي
چه زمونږ د باجاخانان بې ګناه پولیس ګرفتار کړی وو. د لته موجماعت کښې جلسه وکړه
بیا کلابټ له لاړو د کلابټ په خلکو کښې حکومت څه بې اتفاقي پیدا کړې وه خودغرضو
خلکو پکښې شرارت کولو ما ورته هم په هغه معامله تقریر وکړو چه فکر وکړئ د هغه
سره اثر وشو او د دوانیلو په وخت کښې د کلابټ د خان زوی راته ووې چه تسلي
ساته زمونږ پوديو مونږ څوک جنګولی نه شي. له دې ځای نه زروبۍ ته لاړو هلته
مو هم جماعت کښې جلسه وکړه په زرګونو خلک راجمع شول ډېره کامیابه جلسه وشوه
زه پوه شوم چه په خلکو کښې سیاسي شعور پیدا شوی دی. له دغه ځای مرغزته
شپې له لاړو په مرغز کښې مو د شپې جلسه وکړه، د مرغز جرګه او خدائي خدمتګار
ډېر مخلصان او پوه دي. دوی راته د خپل مصیبت تولې قصې وکړې او راته یې
ووې چه بېګناه د پولیس هغه پیرنګي ووهلو او بیایې د کلابټ خلکو ته ووې چه دعوي
هم پرې وکړئ خو په مونږ د کلي خلکو دعوي ونه کړه د دوی جرنیل قابل او پوه سړی
دی او دا د هغه قابلیت دی چه دا څنګه به یې په خدائي خدمتګارو کښې پیدا کړې
ده. سباله د مرغز نه قبلې ته یو کلی دی د هغه صلاح صاحب مجبور کړو او د سحر چای و

له هلته لاړو، خلک چه زمونږ نه خبر شو نو راجمع شو هغوی ته مې هم دوه دوه ولې او
تامولی یو مختصر تقریر وکړو او بیا له دې ځایه کوټې له لاړو او بیا توپې له لاړو ولې چه
دا دی ځای ډېر کارکنان حکومت ګرفتار کړي وو. توپې کښې پکښنګ ګلېډ لی و. هغه
کتوله لاړو ما پرې بعضې سوالونه وکړل چه تاسو ولې پکښنګ لګولی دی؟ دوی ووې
چه داخلک بدیشې مالونه خرڅوي ماورته ووې چه تاسو څه غواړئ؟ دوی وې
چه دخپل ملک مال دې خرڅوي نوما ترې تپوس وکړو چه دې کښې ستاسو فایده
ده او هغه کښې موڅه نقصان دی؟ دوی ووې چه د ملک مال چه خرڅیږي نو
پیسې به زمونږ ملک کښې پاتې کیږي او چه د پردی ملک مال خرڅیږي نو پیسې به
پردی ملک ته ځي. زه ډېر خوشاله شوم ولې چه دا کوم خدایي خدمتګار ولاړه وو نو هغه د
یوې ورو کې کلې بې تعلیمه هلکان وو او نورې چه مې ترې پوښتنې وکړې نو دهغوي
هم پوره ځوابونه راکړل دلته هم پولیسو په خدایي خدمتګارو ډېر ظلمونه کړې وو. زه
پوه شوم چه زمونږ په قوم کښې یو پوهه راغلې ده بیامې جماعت کښې تقریر وکړو او خلکوته
مې ووې چه داخدایي خدمتګار ستاسو کښېنو وی دی تاسو له ستاسو د بلا د نیکه
بابیلې ملک کښې نو تاسو ورسره ولې بد سلوک کوئ؟ که پېرنګیان مونږ سره هر قسم
سلوک کوی نو مونږ ترې ګیله نه کوو خکه چه هغه غیر قوم دی او هغوی سره غم دی چه که
پښتانه را نه خپل ملک ازاد کړي نو زمونږ به څه حال وي؟ زمونږ ګیله ستاسو نه ده تاسو
خوزمونږ قوم یې او دا ملک زمونږ شریک دی که دا ملک ازاد شي نو ددې فایده
خو به ټول قوم ته وي. چه جلسه ختمه شوه نود (میني) مولانا صاحب راته ووې چه
مونږ سره به ضرور ځې او زمونږ د خلکو ډېر خواهش دی چه هلته موږ هم جلسه

و ماورته ووې چه مولانا صاحب ته زما حال ووینې زه ناجوړه یم پرېږده چه زه واپس
شم او چه کله روغ سنه شوم نو بیا به ستاسو کلي ته درشم دوی راضي شو او مونږ صوابۍ
غلو، په صوابۍ کښې په زرګونو ښځې او نر جمع وو او سالار صاحب منیرخان، نجوبای
ردوس خان د پرسنه انتظام کړی و هغوی ته مې تقریر وکړو خدایي خدمتګار را نه
پره شوه چه بیګاله به مونږ سره شپه کوئ ما ورته ووې چه تاسو ما ووینئ چه زه ناجوړه
و به دې ناجوړه وجود لګیا یم شپه او ورځ کار کوم ځکه چه نن دی که سبا دی حکومت
ړ نیسي او د خدمت موقع نه راکوي او دا تول انتظار را ونه تپیل کنفرانس ته دی
ه کوښښ کوم چه څومره کیدی شي چه په دې خپل قوم کښې دوره وکړم او دوی
سره څه باندې پوه کړم.

هغوی اجازه راکړه او شپې له تولاندي. له لاره و شپه سنه په ارام تیره شوه
ه خبر شوم چه میا احمد شاه صاحب او د ده لې هره میاشت زما برخلاف کتابګې چاپ
ې او خلکو کښې خوروي او دلته یو مولانا صاحب د هغوی د پاره سخته پراپیګنډه شروع
ې ده ما هغوی ته ووې چه مونږ خو د خدای د پاره لګیا یو د دې قوم خدمت کوو
م زمونږ ملګرتیا وکړه نو دوی به ازاد شي او که زمونږ مخالفت یې وکړو نو دوی به
د شي ولې چه بغیر د قوم د امداد نه مونږ خپل منزل ته رسیدی نه شو. غم او فکر هغه
سره وي چه د ځان د پاره کار کوي او څوک چه د خدای د پاره کار کوي هغوی هیڅ غم
ونه کوي. احمد شاه میا به هره ورځ زما برخلاف هغه قصه په اخبارونو کښې لیکله او
ستونه به یې هم چاپ کول، لیکن ما ورله چرې هم ځواب نه ورکولو ولې چه د دې نه بیت
ی جوړیده ما خو خپل کار کولو او په دې خبرو مې وخت نه ضایع کولو. بې شکه چه دروغ

دڅه وخته پورې په خلکو کښې غلط فهمي پیدا کولی شي خو چه د بنتیا دانشي نو دروغ پا
کېدی نه شي. چه سباله مونږ په دغه کلي کښې د یو مهربان فاتحې له لاړو هلته دهغه
کښې می ډېر زور ملګری او مهربان مولانا سره ملاقات وشو او ورته می ووې چه مولا
صاحب په سیاسیاتو کښې کنصوبږ منځ کښې څه اختلاف راغلی وی نو اخه بله خبره نه
رسول الله صلی الله علیه وسلم هم وایي چه اختلاف دامت رحمت دی او مونږ ته چه د رح
په ځای زحمت شوی دی دا زمونږ ذاتیات دي، مونږ له ډېر زاړه تعلقات پرېښود
په کار نه دي او زه چه ستاسو کلي ته راشم نو ملاقات خو راسره کوئ. د دعانه پس مو
جماعت له روان شو، مولانا صاحب می هم ځان سره روان کړو خلک جمع وو مولانا صا
ته می ووې که ته څه ویل غواړې نو وایه مولانا صاحب وې وخت تنګ دی زه څه نه
ته ډېر تقریر وکړه، ما خلکو ته ووې چه ای ورونو، عزیزانو تاسو ډېر ځان پخیل س
او زیان پوه کړئ زه نه پوهېږم چه خلک زمونږ مخالفت ولې کوي مونږ خود خلکو
یو. تکلیفونه او مصیبتونه په ځان تېر وو او کټه قوم له کوو په کار دی چه د دی هم زمو
په شان د پرنګیانو مخالفت وکړي ولی چه هغوی مونږ غلامان کړي یو. زمونږ د
نیکه ملک یې رانه نیولی دی، دا ملک خو خدای مونږ له او زمونږ بچوله راکړی دی خ
د خود غرضۍ او بې اتفاقي په وجه هغوی زمونږ په ملک مزې کوی، خلک وایي چه زمو
جرګه پاتې نه شوه، مونږ د مصر په شان په کانګرس کښې او به شوا خدایي خدمتګا
دهغوی رضا کار شول، دا خبره غلطه ده زمونږ جرګه دا ده زمونږ د خدای خدمتګار خدایي خدمتګ
دي دا خبره داسې ده چه مونږ کانګرس سره تعاون کړي، یو خو دا فیصله ما نه ده کړې
لوی جرګې کړې ده او د میا صاحب او عبدالاکبر خان په رضایې کړې، د تاسو خولږ یا د کړ

و کانګرس سره نه وو نو پېرنګي په مونږ توره تشبه جوړه کړې وه او په مونږ خدايي خد
کار وي داسې لوبې کړې وې چه په دنيا کښې به په ډېرو کمو خلکو داسې لوبې شوې وي
نو يې تول جېلخانو کښې اچولي وو او چه هر کله ستا سو چرګې فيصله وکړه او مونږ کانګرس
شو نو دعوی په کوشش مونږ د جېلخانو نه راوځو او دا دی ستا سو په جلسه
تقرير کوم که دعوی کوشش او امداد نه وای نو اوس به مونږ تول خدايي-
منګار په جېلخانو کښې پراته وو په دې وخت کښې مونږ پېرنګي له د جېل اتفاق په
يو ښکرومات کړې دی او که مونږ اتفاق وکړو نو دا بل ښکر به يې هم مات شي او د
د زور او ظلم نه به خلاص شو. او د کانګرس سره خو مونږ هم دا دی د پاره ملګري شوي
چه دا جېل ملک ازاد کړ تاسو مهرباني وکړئ او په دې خبرو ځان پوه کړئ.

وخت لږ و ما چېل تقرير ختم کړو، کالوخان کښې راته ډېر خلک په انتظار کښې ناست
په دې وخت کښې مولانا صاحب ماته ووې چه زه هم ښه ډېل غواړم ته دی خلکوته
په ماورته وئېل چه تاته خو ما وئېلي وو چه تقرير وکړه، تاونګرو اوس زه دلته زياتي
ظار کولی نه شم، ولې چه کالوخان کښې ډېر خلک ماته انتظار کښې ناست دی، ته دی
تقرير وکړه، او ماله اجازه راکړه چه زه کالوخان ته لاړ شم. زما د روانيد و سره
خلک روان شول، په دې وجه مولانا صاحب ته تقرير و نه کړې شو.

مونږ چه کالوخان ته ورسېدو نو خلک جمع وو خلکو ته مې ووې چه ای ورونو
و به دا وايئ چه زه نن تاسو له د کامدار خان د ګرفتارئ د غمخوارئ له پاره راغلی
زه غمخواری له راغلی نه يم بلکه تاسو له مبارکۍ له راغلی يم او تاسو له مبارکی
وم چه ستاسو داسې يو ننګيالی خان وچه ستاسو د پاره او د تول قوم او ملک

دپاره جیلخانی له لاره اوزه دهغه مور بی بی له او خپلو خپلوانو له دخان د اسی

نیک کار ته جیلخانی له پیر تلو مبارکی ورکوم. بیا می دی خلکو ته ووې چه ای و

هر څه چه تاسو سره کیږی په هغه صبر کوئ. دا زارنه چا بازار موندلی نه دی او د

کاسه نسکوره ده څومره چه پیرنګیان په مونږ ظلم او زیاتی کړی هغومره به

تباه شی او مونږ به تری خلاص شو.

ددې ځای نه بیا ادینه ته لاړو هلته هم خدای خدمتګارو ته می د

تلقین وکړو او بیا سمیلا ته لاړم. په دې خلکو کښې ډیر جوش او خروش و

چه پیرنګی زور او ظلم شروع کړې و. دوی ته می هم د صبر او عدم تشدد تلقی

او بیا ما بنام شهباز ګړی ته ورسیدم دلته لی هم زمونږ جرنیل صاحب نیولی ؤ

هم ډیر جوش ؤ خلکو له می تسلی ورکړه او خدای خدمتګارو له می د جرنیل ص

د قید مبارکی ورکړه. دلته می د ګجرات بختنالی صاحبزاده صاحب ته ووې چه ی

تیاره کړه لیکن د خپلو تلو ذکر می هیچا سره ونه کړو د اخبره می پټه وساتل چ

ځای له مونږ تلو هغه ورکوټی کلی وو او د دوه پولیس چه مونږ سره ګرځ

دا به په هغو خلکو لوی بوج و صاحبزاده صاحب نه به چه چا پوښتنه وکړه نو هغ

چه مونږ ګجرات بختنالی ته ځو. مونږ تانګه کښې روان شو او د سرک په غاړه یو

کلی ؤ مونږ چه څه وخت د پولیس موټر ولیدلو نو کلی له د ننه شو پولیس زم

خبر نه شو هغه ګجرات له بختنالی له روان شو. د کلی خلک چه خبر شول نو تیښ

زمونږ لید وله راغلل زما په راتلو ډیر خوشحاله شو خدای خدمتګارو ته

چه څه چا کړه تیاروی هغه راوړې او که نه وی نو خیر دی شپه به مونږ د

تېره کړو وخو چه زمونږ د پاره نوی بخلی وندکړی : چه ددی موو خوږه لنډ ارام
موو کړو تو له ورځ بی ارامه وو ډیر سترړی شوی وو خو تول خلک جماعت کښی را
جمع شوی وو هغوی ووې چه باچا خان دې مونږ ته یو څو خبری وکړی . دلموځ نه
پس دهغوی دمحبت مې اول شکریه ادا کړه او بیا مې ورته دتحریک متعلق یو څو
خبری وکړی او په دې خبره مې ډیر زور واچولو چه په هر مصیبت به صبر کوئ .
سبا له هوتی له لاړو . چه کلپانی ته ورسېدو نو څه کورو چه پولیس والاپه
څنګو کښی خرپرناست دی ماته یی ووې چه تو له شپه د رپسی ګرځېدلی یو او بیا
دلته کښېناستو او دمردان نور پولیس هم تو له شپه تا سو پسی منډی وهلی
دی خو تاسو پی مونډلی نه یی دغه انسپکټر ماله دد فعه ایک سو چوالیس (دقانون
۱۴۴ ماده ) حکمنامه راکړه هغه کښی یی لیکلی وو چه ملکنډ ایجنسی له به نه ځی ما
غلام محمد خان دلوند خوړته ویلی وو چه هلته لاړ شی هغه لاړو او دوی ګرفتار
کړو نو په مایی ددې دپاره دغه وکړوله چه دی چه خبر شی نو خامخا به ملکنډ ایجنسی
ته ځی او حکومت مونږ ته ایجنسو ته پرېښودو او نه قبایلو ته مونږ ډیر کوشش نه کړی
وو چه مونږ دې ورونو ته لاړ شو او دوی هم مونږ دلیدلو په دې نوی ورودی
کښی شریک کړو او دا یی لا څه کوی چه هغه دخدایی خدمتګار و هغه حکومت هم چه
جوړ شو نو هغوی هم زمونږ دې قبایلی ورونو ته په تللو نه خوشالیدل . ولی چه هغوی
ویل چه پیرنګیان به خپه شی . حقیقت دا دی چه حکومت خو زمونږ وخو واک ذکو نږ و
د هوتی نه تورو له لاړو زمونږ یو ډیر زوړ خدایی خدمتګار او بهادر کارکن
عبدالرحیم خان مړ شوی و ماسره یی دهغه دا ری دوره کړی وه او چه څه وخت مونږ

چچ له تلو نو چه پولیس والا راله ټوټکونه نیولی وو نو ده ما ته ووې چه څه چل وکړو م
ورته وې چه ورځ پرې نودی پری د ټولو نه مخکښې ورغی . د ده په مرګ مونږ
ته ډېر نقصان ورسېده مونږ خو به د درې وو جنازه موونه کړې شوه ، فاتحه می
وکړه د هغه مورا و خپلوانو له می ډاډګیرنه وکړه ، د هغه قبر له لاړو اوما او ټولو خدا
خدمتګارو ورته ډېره دعا وکړه بیا می جماعت کښې یو مختصر تقریر وکړو او دوی ته می
ووې چه د عبد الرحیم خان په مرګ مه خپه کیږئ خدای به هغه وبښی او د هغه په
ځای به د اسلام د خدمت د پاره ډېر خلک پیدا کړي . بیا (ما یارو) ته لاړو د
ملیا رو صل صاحب ډېر مخلص او د کار سړی دی د غلته ډېر خلک جمع شوي وو هلته
لږ ایسار شوا و خلکو ته می هم یو څو خبری وکړې .

د دې ځای نه مردان ته راغلو او دلته خبر شوم چه د سودم خانان ده
شوي دي زما طبیعت ډېر خراب وه ماغو سنبتل چه د قاضی صاحب په ځای کښې له
ارام وکړم خو خلکو ارام ته نه پرېښودم . قاضی صاحب می پوه کړو چه بیګاله به دلت
راځم خلکو ته می ووې چه ستاسو نه رخصت یم مخکښې ځم خو خلکو زه کله پرېښودم
اړ ی له روان شوم نو خلک رانه رخصت شول مونږ اړ ی سره نږدې د هغه کلي
ورغلو پولیس والا راپسی وو ، د هغوی نه چېرته خلاصېږ د ؟ مونږ لمونځ کولو چه
خلک خبر شول او خدایي خدمتګار و زر زر ورد ځ راغوستې او یو ساعت کښې
کلی خلک را جمع شول د هغوی د محبت شکو یه می ادا کړه او بیا می ترې اجازت
واخستو او مونږ د قاضی صاحب ځای له لاړو . د قاضی صاحب ځای کښې د سود م
خان ناست ؤ اول می د رهایي مبارکي ورکړه بیا مو خبري شروع کړې ده راته وو

چه ستا دا تلل سودمن ته ډېر ضروري دی ولې چه په غرنيو خلکو کښې حکومت يوه غلطه پروپيګنډه شروع کړې ده چه په حقيقت يې پوه کړې چه دوی کښې غلط فهمي پيدا نه شي. ما ورته ووې چه زه خو پنچر شوی يم لږ ارام کوم نو په شلم دسمبر به درشم.

مونږ سبا وختي اډې له لاړو يوه ټانګه موکرايي کړه او درګۍ له داغلو بيا پياده ګل اباد له لاړو خلک ډېر په جوش کښې وو. ما ورته د صبر او عدم تشدد تلقين وکړو. د ګل اباد نه شيپې ته چيل کلي محمد نادرشاه له راغلم دلته مې دمې ته نيت وخود اتمانزو نه خبر راغی چه په شلم دسمبر باندی د سرحد دلويې جرګې جلسه ده او د خط په لېد و دا روان شوم. مونږ يوه شپه دلته وکړه سبا له اتمانزو له لاړو چه هلته ورسيدو خه ګورو چه د نوښار د تحصيل شل، پنځه ويشت افسران خدائي خدمتګار په ادی کښې راغلل زما په ليد و راکوز شو او جرګې له لاړو هغوی راته ووې چه زمونږ د جرنيلي جګړه ده زمونږ فيصله وکړه ما ووې چه خدائي خدمتګار خو په عمل و جګړې نه کوی، په خدمت کښې جګړه نه وي جګړې خو په ذاتيا تو پيدا کيږي. زما دا وينا هغوی ډېره محسوسه کړه او تول ډېر ملامته شو نو بيا مې ورته ووې چه سالار اعظم صاحب له لاړشئ هغه به فيصله وکړي. هغوی ووې چه هغه ميرې له تلي دی ما ووې ميرې ته لاړشئ هغوی سالار صاحب پسې لاړل.

## دلويې جرګې اجلاس:

د دوې وخت وچه سالار صاحب راورسيد زمونږ جرګې له راغی زه خو چوړ نه وم. ما ترې اجازت واخستو چه ارام وکړم او د دوی فيصله په خوشالۍ او په رضا سره وشوه. سبا له وختي دوی واپس لاړل د سرحد لويې جرګې را ورسيدې

جلسه شروع شوه د تولونه اول حکیم عبدالسلام صاحب داتجویز پیش کړو چه یو ډیپوټیشن مقرر کول په کار دي چه هغوی میا احمد شاه صاحب او عبدالاکبر خان راضی کړي. او خان سرهي شامل کړو مایي تائید وکړو او ماووې چه مونږ خو لیوی کړي نه دی، هغوی جدا شوي دي که هغوی بیا د تلل غواړی نو جرګی ته به هیڅ عذر نه وي. دد واوې شاد محمد خان ددې تجویز مخالفت وکړو چه هغوی خو جرګی نه بغاوت کړي دی او د جرګی برخلاف کار کوی.

بل تجویز د کانګرس د امداد اخیستو ددی تجویز ما سخت مخالفت وکړو ما ووې چه تر اوسه پورې مونږ د کانګرس نه یوه پیسه هم نه ده اخیستی او خلک را ښی خبرې کوی او که تا سو د کانګرس نه امداد واخیستو نو بیا خو به حکومت او برخلاف خلک سنه پراپیګنډه شروع کړي ما ورته داهم ووې چه جواهر لال مانه په دی خفه شوی و د د ډاکټر انصاری په کور کښې د ورکنګ کمیټۍ اجلاس وهغه راته ووې چه مونږ به هغه مخکښې کانګرس له په پیښور کښې څلور، پنځه سوه روپۍ د میاشتی امداد ورکولو ستاسو جماعت د ډېرلوی دی تاسو له به ډېر امداد د رکوو ما ورته ووې چه د ملک یوازی ستاسو دی که زمونږ هم دی؟ که ستاسو هم وی او زمونږ هم وی نو بیا تاسو نه امداد ولي واخلو هغه مانه په دې خفه شو او د ډاکټر انصاری صاحب ته یې ووې چه دی خو ډېر مغرور ه دی او دا تجویز هم نامنظور شو، بیا سردار رام سنګه زمونږ خدایي خدمتګار دیو تجویز پیش کړو چه د انګلستان وزیراعظم چه د سرحد د حقوقو متعلق کوم تقریر کړی دی هغه تسلی بخش نه دی او مونږ ته منظور نه دی لیکن ثمین جان وکیل دده د تجویز مخالفت وکړو او دا تجویز یې پیش کړو چه دا ریفارم

مونږ له اخیستل په کار دی. قاضی صاحب او علی اصغر خان ووی
چه خه راکوی دا به واخلو او نور به نه کړو. مالوی جرګی ته ووی چه دی
به اخیستو کښی زمونږ قوم او ملک به خه ترقی وکړی پیرنګیان داسی
نادانان دي چه مونږ له به هغه حقوق راکړی چه په کوم کښی زمونږ
فایده وي، نو ما ووئیل چه زه ددی هم مخالف نه یم که چاته
پکښی فایده سنکاری نو وادی خلی خو ددی تجویز هم شاد محمد خان
ددواوی سخت مخالفت وکړو چه مونږ مکمله ازادی غوښتله
او اوس هغه اصلاحات واخلو چه ټول هندوستان ترې انکار
کړی دی، په دی کښی هیڅ فایده نشته. د ثمین جان تجویز
وغورزېده او د سردار رام سنګه تجویز پاس شو نوری هم
چه خه خبری وې هغه فیصله شوې او جلسه ختمه شوه
او یو خو ممبران شپی ته پاتی شول او نور لاړل.

په دوه ویشتم د دسمبر په پېښور کښی

یو لوی دربار وچه

هغه کښی

هم د ریفارمز د خبرو

تجویز و. ډاکټر خانصاحب له او ماله لاټ صاحب

دعوتنامی رالیږلی وې، ما او قاضی عطاء الله او ډاکټر

په دی خبری وکړی چه تلل په کار دی که نه زه خو ناجوړه وم لیکن په دی

فیصله وشوه چه په داسې حالت کښې چه حکومت لګیا دی په خدایی-

خدمتګارو ظلمونه کوی نوتلل په کار نه دی او موږ هغې لارته نه شو.

زما طبیعت نور هم خراب شو او تبه می هم ورسره

پیدا شوه ، په دی وجه ډاکټر صاحب

د علاج د پاره پېښور ته

بوتلم

زه یې په خپله بنګله

کښې دیره کړم او زما علاج یې شروع

کړو او خلک یې را نه بند کړل زما علاج خو ارام و.

# زه هزارى باغ جيل كښې
# با هرعامهٔ ګرفتارى

زمونږ ګرفتارى، عامهٔ ګرفتارى او تشدد

هزارى باغ جيل ته

بهادره ښځه

په دي کښي د سرد ار پټيل تار راغى او خورشيد بهن هم راته ليکلي وو چه کانګرس والا هم دي لپاره تيار دي او خورشيد بهن ولے ما ته راغلي وه جي به په اوه وليشتم د سمبر راو رسيږي نو ته په شپږ وليشتم تاريخ راشه. زه نا جوړ وم خو دا تلل هم ضرور ؤ، په دي وجه ما اراده وکړه چه پنځه وليشتم د سمبر په سحر وختي به فرنټير ميل کښي بمبۍ ته روانيږم. ماسره د تلو د پاره قاضي عطاؤالله خان امين جان او داکوړي جرنيل هم تيار شو او فيصله په دي وشوه چه مونږ به پيښور نه روان شو. قاضي صاحب به په نوښار کښي راسره شي او داکوړي جرنيل به په اکوړي راسره مل شي. خو انسان ته څيل تقدير معلوم نه دي، تقدير په تدبير پورې خاندي په څلير وليشتم د د سمبر ما څيل کاغذونه تيار کړل او د تيس د پاره مې تانګې والا ته هم ووي داکټر صاحب ته ما وويل چه په پنځه وليشتم سحر وختي راشه. داکټر صاحب او ميم صاحب کلي ته تلل. په دغه وخت کښي دار باب عبدالغفور بلا دار باب جمعه خان زما پوښتني ته راغى. ما بنام داکټر صاحب يواځي د کلي نه راغى او ميم صاحب ئي کلي کښي پريښوده.

## زمونږ ګرفتاري:

چه په دي کښي زمونږ يو مهربان راغى هغه ووي چه ما ته معلومه شوي ده چه تاسو بيګاله ګرفتار وي داکټر صاحب دا نه منل هغه ووي چه دا راز به پټ وي خو ما درته ووي چه که مونږ ګرفتار شو. زمونږ هغه مهربان زمونږ نه رخصت شو، ماسره چه کوم کاغذات وو هغه مې څيل نوکر حنيف الله له ورکړل چه دا ميم صاحب له ورکړه. داکټر صاحب راته آواز وکړو چه پوليس راغلل زمونږ د بنګلي نه چاپير شول او يو پير نکي ماله راغى او راته ئي ووې چه تاګرفتار دوم، ما ورته ووې چه د پره سنډه ستا او ستا

د حکومت به شکریه اداکړم چه ما گرفتار کړې ځکه چه زه ناجوړه یم او ارام ته مې ضرورت نه پریږدي اوس به ارام وکړم هغه پیسې یوه میمه راغله ما هغې ته د بنګلې ورلېږي کړې او په ارام مې کښېنوله.

حکومت ته د میم صاحب دوې راتلل معلوم نه و دایې د دې د پاره راپېږلې وه چه ډاکټر صاحب بښځه میم صاحب به یوازې وې دا به ورسره شپه تېره کړي لږ ساعت وروسته بل پېرنګي راغی هغه مونږ په خلېږولیشتم د دسمبر د شپې گرفتار کړو د بنګلې نه بهر راغلو او زه یې په یو موټر کښېنې او ډاکټر صاحب یې په بل موټر کښېنولو هغوی زمونږ د گرفتارۍ د پاره د پوهې پولیس راوستلي وو شاید چه د هغوی به دا خیال و چه مونږ به ورسره جنګ کوو. ډاکټر صاحب د شپې په جامو کښې راغی ما ورته وویې چه جامې بدلې کړه معلومه نه ده چه مونږ چېرته بیایي. ډاکټر صاحب جامې بدلې کړې چه د پېښور نه واوړېدو نو زما خیال و چه هر پېښور ته به مو بیايي چه دې کښې دا ټک پل ته ورسېدو دلته تول موټرونه ودرېدل پل بند و ما سره چه کوم پېرنګي و هغه د د کوز شو او سنتري ته یې اواز وکړو چه فلاني صاحب ته ټیلیفون وکړه او ورته ووایه چه مونږ ته دوه لیري کړه لږ ساعت پس ورلیږي شو مونږ چه د پل نه پورې وتو موټرونه ودرېدل او مونږ یې د موټرونه کوز کړو دلته د پولیس په چوکۍ کښې یوه کمره وه مونږ یې ورد ننه کړو زما طبیعت ډېر خراب و تللې هم نه شوم نو ما له هغه پېرنګي کټ راووړ او زه په هغه کښې څملاستم، ډاکټر صاحب ته یې هم یو کټ راووړ. په دې کښې لږ ساعت پس قاضي صاحب راورسېدل، د هغه نه پس سعدالله خان زما وراره هم راورسېدل، قاضي صاحب ما سره او سعدالله خان ډاکټر صاحب سره څملاستل او مونږ په ارام مو خوب وکړو. سحر وختې

مونږ سره دهغو پیرنګیانو تیسن له لاره هلته د پولیس ولاړ وو او زمونږ د پارټۍ دیو سپیشل ټرین انتظام کړی و مونږ یې هغه ګاډي کښې وردننه کړو او زمایې د بې کښې ننه بې په مونږ توپک په لاس او سنګین جړاو پیره وردوله او ګاډي روان شو تا سوته به یاد وي چه ما لاټ صاحب سره ملاقات کولو نو زما خبرې بې نوټ کولې او ده وې چه دا به زه وایسرا سره کوم نو نتیجه دا شوه چه دروند ټیبل کنفرانس فیل شو نو په هندوستان کښې بې د ټولو نه اول زه ګرفتار کړم او د ټولو نه بې خطرناک ثابت کړم دغه نهتو نه بې ددې غرض د پاره اخیستل. په دې شپه چه زه بې ونیولم هم په دغه شپه په سرحد کښې هم پنځه سوه مشران خدایي خدمتګار ګرفتار شول.

• عامه ګرفتاري او تشدد:

زما د نیولو نه پس په ټوله صوبه کښې عامې ګرفتارۍ شروع شوې چه د خدایي خدمتګار قیدیانو تعداد چه زرګونو ته ورسیده نو بیایې نورنه نیول بیا به پولیس او د ملټري مار په کلو ور تلل او خدایي خدمتګار به یې وهل او ټکول په یخو اوبو کښې به یې اچول او کورونه به یې ورته تالا کول. د چارسدې په تحصیل خدایي خدمتګارو پکټنګ شروع کړو شل شل کسان به هره ورځ راتلل پولیس والو به په کوټکو وهل او خلکو به ګرفتارۍ ورکولې.

د هریپور په جیلخانه کښې د نورو ټولو جیلخانو نه زیات خدایي خدمتګار قیدیان وو یوازې دې جیلخانه کښې دیارلس زرو نه زیات قیدیان وو، حکومت په دوی د پیر ظلم شروع کړو چه دوی تنګ شي او معافي وغواړي. په یخ ژمي کښې بې دوی له یو یو کمبل ورکړی و چه د سپږو نه ډک و د سیمنټو بارکونه وو هغه به بې پرې وونیغل یوه جوړه جامې وې هغه به بې هم وونیغلې. باران به وریدو، جامې به یې جنګلو کښې خوړندې

دي اوکمبل ببرک د خان نه تاوکړی و شپه به په ناسته تېره شوه په دوېمه اوکله به
مېه ورځ به یې یوه چپاتي ورکوله چه یوه نوړی به شوه چه سهار به یوه هېل ونو بیا به ختم
ه، ددې ظلم برخلاف یو بوډا هندو خدایي خدمتګار خبري بندی کړې وی او ډېر
ولې دوږه یې ونیوله چه ترمرګه یې جاری وساتله. شپږ میاشتې پس هغه مړ شو او ډېرو
چو د جېلخانې نه مړینو ته یوړو. ددې ظلم برخلاف داتمانزو وحیات ټول خدایي خدمتګار
خاولپنیت و د ځې بهوک هړتال وکړو او د سرانجام خان سپرنټنډنټ په خوله یې مات کړو
غه ورسره وعده وکړه چه ستا مطالبې منم. سرانجام خان چه سپرنټنډنټ شو نو
ید یانو له یې تسلي ورکړه او زور ظلم یې ختم کړو او قیدیانو مشقتونه شروع کړل. دده
سلوک د پېرنګیانو خوښ نه شو نو دی یې بدل کړو او دده په ځای یې د بهار صوبې
و پېرنګي را وغوښتو چه نوم یې سمته و. هغه هم په اول اوله کښې خدایي خدمتګار
سره سخه جنګ وکړو او خدایي خدمتګارو سخه په نوره دده مقابله وکړه. د تاټ وردۍ
لاډې انکړی. بندې چکی، ډنډه بېړی او نورې سزاګانې یې ورکړې د ری کالې
ې په خدایي خدمتګارو دغه تکلیفونه تېرکړل خو سمته کامیاب نه شو او ددې نه پس
یا خدایي خدمتګارو سره ډېر سخه شو.

زمونږ دکتو زو عبد الله جان او د هغه پلار قلي خان ته پېښ شو هغه د چارس
سدی اسسټنټ کمشنر و هغه په عبد الله جان رعب واچولو کچری دخلکو نه دکه
ه پولیس والا رو قلي خان ورته ووی چه ته د پېرنګي حکومت خلاف نظم وایې چه:
د انقلاب شمع ځار ځار » عبد الله جان ورته ووېل چه زه اوس هم دا وایم په فخر یې
چغه داسې ووېل «د انقلاب شمع ځار ځار. که څوک می سرکاندی په دار دار» زمونږ د

خوانانو دجرئت داسې ډېرې قصې دي چه هيڅ شان دچا دعب پې اثر نه کوي داخو د ښه مثال بيان کړو.

## هزارۍ باغ جيل کښې:

حکومت مونږ سره د سرحد نه يو سردار خيل د پوليس انسپکټر لاحيله طرف ته لکولی وو، هرې صوبې ته چه به زمونږ کاډې روانيدلو دهغې پولس به زمونږ د نګرانۍ او حفاظت انتظام کولو او هغه به راسره کيده. د پنجاب پوليس يو انسپکټر چه په مونږ لګيدلی وو دی انسپکټر د اکاډو چه کله به مونږ د دې کړې لېږې کړی نو دی به راغی او هغه به يې بند کړې اخر ماورته ووې چه انسپکټر صاحب مونږ خو ښځې نه يو چه مونږ کړکې د هوا د پاره ليرې کړو تړلې بند کړې چه دوی شوک وينې او زمونږ داد صوبه سرحد انسپکټر سردار خيل د ډاکټر صاحب او د قاضي صاحب ډېر اشنا و او دا به يې هم وې چه زه د ډاکټر صاحب د مګ نه بچ کړې يم قاضي صاحب سره د اخبار ډېر شوق وو ده به د هغه خپل اشنا نه اخبار غوښته خو هغه دو يې نه اخبار نه ورکولو زما خو هميشه دا قاعده ده چه ګرفتار شم نو چه کوم پوليس ما سره وي نه ترې تپوس کوم او نه ترې څه غواړم. زمونږ د اکاډې چه به د کويلې او اوبو اخيستو د پاره و دريده نو مونږ ليسی خو به کوکه او ورونه بند وو او که زمونږ به کوز بيده وو ته شوق شوي ونو دی پنجابي به نه پرېښودو. څه وخت چه زمونږ کاډې يو ته ورسيدو نو زمونږ د چارج اخيستو د پاره يو انګريز افسر او يو ګوره سارجنټ راغی او چه هغه چارج واخيستو نو زما د بې له راغی او د دې دروازې يې ليرې کړې او ماته يې ووې چه دا څه دا کوز شه تيس کښې ګرځه پيښې ازادې کړه. او سړ

دعه انګرېزانو د پنجاب د دغو مسلمانانو افسرانو د روېي مقابله وکړې ! انګرېزه
زمونږ جنګ ده او مونږ ترې حکومت اخيستو او د ازمونږ مسلمانان پنجابي
ورو څه مونږ د دوی د پاره حکومت کټلو. دا ورځ د دوی د (برډن) پروهي
وخ وه هغه به ډېره مينه محبت ما ته شراب را وړو ما ته يي ډېر په مينه محبت سره
پيش کړل ما ورته وويي چه معافي غواړم زه شراب نه څکم هغه زما په دې خبره حيران
وزه به د هغه دا وادارې او محبت هيڅېرې هېر نه کړم او څه وخت چه اله اباد ته
رسيدو د ولتيي زمونږ نه ډاکټر صاحب کوز کړو او هغه يي د الهٰ اباد نيني جيل ته
بېړه . بيا يي سعد الله کوز که او هغه يي د بنادس جيل ته ولېږه . بيا د بهار صوبه
شروع شوه او د لته يي قاضي عطاء الله صاحب زمانه کوز کړو او د ګيا جيل ته يي
بېږه اوزه يي د هزارې باغ جيل له روان کړم . د هزارې باغ جيل د تيس نه
ولسبنت ميله لېرې دی . زه چه يي موټر کښې کښېنولم نو ماسره دوه پيرنګيان
د پټي کمشنرو . بل د پوليس کپتان وکښېناستل او د ازمونږ سردار خيل
سپکټر هغوی سره کښېناستو . کښېناستو سره هغوی ماله يو انګرېزي اخبار راکړم
چه سردار خيل انسپکټر خپلو دوستانو او محسنانو له يي نه ورکوو) چه زه يي جيل ته
ننه کړم او زه يي بادک له بوتلم نو د جېلخانې افسر چه هندو و راته ووې چه دا تا
ره چه د پوليس افسر داغوک دی ؟ ما ورته وې چه ما نه ولې دده پوښتنه
ې ؟ نو هغه راته وې چه ما ته خو ډېر رذيل سړی ښکاره شو هغه ما ته ووېل
دا ډېر خطرناک سړی دی فکر ورته کوه . زه يي يو بادک کښې يوازې بند کړم
دوی رانه لاړل . ما ته لغبېر دلوی صاحب (سپرنټنډنټ) او ورو کی صاحب

(جیلر) دلیدو نه دبل چا د راتلو یا لیدو اجازت نه و . زما د بارک ورانډی
یو سړی چه په هغه به جیل والا تلل راتلل هغه یی بند کړ ماسره د خدای خدمتګار و
ډیر فکر او غم و. په تنهایی کښې زه نا جوړه کیږم . دلته زه بالکل تنها وم خوب
به می پوره کولی نه شو او ډوډی می هم خوا ته نه کیده چه په دی کښې می یوه شپه
خوب ولید وچه یو لوی سین دی د هغه په غاړه یو ښکلی ګنبد دی زه په هغه کښې
ناست یم چه په دی کښې سیلاب راغی او دی ګنبد ته را ننوتو د ګنبد یی وجرقو ور
ډیر وویریدم ماوی خدای دی خیر کړی چه زما د پاسه راپری نه وځی خو څه
ساعت پس هغه سیلاب تیر شو او ګنبد یکښې لاهو نه شو، پاتی شو. چه د خوبه راویښ
شوم د خوب په لیدو ډیره تسلی می وشوه ، او هغه ډیر غمونه او فکرونه می کم شو ځکه
چه زما زړه ته دا خبره راغله چه زمونږ په تحریک د هیبت کوم سیلاب را دوان و هغه
به خیر تیر شو، او تحریک یکښې لاهو نه شو. بیا می فکر وکړ چه دا تو له ورځ داسی بی کار
ناست یی نو صحت خوبه دی نو خراب شی څه شغل او کار به کاردی چه زه پری مشغول او
داوخت می پری تیریږی نو سپرنټنډنټ صاحب ته می وویل چه زه دلته بیکاره ناست
یم او بیکاری ما ته ښه نه ښکاری ته ماله یو، تسکوره او رمبی راکړه چه زه چیل بارک
مخکښې دا بنجره ځمکه اباده وم. په دی کښې به خانله سبزی کوم. هغه ما دوه قیدیان
راکړل. هلته چه کوم لږ غوندی ځمکه وه هغه می اباده کړه او سبزی او ګلونه می پکښې
وکرل . د دی نه ما ته دوه فایدی وشوی، یو خو را ته کار پیدا شو چه زه به پری مشغول ی
او وخت به می ښه تیریږی. او بله دا چه یوازی وم نو د خبرو ملګری ای پیدا شول.
زه د« شاهی قیدی» وم. د پیتی کمشنر به داله هره میاشت راتلو د هری میاشتی

چه اول تاریخ به راغی. دې کښې هغه چرې ناغه کړې نه وه هغه هم د دې کلونو او سبزو
کولو د پېر شوقین وه ماسره به یې هم پکښې د پېر امداد کولو کله ناکله به یې راله تحفې هم
راوړل. د پېر ښه سړی وو پکښې د پېر انسانیت وو دې چه به هره میاشت راغی او زه به یې
ولیدم زما د تنهایی به یې محسوس وو او زما نه به یې تپوس کولو چه تا ته څه تکلیف
خو نشته؟ ما به ورته وېل چه جېلخانه خود تکلیفونو ځای دی. زما دا عادت دی
چه په جېلخانه کښې نه څه غواړم او نه شکایت کوم او نه (Complain شکایت)
کوم او ټول تکلیف په ځان تېروم. شپږ میاشتې تېرې شوې او ده خپله ولیدل
چه صحت مې خراب شوی او نور هم خرابېږي نو لغیر زما د وینا نه یې د صوبې سرحد حکومت
ته ولیکل چه ده له یو ملګری په کار دی او په ګیا جېل کښې د ده ملګري دي هغه دې
جېلخانې ته را بدل شي. هلته قاضي عطاء الله خان وو هغه غریب هلته یوازې وو او زما
هم زیات په تکلیف کښې وو زه به څه نا څه. و ده کېدم او خوب به راغی او هغې غریب
ته خوب نه ورته او نه وده کېدی شو ځکه چه د تنهایی په وجه یې یو کال هلته خوب
ونه کړو. د ګیا جېلخانه د هندوستان په ټولو جېلونو کښې ګرمه ده بله دا چه زه او قاضي
صاحب په یوه صوبه بهار کښې وو او ډاکټر صاحب او سعد الله خان په بله صوبه یعنی
یو. پي کښې وو ولې سره یې ګرفتار شو زما او د قاضي صاحب د پېر مخالف وو مونږ. دواړه
یو ځای کولو هغه په ځای یې ماله ډاکټر صاحب را ولېږلو. چه ډاکټر صاحب راغی
مونږ یو بل ته ورتر غاړه وتو او کال پس یې قاضي صاحب سعد الله له ولېږه.

ماسره ښځنګ په ختک د بنګو جېلخانه وه په هغې کښې سیاسي قیدیانې وې د
جند ربرشا د خور هم پکښې وه. یوه ورځ چوته صاحب د پېتې سپرنتنډنټ ماله

راغی، ماله یې ووی چه ښځو ډیر تنګ کړی یم او راته وایي چه ته مونږ ته دی وښیی
او که راته یې نه ښیې نو مونږ ایجی ټیشن کوو د اخوزه کولی نه شم نو ته مهربانی وکړه دې
ته جواب ولیږه او ما ترینه خلاص کړه ماهغوی ته جواب ور ولیږ لو ادی تری خلاص شو
چه ډاکټر صاحب راغی او هغه ولیدل چه ماخو دوی همېشه په بارک کښې بند
او زه خو به نیني جېل کښې جواهر لال سره همیشه بهر ګرځېدم نو د هغه سی باغ جېل
سپرنټنډنټ چه هغه یو پنجابي واو ډاکټر صاحب سره دیوه پټه خنګ کښې یو څای
پاتې شوی وخو ډیر بد دل سړی و. ډاکټر صاحب هغه ته د بهر ګرځېد و خبره وکړه
ده ووی چه: «لا نه بهایي میں مارا جاونګا» یعني نه وروره د اخبره مه کوه زه به
او وهلی شم لیکن ډاکټر صاحب د اخبره نه پرېښوه نو اخر مونږ ته د ګرک نه بهر ګرځېد
اجازت وشو. په دې جېلخانه کښې بابو راجندر پرشاد او د بهار ای لوی لیډر
قید وو. اچاریه کرپلاني هم دلته وهغوی نه زما نه خبر وو او نه زه د هغوی نه خبر
مونږ چه بهر ګرځېد و یوه ورځې مو د هغوی یو ملګری ولید و نو هغه ډیر حیران شو
تاسو کله راغلي یې ماورته ووې چه زما خو دلته اتم میاشت ده او ډاکټر صاحب
خو ورځې کیږي چه راغلی دی. هغه راته ووې چه دلته خو مونږ د بهار ډیر سیاسی
قید یان یو بیا به مونږ کله کله د هغوی لید وله ورتلو. د بهار خلک ډیر ښه
خلک دي، د بهار هغه داروغه صاحب د راجندر پرشا د کلاس فیلو او همصنف
و ډیر ښه سړی و او د قوم پرستو سره یې ډیره همدردی کوله. مونږ یوه ورځ چه
صاحب سره د اخبره وکړه چه د دی ځای چه کوم سیاسی قیدی راکیږی هغه
ورځ ماز یګر مونږ له د راکیږ و نه مخکښې رالیږی. مونږ به هغه له میلمستیا کو

بهادر خلک ډېر ښه خلک دي لیکن داچوټ چاټ پکښې ډېر زیات دي مونږ سره یو خاى پراته وو سپېده په دې خلکو کښې ډېر بدلون راغى او ډېره اصلاح یې وشوه ، یوه ورځ یو سیاسي قیدي زمونږ میلمه و چه چاى راغله نو چاى سره کومې پیکوړې تلیلې لې باتینګن هم ورسره په پیالې کښې چاى ورکوله او بیا به مې پیکوړې پخپل لاس ورکولې او ډاکټر صاحب به تلیلې لې باتینګن هم هغه له ورکول او هغه چاى سره پیکوړې باتینګن هم خوړل او چه چاى ختمه شوه نو هغه ډېر وخندل او بیا یې مونږ ته ووې چه په مونږ کښې دومره چوټ چاټ دى چه یوه ورځې مسلمان ډاکې راغى او هغه ماله زما خط راکړو نو هغه نه د خط اخیستو په وخت کښې یوه څنډه هغه نیولې وه او بله څنډه ما نیولې وه . په دغه وخت کښې زما ورور ما سره ولاړ و هغه په ما او به واړولې او واته یې ووې چه ته خراب پلید (بهرشټ) شوې .

د بهادر لیډرانو سره زما محبت و د هغوى محبت زه د زړه نه نه شم او بېکلې . بهادرښځې هم ډېر بهادران دي او هغوى د ملک د ازادۍ د پاره ډېرې قربانۍ کړې دي او زه به درته دیوې ښځې قصه وکړم چه هغه مونږ سره قیده وه .

بهادره ښځه :

یوه ورځ چوټا صاحب راغى او خندل یې او ماته یې ووې چه تاته نن دیوې ښځې قصه کوم چه دلته قیده ده ، نن جېلخانې له د هغې وکیل خاوند ملاقات له راغلى و او هغه سره ښځه بچي وو د ملاقات په وخت کښې خپلې ښځې ته یې ډېر منت وکړو چه دا دوه واره ته وخله او دادرې لوى به ما سره دي ښځې ورته ووې چه دا ټول به ته ساتې ما خو دا ټول ... ټال خوتا زما خبره د نه منله نو اوس یې ساته نو چوټا صاحب ووې چه ما هغې ښځې ته

ووې چه دا بچي ولې نه ساتې نو هغې خواب راکړو چه څه وخت د کانګرس د جنګ بیګل
ووهل شو نو ما دې خاوند ته ووې چه دا د ملک او قوم جنګ دی نه هم اړېشه خوده ووی
چه زما یو دوه مقدمې دي چه دا ختمې شي نو بیا به لاړ شم . څه ورځې پس مې ترې پوښتنه
وکړه چه مقدمې ختم شوې که نه ؟ نو ده ووې چه لږه یې غونډې پاتې دی . څه ورځې
مې بیا ترې تپوس وکړو نو هغه دغه خواب راکړو چه دې بچو سره څه وکړو ؟ ما ورې چه
بچي به زه ساتم ولې دی قید ته تیار نه و او زه پوه شوم چه جیلخانې له نه ځي نو ده بخیله
را غلم پکټینګ مې وکړ او قید شوم او بچي مې ده ته پرېښودل . د کوم نوم ښځو کښې چه
دومره قومیت او بهادري وي نو هغوی ضرور خپل منزل ته رسي او د دغه وجې وه چه
انګریز مجبوره شو او زمونږ ملک یې پرېښو .

د ډاکټر صاحب د راتلو نه پس یې بیا مونږ بل بارک ته بدل کړو . د دغه بارک سره ډېره
مځکه شاړه پرته وه ما چوتها صاحب ته ووې چه زه دا مځکه اباده م ما سره امداد وکړه
ماله دوه قیدیان راکړل . ما په هغه مځکه شروع وکړه او اباده مې کړله . په دې مځکه یوارته
هم و ما الو بالوګني قسم قسم سبزي وکرلې . د بهار ښیبیتې ډېرې خوږې وې یولوی
مې ښه جوړ کړو او دا مې پکښې وکرلې . ډپټي کمشنر به میاشت په میاشت راتلو ما سره به
په دې کار کښې ډېره دلچسپي وه او کله ناکله به یې د ملو تیپر و تخم هم راکوو او راته به یې
چه زما هم د زراعت سره ډېر شوق دی . دا جیلخانه په ځنګل کښې وه کله ناکله به د مزد
اوازونه مونږ اوریدل او په دې جیلخانه کښې به د شپې ډېر مارن راتلل او هغه
داسې زهرلیه وو چه سړي به یې وچیچلو او فوراً به ورته انجکشن ونه شو نو دوه ګینټو
کښې به مړ شو . زه به د شپې د دوه دی نه پس کوځېدم . سپرنټنډنټ صاحب خود

منع کولم چه مار به دی وچیچي نوما به ورته وي چه زه ونه کړځم نو نه خوب راځی او نه مې
دودی هضم کیږی نو بیا هغه ماله یو ګیس لمپ واخیستو او دشپې به چه ګرځیدم نو هغه
به د ملازم سره وه هغه به مخکښې وا او زه به ورپسې وم او چه کله به برسات شروع شو
نو داماران به ډیر زیات شول او چه مونږ به دشپې ګرځید و نو چه چیرته به ډنډ و کی
و نو هغی کښې به بیشماره ماران ریپیدل. دا ماران ورو کی ورو کی وو خو ډیر خطر-
ناک وو. زه به وختی سحر پاڅیدم. یوه ورځ چه پاڅیدم نو ګورګابې کښې مې پښه منډله
خو چه ډا ګورګابې مې په پښه سمولّه او هغه نسکوره شوه نو یو کوریټ مار تری روان شو،
خدای تری ساتلم دلته زمونږ یو مشتقی و. ډاکټر صاحب سره به ئي ډیر ګپ لګوو.
په دې کښې ډیر قیدیان دخټکلی علاقې وو ډاکټر صاحب ته یې وي چه مونږ پنځی او
نر لاسونه سره ورکړو او په جمع ګډ یږو. یوه ورځ تری مونږ پوښتنه وکړه چه په څه
قید شوی یې؟ نو هغه ووې چه سړی مې وژلی وا او چه مقدمه را باندی جوړه شوه نو
خپلو واله وکیل ونیو وکیل راته بیان او ښو چه دا به کوی. ما ورته وئیل چه دا خو دروغ
دی او زه دروغ نه وایم. وکیلانو خلکو ته دروغو اموخته کړې دي. حقیقت دا
دی چه دا وکیلان چه د کوم وخت نه پیدا شوي دي نو په دی ملک کښې دروغ او د
دروغو مقدمې زیاتي شوی دی. خو ما دروغ ونه وې او د ښتیا مې وی، چه د ښتیاو
په برکت له پانسی نه خلاص شوم.

حکومت زما بچوله الاونسې نه ورکولو حالانکه د ډاکټر صاحب او قاضي صاحب
بچوله یې ورکولو او بله لویه یې مونږ سره دا کړې وه چه زما جایداد خو ډیر و، خو
د ګورنمنټ په اشاره زمیندارو زما حصه ګډه وډه کړه او ماله یې څه نه راکول

نو زما زوی غني د پېښور د لښت په وجه د اموېکي نه واپس شو او خپل تعليم يې پوره نکړو، زما هغه د پېښور باغ چه يوخ شو او يو دوه مونږ خوږ لي وي چه زمونږ د رهايي حکم راغي مونږ خو ډېرې پيېتي کولې وې او هغه ټې شوې دې اکوچه په دې جېلخانه کښې د ننه د پېښور د کولو حکم نه و خو ماله جرنيل خاص اجازت راکړې و نو چه مونږ خلاصېدو جېلوالا او قيديان ډېر خپه وو يل يې چه تاسو د هاشي او لاړشئ مونږ به دا د بيخه وباسو. پيېتي په بخېدو راغلي وي ډېرې خوږ ې دي. اول په دې جېلخانه کښې د پېښور د کولو اجازه وه خو هغه قيديانو ايستلې وې ديوال ته اېښي وې او تښتېدلي وو نو ځکه د پېښور کول بند شوي و.

چه ډاکټر صاحب نه و نو زما د خوراک ډېر بد حال و د دې خلکو او زمونږ خوراک کښې ډېر فرق دی او زه ټخلي باندې نه پوهېدم چه ډاکټر صاحب راغي نو بيا کار ښه شو ولې چه هغه به ډېر ښه ټخلي کولو او بيا يې زمونږ مشقتي ته چل وښودو هغه بيا مونږ له ښه دودی ټخوله مابه د اتوار په ورځ روژه نيوه او دا سره به مې د خبرو هم روژه وه ولې چه زما د ډېرو خبرو کولو عادت و او ډېر قهرېدم به د روژه ماتي د پاره به ماله ډاکټر صاحب پخپله ټخلي کولو او په دغو ورځو کښې چه ګاندهي جي بهوک هړتال کړې و نو ما هم ورسره کړې و او ما ته دا سې ياد ېږي چه اته ورځې و. ډاکټر صاحب ما ته ووې چه زه چه په نيني جېل کښې وم نو جواهر لال راته ووې چه مونږ غواړو چه خدايي خدمتګار و سره مالي امداد وکړو نو ده ته مې ووې چه ډېره ښه ده، ما ورته ووې چه دا خو دې ډېر غلط کار کړې دې مونږ خو د کانګرس نه امداد نه اخلو مونږ هم د خپل ملک د پاره جد وجهد کوو

کانګرس هم

کوی نو مونږ له

د هغوی نه امداد اخیستل

خو ما ته مناسب نه ښکاري او

په دې خو ما نه جواهر لال خفه شوی و

مونږ د هغوی نه ولې امداد واخلو

مونږ خدایي خدمتګار به ددوه،

دوه نیم لکه خلک وی

نو کانګرس

به مونږ له څو مره

امداد راکوي بلهٔ دا

چه دوی اوس امداد ورکړی

نو هغه خو بېتولو ته رسېدی نه شی

نو په دوی کښې به بې اتفاقي پیدا شي

خو دا ښه خبره وه چه کوم پلاني

رهاکېد و نو ما هغه ته دووي

چه مونږ د کانګرس نه

مالی امداد نه غواړو

ډاکټر صاحب ته

جواهرلال ویلي وو نو ده دامداد خبره منلي ده ته چه لاړ

شي نو دا امداد بند که او تولولیدرانو ته دوایه

چه هغه وې چه خدایي خدمتکار د کانګرس

نه امداد نه اخلي. زمونږ باوړچي چه

زمونږ د رهایي واوریدل

نو په ژړا شو ماوړ ته

ووې چه

زمونږ په رهایي خفه لي؟

نو هغه وې چه نه ستاسو په رهایي

خوشحاله یم خو ماسره د ځان غم دی، جیلو الاهم

زمونږ په رهایي خفه وو زه هم په هغو خپلو پیپیتولیسي ډیر خفه وم.

# زما په صوبه سرحد او پنجاب بندیز

د آل انډیا کانګرس کمیټۍ اجلاس

وارډا، کلکتې کښې، بمبئي کښې، قید دوه کاله سابرمتي۔

جېل، بریلۍ جېل، الموړه جېل، رهایي، وارډې ته، د خپل اولاد سره ملاقات

انتخابات او کانګرس ورکنګ کمیټۍ، زه بمبئي کښې، د فیض پور کانګرس

د پښتنو په هکله غلط فهمي، انتخابات، مونږ وارډا کښې، د کانګرس

وزارتونه، مونږ بنارس، دهلي، ګجرات، کاټیاوار کښې

د هندوستان د مسلمانانو فکر

د سنده او بلوچستان دوره



په سرحد نه پابندي:

د دې کاله پس مونږ د هزارې باغ جيل نه رها شو او پيښنې ته راغلو او د هغې نه مخکې ميلمانه شو چه وکيل خاوندې جيل ته نه تلو او د اتلي وه او مونږ سره جيلخانه کښې قيد وه . په بهار کښې زمونږ د پرسياسي قيد يا ن ملکري وو او مونږ او د هغو د پر ښه تعلقات وو چه زمونږ د رهائي نه خبر شو او مونږ پيښنې ته راوو رسيدو نو واجند و پرشاد او هغه نور ليډران مونږ سره راغلل . زمونږ يو لوی جلوس قيد سنکو او جلسه وشوه ، د جلسي نه پس مونږ له حکومت د انوټس راکړې وچه پنجاب او سرحد با ندې تاسو بند يئ . مونږ له کاندهي جي او جمنالال بجاج دعوت راليږلې وچه تاسو چه حکومت په سرحد او پنجاب بند کړې يئ نو دلته وار دی ته راشئ . بيا مونږ وار دی ته روان شو .

آل انډيا کانګرس کميټئ اجلاس:

مونږ په دسمبر ۱۹۳۴ع کښې رها شوې وو . په بمبئ کښې د آل انډيا کانګرس کميټئ اجلاس ؤ نو چه زمونږ د رهائي خبر کانګرس ته ورسيدو نو د کانګرس کميټئ استقباليه کميټئ دا فيصله وکړه چه با چاخان دې د دې کانګرس صدر شي او راجند و پرشاد چه د آل انډيا کانګرس صدر مقرر شوې وو د هغه تا د راغې چه زه صدر منتخب شوې يم خو ستا په حق کښې مستعفي کيږم خو ما د ا خبره منظوره نه کړه او د تا د په ذريعه مې اطلاع ورکړه چه زه سپاهي خدائي خدمتګار يم ، زه صدارت نه کوم ، خدمت کوم . د دې جلسي پنډال زما په نوم جوړ شوې وو او مونږ چه

په کومه دروازه ورننوتو هغه لویه او بنکلې دروازه هم زما په نوم جوړه شوې وه، مونږ په دغه اجلاس کښې شریک شو. عبدالخالق خلیق صاحب او زمونږ نور ډیر پښتانه ورونه چه زما سترې مه شې له راغلي وو هغوی هم دې جلسه کښې شریک شوی وو. څه ورځې پس مونږ دواړه دې نه کلکتې ته لاړو او هلته د کلکتې کارپوریشن مونږ ته استقبالیه ایډریس راکړو او په کلکته کښې زمونږ لوی استقبال وشو.

چه څه وخت کلکتې له تلم نو گاندهي جي سره مې سلا او مشوره کړې وه چه پنجاب او سرحد ته خو زه تلی نه شم او هسې کښېناستې هم نه شم زه خو خدایي خدمتگار یم خدمت به کوم نو اوس به دې باقي هندوستان کښې بنگال او بل سنده دې چه لته د مسلمانانو اکثریت دې ستا څنګه خوښه ده چه کومه صوبه کښې شروع کوم؟ نو په دې فیصله وشوه چه بنگال کښې کار په کار دې، نو کلکتې ته لاړو، په کلکته کښې زمونږ ډیر لوی استقبال وشو، ما د مسلمانانو په علاقه کښې خپلو تقریرونو کښې مسلمانانو ته داخیال ظاهر کړو چه زه ستاسو د خدمت د پاره راغلي یم او زه په کلو کښې کار کول غواړم ولې چه یو خو قوم په کلو کښې اوسي او مصیبت زده او بې خبره خلک هم هلته دي. بل ښارونو کښې اخبارونه هم وي ریډیو گانې هم او کلو کښې داڅیزونه نه وي. نو زه خو هغوی د خبرولو د پاره راغلي یم او هغوی ته ورځم.

کلکته ښار کښې د مسلمانانو یو مجلس (انجمن) وو او سهروردي صاحب ددې مجلس مشر وو او دده هسې نور مسلمانان هم دې مجلس کښې وو. دې مسلم مجلس ماله دعوت راکړې وو چه مونږ درغلو د بنگالیانو د رواج مطابق هلته د ټنگټکو انتظام هم شوی وو، چه د سند دوادگانې وخت وشو نو ما خواهش وکړو چه د ومره به لس وي

اوس به څه د مطلب خبرې هم وکړو او چه کله ما د اخواهش ظاهر کړلو چه زه د مسلمانانو علاقو او کلو ته وتل غواړم چه هلته کار وکړم، نو دې لیډرانو ته می خواست وکړو چه ما سره یو تن داسې په کار دې چه زما د خبرو ترجمه په بنګالي کښې کوي نو هغوی د ا معذرت اوښانه وکړه چه د مسلمانانو په علاقه کښې د ملیریې د تبو ورځې دې ماشې دې او هلته تګ د صحت د پاره مضر دې یعني هغه ځنځیله تګ او خدمت خو پرېږده داسې کوشش وچه ما هم هلته د تللو نه منع کړي ځکه چه د هغوی په لیډرانو کښې فرق راغلو.

زه چه څه وخت د مسلمانانو نه مایوسه شوم نو د اکټر پرفولاچندر ګهوش چه زما دوست و او د کانګرس دورکنګ کمیټۍ ممبر هم و هغه می د دې حال نه خبر کړو هغه ته می ووې چه ما سره کلو ته لاړشه ځکه چه د غه خلک صرف په بنګالي پوهیږي او ما له بنګالي نه راځي هغه را ته ووې بنه ده زه دې هر قسم خدمت کوم او د کلو په دوره درسره ځم خو دا د بنګال خلک خو مړه دي هلته ته څه کوې؟ زه او هغه د کلو په دوره روان شو، مونږ چه به کوم کلي ته لاړونو ما به ځنځیله طریقه کار شروع کړو خلکو له به ورتلو خبرې به مو ورسره کولې او ورته به می ووې چه دا هندوستان د سرحد د ملک وو، هر کور کښې به پې و، غوړي او دیر بچي وې لیکن اوس څه چل وشو چه د دې ځیزونو قات (قحط) دې او زمونږ بچي وږي تږي بربنډ خوار و زار دي؟ هغوی غریبانانو به زما خبرې په غور و فکر اوریدلې او په اخر کښې به می ورته ووې چه تر کومې پورې دا ملک ازاد شوی نه دې او د دې ملک واک اختیار ستاسو په لاس کښې راغلی نه دې نو تاسو او ستاسو بچي!! د بدۍ نه نشي او په ګیډه مړیدی نه شي دا ملک خدای مونږ له راکړی دې خو زمونږ د خود غرضۍ او نا پوهۍ بې اتفاقۍ په وجه د دې ملک واک اختیار د انګریزانو دې او ستاسو په ملک

هغوی اباد دي . په دې طریقه مونږ چه څو ورځې په هغه علاقه کښې وګرځیدو نو بیا به مو یو ځای د جلسې د پاره خوښ کړو زمونږ په اوله جلسه کښې پنځوس کسان راجمع شوي وو او څه ورځې پس چه مونږ دویمه جلسه وکړه نو هغې له دوه سوه خلک راغلي وو او دغه شان پرله پسې د خلکو شمېر زیاتیدو . په دې وخت کښې مې پر د فولا بابو ته ووې چه تا ویل چه دا خلک مړه دي تا ولیدل دا خلک مړه نه دي ، ژوندي دي . دا مړه نه دي خو د دې غریبانانو خلکو غمخوار او همدرد دنشته چه خدمت یې وکړي او راویښ یې کړي چونکه کانګرس جلسه شروع کیدله نو مونږ په هغې کښې د شاملیدو د پاره بمبۍ ته راغلو . د کلکتې زماد هستو ګنې په دوران کښې غني او ولی دواړه ما سره وو .

د بمبۍ د کانګرس په اجلاس کښې د عیسا یانو د سوسایټۍ څو کسان ماله پنډال له راغلل او ماله یې دعوت راکړو . زه ورسره لاړم نو هغوی زمانه د خدایي خدمتګارۍ په باره کښې پوښتنه وکړه ما ورته د خدایي خدمتګارۍ ټوله قصه بیان کړه چه مونږ څه وخت خدایي خدمتګارۍ کښې داخلیږو او قسم خورو او خدای سره وعده کوو چه د خدای د مخلوق خدمت به کوو . د خدای خدمت د خدای د مخلوق خدمت دی بیا مې ورته هغه ټول حالات او ظلمونه بیان کړل چه په مونږ تیر شوي وو .

ما ته دغه وخت پورې دا معلومه نه وه چه د سبتیا ویل هم د پیرنګیانو په قانون کښې جرم دی ، د کانګرس اجلاس ختم شو او مونږ واپس وارد ی ته راغلو ، نو ګاندهي جي سره مو سلا مشوره وکړله او بنګال ته مې د واپس تلو پروګرام جوړ کړو او دا فیصله مو وکړه چه تر کومې پورې ما ته د خپلې صوبې د تلو اجازه شوې نه ده نو تر هغه وخته به د غلته کار کوم زما د دغې ارادې پته چه حکومت ته ولګیده نو هغوی وویل چه د بنګال هند و خو ویښ شوي دي

او دا مسلمان کهٔ هم را وبیښ شو نو بیا زمونږ خیر نشته، نو په بمبئی کښې چه هغوعیسایانو ته ما
کوم تقریرونه کړی وو پولیس راغی او په هغې کښې یې زه ونیولم او بمبئی ته یې روان کهم چه
هلته په تیسن کوز شوم نو د پړی ښځې او سړی زما لید له راغلی وو زه یې جیلخانې له
بوتلم او زما مقدمه شروع شوه کانډهی جی ماله خواب راولیږه چه دا وخت د قید نه
دی د کار دی ته جیل له مه خه معافی وغواړه ما ورته ووی، ما ته ښه معلومه ده چه
حکومت ما نه پریږدي نو معافي ولې وغواړم؟ خو هغه ځپله خبره د پیر ټینګ واو ما ته
یې ووی چه صرف دومره ووایه چه Regret یعنی زه افسوس کوم. زما خو یقین وچه
ما حکومت نه پریږدی خو ګانډهي جی هغه خبره مې ومنله خو سره د هغې یې هم زهٔ
دوه کاله سخت قید کړم.

## سابرمتی جیل:

زه یې څه ورځې د بمبئ په جیلخانه کښې وساتلم او بیا یې سابرمتی جیل ته احمد آباد ته
چالان کړم د هغه ځای یو انګریز سپرنټنډنټ و د پیر سخت مزاج یې و او د جیل قانون
یې خدایي قانون منلو. زه یې ایکي یوازې په یو واړه کښې بند کړم او د هغه واړه د نمبر دا ته
هم د ننه د راتلو اجازه نه وه هغه به د واړه د ورواز ی ته جنډره واچوله او ځپله به
بهر کښیناست. د دې ځای په خوراک کښې او زمونږ په خوراک کښې د پیر فرق و
ماله یې بی کلاس راکړی ولیکن د دی صوبې په بی کلاس او زمونږ د صوبې په سی
کلاس کښې هیڅ فرق نه و دلته د بی کلاس د پاره کټ نه و او په محکمه به خملاستو
ماسره څوک د خبرو نه و دلته د پیر بیزوګان وو ما به دوخت د تیرولو د پاره هغوی
سره لوبې کولې د دې خراب خوراک په وجه زه ناجوړه شوم او زما انقلو ئنزا شوه او باوجود

د دې سختې بیمارۍ زه چا هسپتال ته بو نه تلم او نه یې ماله په وارډ کښې کټ راکړو.
زه د سیمنټو په فرش پروت وم ماله چه یې کوم ترپړی د لاندې اچولو د پاره راکړې و
هغه دومره لنډ و چه ما به پښې وغځولې نو په سیمنټو به پرتې وې او د اغوستو د پاره چه
یې کوم کمیل راکړې و دومره لنډ و چه سر به مې پټولو نو پښې به مې بربنډې وې او چه پښې
به مې پټولې نو سر به مې بربنډ شو. دا ما سره ټول انتقامانه سلوک چه و. د دې دوه
وجې وې. یو چه مسټر ایمرسن د ګجرات په جیلخانه کښې د معاینې د پاره راغلې و، د دې
هغه وخت د پنجاب وزیر و. نو زه پخپله کلک ناست وم، دې د ننه چکې ته راغې
او زه ورته د اخلاقیانو قیدیانو په شان جنګلي ته نه وم ودرېدلې دې په هغې
خفه شوې و او س دې د مرکز هوم سکرټري دې، او بله خبره دا وه چه شمله
کښې وم د کانګرس ورکنګ کمیټۍ اجلاس له تلې وم ما ته ووېلې شوه چه وایسرای
سره ملاقات وکړه، زما ورسره څه کار نه و او هسې هغه سره ملاقات کول د هغه وخت
ضایع کول وو ما وې چه زما ورسره څه کار نشته نو ملاقات د څه د پاره وکړم او که
د وایسرای راسره څه کار وي نو هغه دې راته ولیکي نو زه به ورسره ملاقات وکړم
ما خو سمه خبره کړې وه خو دوی ته ګستاخي ښکاره شوه. څه موده پس صوفیه سوم جي
زما ملاقات له راغله، دا په هغه وخت کښې ټول هندوستان د کانګرس د زنانو د رضا
کارو کماندره وه چه وروسته یې بیا د سعد الله خان سره واده وشو. او د هغه نه
پس ګاندهي جي هم زما ملاقات له راغې. ګاندهي جي چه زه ولیدم او زما سره د حکومت
د سلوک نه خبر شو نو ډېر خفه شو او د هغه په کوشش سره یې څه موده پس ماله اې
کلاس راکړو. د ګاندهي جي نه وړاندې سردار پټیل هم زما ملاقات له راغلې و ګاندهي جي

د خپل عادت له مخې د ملاقات په وخت کښې ما سره ډېره توقع وکړه او زه یې ډېر وخندولم ما سره ملاقات باندې پابندي وه چې به غیر د خپلوانو نه بل چا سره ملاقات نه شي کولی او احمد اباد کښې خو زما خپلوان نه وو، کله ناکله به د سعد الله خان ښځه صوفیه بیبۍ نه زما ملاقات له راتله هغې له یې هم اول ډېر تکلیف ورکړه واجازه یې نه ورکوله هغې په ډېر زور اجازه حاصل کړې وه او دې به ورته ووې چې زه خو دده د وراره سعد الله خان ښځه یم زه خو یې رشته داره یم.

په دې جیلخانو کښې قیدیانو سره ډېر خراب سلوک کېږي زه به یې تل په هغه خپل وارډ کښې بند ساتلم او د هغه نه اخوا دې خوا د ګرځېدو اجازت هم نه وو ماته به یې څوک نه پرېښودل یوه ورځ زه اتفاقي د ملاقات نه راتلم ملاقات به زما د دروازې د پاسه د سپرنټنډنټ په دفتر کښې کېدو په دروازه کښې د ډېر دېنجو قیدیان ولاړ وو د دروازه کښې د دوی تالاشي کېده بربنډ وو یو لنګوټي به یې وچه وړاندې د ستره به یې پټ و نور به ټول بربنډ وو بس یو مزي شان به یې د ملا نه چاپېره وه په لیدو یې حیران شوم داسې معامله ما په بل جیل کښې لیدلې نه وه د هغه قطار نه به یې یو قیدي راجدا کړو هغه ته کوره چې د ده فرض به یې پټ کړې ؤ هغه به یې پرانیسته قیدي عجیب به ټول بربنډ شو او بیا به یې هغه کښېنولو او پاڅولو ما دې داسې ذلیله او شرمناکه طریقه ده نو هغوی راته ووې چې دا قیدیان بعضې څیزونه په ځان کښې د منځي او جیل ته یې دننه کوي نو ځکه یې مونږ کښېنوو و پاڅوو چې هغه څیز به تري په کښېناستو پاڅېدو کښې پرېوزي.

ماله خولې اې کلاس راکړو خو د ګجراتیانو او زمونږ ښځو په خوراک کښې ډېر

فرق دی. دلته داسی باورچي نه وو چي زمونږ په شان خوراک یې پخ کړی وای. په دې دوران کښې د جیلخانو جرنیل په دوره راغی او څه وخت چه ماله راغی نو ما ورته ووې چه دلته زما د پخلی باورچي نشته نو په ممبئی کښې چه زه قید وم هلته چه یې ماله کوم باورچي راکړی ؤ هغه ماله را وغواړه او بله دا چه د دې ځای د آب وهوا زما د طبیعت موافق نه ده نو ما د دې جیل نه بلې جیلخانې ته بدل کړه. جرنیل صاحب ښه سړی و په صوبه سرحد کښې پاتې شوی و هغه ماته ووې چه زه تا پنجاب ته بدلوم او ستا د پاره د پیښور نه پښتون باورچي راغواړم ما هغه ته ووې چه پنجاب زما د اخیستو د پاره تیار نه دی. زه په پنجاب بند یم او نه پښتون باورچي نه غواړم. ماله خو د ممبئی هغه باورچي راکړه! د هغه خیال خو ښه و. د هغه دا وو چه که زه پنجاب ته بدل شم نو کوهاټ ته به نزدې شي او پښتون به د ده په طبیعت کار کوی خو هغه د حقیقته خبر نه وه هغه کوشش وکړو خو د پنجاب حکومت زما د اخیستو نه انکار وکړه او د پیښور نه حکومت یو داسې قیدی را ولیږلو چه پخول ئې ورتلل نه او د تهی بې مریض هم و نو زه یې بیا د دې جیل نه د ستمرکټ جیل بریلي ته بدل کړم.

د غلته لوی جیل هم وا او هغه کښې سیاسی قیدیان هم وو که زه یې هلته بوتلی وای نو ماته به ارام وو لیکن هغوی خو ماله تکلیف راکولو د غسې زما د قید وخت تیریدو.

## بریلي جیل:

د بریلي په وړوکی جیل کښې یې زه په یو بارک کښې ځان له بند کړم دا نوره جیلخانه خو او چته وه او زما د غه بارک ښکته ؤ زه به د جیلخانې نه هغه ته په پوره

وکوز بلډم زه یوازې ورم ! زه یوازې ناجوړه کیږم او اخبار هم نه شم کتی نو سپرنټنډنټ ته مې ووې چه ماله لږه مخکه راکړه اباده به هم کړم او سبزې به کرم نو هغه ماله مځکه راکړه او کار مې شروع کړو. ډاکټر صیب هم تکه زما په صوبه سرحد او پنجاب بند وو، خو چه کله هلته په صوبه سرحد کښې د مرکزې اسمبلۍ د پاره دیو ممبر د انتخاب اعلان وشو نو ددې صوبې جرګې ډاکټر صیب خپل امید وار نامزاد کړو. اګر چه ډاکټر صیب ته اجازت نه وو چه هغه د خپل انتخابې مهم په سلسله کښې صوبه سرحد ته لاړ شي مګر بیا هم هغه په ډېرلوې اکثریت د غه انتخاب وګټو او چه کله هغه د مرکزې اسمبلۍ ممبر منتخب شو نو هغه صوبه سرحد ته د تللو اجازت ورکړې شو.

د بریلي جیلخانې له سعد الله خان او د هغه ښځه زما ملاقات له هم راغلي وو. سعد الله خان راته ووې چه ګوډ ښزراته وې چه د هغه د ارام د پاره مونږ ددې ځای نه باورچي ورلیږلې دې ما وخندل او ما ورته وې چه ګوډښر صاحب ته ووایه چه کاکا مې ستا ډېر شکرګذار دې لحکه چه تا هغه له زو دور باورچي لیږلي دې سعد الله خان ته مې ووې چه هغه خو د دق مرلیض و هغوې ددې د پاره راليږلې وچه د امرض په ما هم ولګي او باورچي هم نه وما په ډېرې خوارئ بېرته واپس ولیږه، دې جیل ته ماله غنی او ولی هم ملاقات له راغلي وو چه ډاکټر صاحب د مرکزې اسمبلۍ ممبر شو نو هغه ته د صوبه سرحد حکومت د تلو اجازه ورکړه او بیا یوه ورځ سره د خپلې هلئې زما ملاقات ته راغې.

ډاکټر صاحب سره د هغه لور مریم او زما لوړ مهرتاج هم وه، د ملاقات نه مخکښې ډاکټر صاحب جیلوالو سره ډېره جګړه هم کړې وه، جیلوالو ورته وې چه جیل کښې

د ډېر يو کسانو د ملاقات اجازت وی او تا سو خلو ړلئ اِز مونږ د ملاقات اجازه
په زمونږ د صوبه سرحد حکومت ورکوله اجازه دوی له د يو خط په ذريعه ورکړې شوی:
ده او ځکه دی جبلوالوجوده کړه ملاقات وشو . بل ځل قاضی عطاء الله خان
او ثمين جان راغلی وو . ثمين جان د نوښار د حلقی نه د صوبائی اسمبلی د پارهٔ
ودرېدلی وو او د نوښار د حلقی خدائی خدمتګار د ده مخالف وو ځکه چه ده به
هر يو ته کښې ګډی ودی خبری کولی . د ده خواهش وچه قاری صاحب او د خوشکو
سيف الملوک ته وليکه چه د ده مخالفت نه کوی ما دوی ته ووی چه زه خو قيديم دا
خو د بهر خلکو کار دی خو دوی نه مجبوره شوم او خطونه می وليکل او ما د هغو خطونو
په وجه د ده مخالفت هغوی پرېښودو او دی ئي منتخب کړو او ممبر شو ليکن د وزارت جوړ-
ولو په وخت کښې چه دی (ثمين جان) وزير نه شو نو زمونږ نه خفه شو . نو بيا زمونږ نه
لاړو او هماغه ثمين جان چه ما د قاضی صاحب په سفارش ورته خط ورکړې وا و د هغی
په وجه کامياب شوی و د هماغه قاضی مخالفت شروع کړو . څرنګه چه د خدائی-
خدمتګاری تحريک خدائی او بی غرضه تحريک دی نو کله چه خدائی خدمتګار د يو
ډېر ښتينی خدائی خدمتګار اسمبلی ته کامياب کړې دی هغه د دوی په کار راغلی دی
او کله چه يو سړې د دوی د خپلو غرضونو او تعلقاتو په وجه ودرولی دی نو اول خو هغه
نا کاميابه شوی دی او که څوک کامياب شوی دی نو هغه هم د دوی په فايده نه دی راغلی
بلکه د فايدی په ځای ئي جماعت ته نقصان رسولی دی . بيرسټر عبد الغفور خان
هو ادو د سرح خدائی خدمتګار نه وا او نه ئي څه قومی خدمت کړې وليکن د ډاکټر صاحب
د دوستۍ په وجه نامزد شو . دی هم د وزارت اميد وارو خو څوک به وزيران

کېدل ؟ وزیران خلور وو او امیدوار دېر وو. د ډاکټر صاحب بنګله د پاره تي بازو یوه
اده جوړه شوی وه او په اخر کښې دې خودغرضو جماعت سره بې وفايي وکړه. دغسې غلام
غوث او جهانګیرخان کوندي ادو د سره کامیاب نه شو.

ماچه به په هغه پتې کښې کار کوونو ماسره جوخت یو بارک وهغه کښې به هر وخت
ژړا انګولا وه یوه ورځ می د قیدیانو نه پو ښتنه وکړه چه دا څه قصه ده ؟ هغوی ویل
چه که شاجي خبرشي نوموږ ترې څوک خلاصولی شي نو هغوی راته ووی چه شاجي صاحب
د پیسود پاره دا قیدیان وهي او چاکو کښې یې بند وي او که په دی کار رضا شي نو بیا
ورسره د ېر د شهر کار کوي جامې ترې وباسي او بیا یې یو بل ته مخامخ کښېنوی او هر یو
له نوسې وکړی د یو بل د شهر له ځایونو نه وینښته راو باسي . قیدیان ددی شاجي
دلاسه د ېر تنګ وو اخر مستر پامر د جېلخانو جرنیل چه به پنشن لاړ نو د هغه پر ځای
کرنل سلامت الله خان د جېلخانو جرنیل شو. پامر د ېر بلهې خورو او جېلرانو ورله
رشوت کښې حصه ورکوله څوک د پوښتنې نه و داځکه د قیدیانو خوارانو داحال دی او
کرنل سلامت الله خان دېر سنبه سړي وو . دی په اول ځل بریلی ته راغی نو ناڅاپه جېل ته
راننوت . دهغه دا طریقه وه چه هغه به جېلوالانه خبرول بلهې خورهم نه و نو جېلوالا ترې
دېر ویرېدل چه د جېل د روازې له راغی او دي لیدل چه قیدیان بهرصفایي کوي نو شکمن
شو او فوراً یې د هغوی تکلتو نه راو غوښتل ، سحر وختي و د جاکمان نه و چه جرنیل صاحب
د ومره وختي راځي شاجي د ېر قیدیان د صفایي د پاره وېښکلي وو چه زما به نوم وشي
خو خدا ای کېر کړو او معطل شو قیدیان پری د ېر خوشحاله شول . شاجي موقوف شو
د جېلخانې داروغه چه د ېر بلهې خورو ، بد اخلاقه هم و ماسره نزدې زنانخانه

هغی له به هر وخت تلو را تلو زما چه ښو مره تجربه ده دا کار ونه همیشه قید یانو بندیانو سره کیږي.

یخنی کښې خو دلته ګذاره کیده له خو ګرمی کښې ډیره ګرانه وه یو خو زما هغه بارک ډیر په ډوغل کښې وتنګ وا و لوی لوی دیوالونه تری چاپیره وو زما ډیروکی بارک و هغه دا وسپنو د جنګلونه ډک وا و په هغو د پاسه تهکیری پرانه وو او په هغه کښې ځای په ځای سوری وو په هغه کښې به نور لګیدو دیو پي د جیلخانو وزیر سردار راج سنګه و هغه جیلخانی له راغی او ما سره یې ډیری خبری وکړې همدرد او ښه سړی وا و زما د پاره یې ولیکل چه دی دې د دې ځای نزدې ځای جیلخانی ته بدل شی. اپریل او می کښې یو پي کښې ډیره سخته ګرمی وی او جون کښې برسات مات شی څه وخت چه برسات شروع شی نو موسم ښه شی او ګرمی کمه شی.

## دالموړې جیل:

حکومت دا پریل او می هغه سخته ګرمی په ما د غلته تیره کړه او په جون کښې چه برسات مات شو نو زه یې دالموړې جیل ته بدل کړم ماچغی وهلی چه اوس خو برسات مات شو اوس خلک د غرونو نه میدانونو ته راځی او تاسو ما غره ته لیږی. هغوی به وې دا د حکومت حکم دی، حکومت خو ماله څه ارام نه راکوو خو ځنیله پرا پیګنډه یې کوله چه مونږ سیاسی قید یانو سره ښه سلوک کوو. زه چه دالموړی جیل ته لاړم نو هغه خلک هم حیران شول چه حکومت خو عجیبه توقه وکړه په الموړه کښې به اکثر بارانونه وو او کله کله به اته، نهه ورځی شپه او ورځ. باران و زه به یوازی هغه خپل بارک کښې ناست وم د زول او باران په وجه به اکثر ناجوړه وم زه چه د بریلی په جیلخانه کښې وم نو

جرنیل سلامت الله خان زما کتوله راغی ډېر ښه سړی و ما ته یې ووې چه څه خبره دې شته
ما ورته ووې چه دا زما مشقتي ماله ډوډۍ نه خوری او په هغې نه پوهېږم او دده تی. بی
مرض دی نو ما دده نه خلاص کړه نو هغه یې زمانه بدل کړو او واپس یې سرحد ته ولېږلو
دا المورې په جیل کښې داسې سړی نه وو چه ماله یې ډوډۍ پخه کړې وای او زما طبیعت
هم ښه نه و ډېر څه به مې خوړې هم نه شو بیا هم دیو سړی ضرورت خو سپرنټنډنټ
ښه سړی و او ما سره یې ډېره همدردي وه او د هغه دا کوشش وچه ماله د بهرنه
یو ښه باورچی راکړي نو چه حکومت ته یې ولیکل نو ما نه یې تپوس وکړو او ما منع
کړو خو هغه ولیکل او حکومت د بریلي د جیل نه یو قیدی راولېږه چه دا دده ذور باورچی
دی هغه زما باورچي نه و بلکه زما جاړو مارو مله وو څ چه سپرنټنډنټ صاحب راغی
نو ما ورته ووی چه تا خو زمانه منله زما هغه خبره وشوه که نه ؟ د پیرنګیا نو حکومت
د هغه چا د پاره ډېر روند دی چه د چا زړه کښې د خپل قام مینه محبت وي. څه ورځې
پس جرنیل صاحب دلته المورې ته په دوره راغی ما سره یې ملاقات وشو هغه ما ته ووې
چه دلته باران نه ډېر دي او ستا صحت هم ښه نه دی که ته غواړې نو زه به تا د بریلي سنټرل
جیل ته بدل کړم ولی چه هلته نور سیاسی قیدیان هم دی خو ما ته لږه موده پاتی
وه نو هغه می د جیل کښې تېره کړه او په ۱۹۳۶ع کښې د اګست په میاشت کښې رها شوم

## رهایي :

د رهاکېدو په وخت کښې سپرنټنډنټ د حکومت له طرفه یو نوټس راکړو چه
هغه کښې یې لیکلی وو چه سرحد او پنجاب ته تلی نه شې زما په خیال د دې لویه وجه
وه چه په دغو ورځو کښې زمونږ د صوبې د اسمبلی ایلکشن کېدونکی و نو ځکه یې زه

بند کړم هسې نه چې د ده په اثر د خدائي خدمتګارو زیاته کامیابي ونه شي. دغه شان چه په ۱۹۳۲ع کال کښې زه او ډاکټر صاحب د هزارې باغ جیل نه رها شو نو هغه وخت هم زه او ډاکټر صاحب لې په سرحد او پنجاب بند کړې وو خکه چه هغه زمانه کښې د مرکزي اسمبلي انتخابات کېدونکي وو. با وجود د دې چه زه لې خپلې صوبې ته پرېښودم نه. خو بیا هم زمونږ خدائي خدمتګارو په ښاو ښېښتو کښې نولس سیتونه وګټل خکه چه زمونږ صوبه کښې کار کړې و او عوام مو د ووټ په اهمیت او حقیقت پوه کړې وو او هغوی کښې شعور پیدا شوې و.

## واردې ته تګ:

زه د جیل د دروازې له راغلم نو بهر مې د بهر کانګرسیان ولیدل چه زما د رهائي نه خبر شوي وو. زما خو هغه وخت اراده وه چه واردې له لاړ شم مګر د الموړې خلکو پرېښنه ښودم یوه شپه مې ورسره وکړه د شپې هغوی یوه لویه جلسه وکړه او ما پکښې مختصر تقریر وکړو او سباله واردې له روان شوم زمونږ ګاډې په یو ټیشن بدلېدو د بهر خلک هغه ټیشن له ماله راغلي وو زه ورله راکوز شوم زما اراده وه چه دا وخت زه په ټیشن کښې تېر کړم خو هغوی په زور ښار ته روان کړم د ډوډۍ د خوراک نه پس راغلم او بیا په بل ګاډي کښې سور شوم چه واردې ته ورسېدم نو ټیشن له جمنالال بجاج، مهادیو ډیسائي او نور د بهر خلک راغلي وو معلومه شوه چه ګاندهي جي په وارده کښې نشته او څلور میله بهر ته سیواګرام کښې او سېرې ي ماو لمبل او جامې مې بدلې کړې شپه مې وارداکښې وکړه سباله سیواګرام ته لاړم په سیواګرام کښې یوه کوټه وه چه ګاندهي جي د خوګسا نو سره ملته ناست و زما په لیدو ډېر خوشحاله شو او مخې له راغی. زه یې

خان سره کښېنولم او تپوسونه يې وکړل.

د سيټ جمنالال بجاج زوی ماسره سيوا ګرام ته تللی و هغه ويل چه باچا خان

دې په وارده کښې په هغه زور ځای کښې چه په ۱۹۳۴ع کال کښې دی او ډاکټر صاحب

يکښې ديره وو واوسي. دګاندهي جي هم داخواهش وخوزما هم داخوښه وه چه زه دی

په سيوا ګرام کښې پاتې شم خو بيا زما دا خيال پيدا شو چه هسې نه دوی په ارام کښې مخل

نه شم ځکه چه دغلته يوه کوټه وه او هغې کښې دوی خلور شپږ کسان ديره وو او دګاندهي

جي مېرمن او ورسره يوخوښځې هم وې ګاندهي جي زما په خيال پوه شو نو ماته يې ووې

چه که تاته تکليف نه وی نو مونږ ته ستا په پاتې کېدو کښې هيڅ تکليف نشته. دو يمه کوټه

د دې ښځو پاره وه ماته څه تکليف نه و او ګاندهي جي سره خوشحاله وم زما ضرورت

خو ډېر کم وو دګاندهي جي د پوزې سره يې يو بل پوزی واچولو دا يو ستا او يو زما!

دغه کوټه کښې مونږ ډېر کسان وو خو ماته څه تکليف نه و چونکه زمونږ مقصد يو و نظريه

يوه وه دهغه په وجه مونږ يو وو. لېبنتانه وايي چه زړه تنګ نه وی نو ځای نه تنګېږي.

## دخپل اولاد سره ملاقات:

زما د رهايي نه چه خلک خبر شو نو غني، ولي او مهرتاجه زما ليدو له راغلل د

مصر تاجې دوه کاله تعليم ضايع شوی و او دالاشکرو چه ډاکټر صاحب مهرتاجه او د

هغه لور (مريم) چه دواړه همزولې وې او يو بلې سره يې ډېره مينه محبت و. دا دوه

کاله هغوی سره ديره وه. ولې بيرته کلی ته لاړه او غني او مهرتاج ماسره پاتې شول

هلته خوتش ايشيدلي شيان وو ولې هغه خوړی نه شول او مهرتاجه او غني هغه

شان نه وه. زه په دی فکر کښې وم چه مهرتاجه د مسلمانانو په يو ښه سکول کښې داخله

کوم ما داسې سکول نه شو موندلې نو دېر وخت تېر شو او اخر مجبوره شوم او دپروفيسر مجيب صاحب په امداد مې مهرتاجه په لکهنو کښې د مسلمانانو په يو سکول کښې داخله کړه. غنې هم کولې (کولا .لوکون ناته) ته لاړو چه هلته يې د ترو په کارخانه کښې کار کولو پاتې لعلې شو هغه په ډېره دوان کښې د کرنل براون کيمبرج سکول کښې سبق وې چه دهغه چوتې وشوه نو هغه هم ماله وار دې ته راغې د هغه سکول په انګريزې طريقه و، انګريزې خو ورتله او په اردو بانډې نه پوهېدو ماته داخبره فايده منه ښکاره نه شوه فيصله مې وکړه چه دې په داسې سکول کښې داخل کړم چه انګريزې سره اردو هم وي د کاندهي جي په صلاح مې هغه د پنځ کلي په يو کيمبرج سکول کښې داخل کړو. داپوني سره نزدې د آب وهوا په لحاظ ډېر ښه ځاى دى.

### انتخابات او کانګرس ورکنګ کميټۍ:

په دغه ورځو کښې دااليکشن قصې وې نو د کانګرس ورکنګ کميټۍ ددې د پاره راغونډه شوه. په دې بحث وچه د کانګرس په ټکټ څنګه خلک ودرووو؟ زمونږ خو داوه چه مونږ له په کار دى چه د کانګرس وفادار از مايلې شوي غړي ودرووچه دقام دپاره چا ځانى او مالى قربانى کړې وي خو داکثرو ممبرانو خيال داو او دغه فيصله هم وشوه چه که يو سړې د کانګرس په ټکټ دستخط کوي او پيسې هم ورسره وي او د کاميابى اميد يې وى نو هغه به مونږ ودرووو نو د کانګرس به ډېر ممبران منتخب شي خو داسې کسانو کانګرس ته کافي نقصان رسولى دى او بيا په هغه وخت چه کله کانګرس د وزارتونو ډېر پښېدو وفيصله وکړه. د ورکنګ کميټۍ په اوله جلسه کښې چه زه کښېناستم نو معلومه شوه چه ددوى په مينځ کښې ډېر اختلاف

دې يو طرف ته جواهرلال وا و بل طرف ته سردار پټيل او راجگوپال اچارية وو
گاندهي جي سره مې هم دا ذکر وکړو هغه هم په دې اختلاف خوشحاله نه وو هر کله
چه زه په دغه پوره جنبو کښې نه وم زما دوا ړو ډلو سره ډېر ښه تعلقات وو
او کوشش مې شروع کړو چه ددوی اختلافات کم شي ، زه تر ډېره حده پورې
هغه کښې کامياب شوم . په بمبئي کښې د کانګرس جلسه وه خو ځکه چه زه په بمبئي کښې
قيد شوی وم نو دهغوی ډېر خواهش وو چه زه دې دغه جلسه کښې شريک شم .
د گاندهي جي دا خبره خوښه نه وه او زما د بمبئي د تللو مخالف و هغه پوهيدو
چه دې به بيا خه تقرير وکړي او حکومت به ورته بهانه جوړه کړي او قيد به يې کړي
جواهرلال چه خبر شو نو ډېر خفه شو گاندهي جي له لاړو او ښخپله ذمه واري اجازت
حاصل کړو او زه يې ځان سره بمبئي ته بوتلم .

زه بمبئي کښې:

د بمبئي خلکو زما ډېر ښه استقبال وکړو ، د بمبئي هغه کرسچين ايسوسيئيشن
چه د چا سره په تقرير زه قيد شوی وم ، هغوی او د هغوی سره نور وجاعتونو ما
له ايډرسونه راکول . په ورکنگ کميټۍ کښې د قرار دادونو په سلسله کښې چه به اول
ځو مره بې اتفاقي وه زما د کوشش په وجه هغه اختلافات نه وو او په ډېر ښه طريقه
هغه جلسه ختمه شوه . ما د جلسې نه پس غوړنې صوفيي او سعدالله سره تيوري کړې ؛
او بيا سيوا آکرام ته راغلم . سيوا آکرام ته به هر قسم خلک گاندهي جي له راتلل يوا زې
سياستدان نه . د سيوا آکرام ژوند ډېر ساده او باقاعده و ، د غلته ورو ورو
زمونږ شهر زياتيدو . د گاندهي جي خو دا خوښه نه وه چه دلته دې د خلکو تعداد د

زیات شي تواخري رخصت ورکړو. د ښځو، نورو ښهرکانی زیات شوی و، دهغوی
د اوسېدو د پاره هم هغه ده کوټې وې هلته د دې خبرې غم پاک نه و اکثر به
هلکان جنګي په برنډه کښې یوځای ځملاستل خو زما دا خبره خوښه نه وه دغه
هلکان او جنګي د برېښنه او پاک وو، خو زما دا خیال و چه دوی په دې انمینبت کښې
اچول په کار نه دي ما دا خبره غوره وګڼله چه هلکان او جنګي دې بیله بیله برنډه
کښې ځملي، ګاندهي جي هم دا تجویز خوښ کړو.

په ١٩٣٧ع کال د کانګرس د انتخاباتو وخت را نزدې شو او د راج ګوپال-
اچاریه نوم د صدارت دپاره تجویز شو او فیصله پرې وشوه لیکن څو ورځې پس
په مدراس کښې د یوې واقعې په بنا هغه خپل نوم بېرته واخیستو مګر دا دهغه
یوه بهانه وه حقیقت دا و چه هغه د مدراس د اسمبلۍ دپاره ودرېدل غوښتل
او که چېرې هغه د کانګرس صدر شوی وای نو بیا خو د اسمبلۍ دپاره ودرېدلی
نه شو، نو جواهرلال ووېل زه ودرېږم، په سیوګرام کښې لږې ورځې پس د ورکنګ-
کمیټۍ یو اجلاس وشو سردار پټیل دا تجویز پیش کړو چه جواهرلال دې دوباره
د کانګرس صدارت ته نه ودرېږي. جواهرلال ووېل که چېرې باچاخان
ودرېږي نو زه نه ودرېږم او که چېرې باچاخان نه ودرېږي نو بیا زه ودرېږم
خو زه دې خبرې ته تیار نه وم، کله چه هغه په دویم ځل د کانګرس صدر شو نو یو
بیان یې ورکړو چه دهغه نه د بعضې خلکو دا خیال پیدا شو چه دهغه د دې بیان
مطلب دا دی چه زما کامیابي د سوشلیزم په وجه وشوه او دا د سوشلیزم کامیابي
وه. زمونږ د کانګرس کمیټۍ بعضې ممبرانو په دې بحث وکړو او دا فیصله یې وکړه چه

د دې خواب کښې مونږ هم يو بيان اخبارونو له ورکوو بابو راجند رپرشاد او پټيل يو بيان تيار کړو او دستخطونه يې پرې وکړل . مالهٔ مها ديو ديسايي د دستخط د پاره راوړو ليکن ماته هغه خبره دغسې نه ښکاريده نو دستخط مې ونه کړو او مهاتما جي ته مې ووې چه ښه به داوې چه جواهر لال ته يو تار وسکوئ او پوښتنه ترې وکړې چه د دې بيان نه ستاسو څه مطلب دې ؟ ما ورته ووې چه زما دا خيال دې چه د هغه دا مطلب دې . تار يې ورکړو جواب راغې چه زما د بيان نه کوم مطلب تاسو اخيستې دې هغه يې د ګاندهي جي . جواهر لال سره ډيره مينه وه . جواهر لال خو ګاندهي جي د پلار په شان ګڼلو خو بعضې خلکو کوشش کولو چه د دوې په مينځ کښې خفګان پيدا کړي نو تر څو پورې چه زه هلته وم نو ما به د دې غلط فهمو ليرې کولو کوشش کولو او د ورکنګ کميټې د نورو ممبرانو به مينځ کښې به مې هم کوشش کاوه ځکه ماته بې اتفاقي د متصل په لاره کښې خنډ ونه ښکاريدل او هر يوه دله کښې چه بې اتفاقي پيدا شي نو د کاميابي پځاى ناکاميا به شي .

## د فيض پور کانګرس :

د ټول هند د کانګرس کميټې سالانه جلسې د پاره فيض پور غوره کړې شو . فيض پور د بمبې په صوبه کښې يو کلې دې ما به هميشه ګاندهي جي ته ويل چه قوم خو به کلو کښې اوسيږي او د هغه زما د دې خبرې سره اتفاق و ، د غه وجه وه چه د دې زمونږ به شان د کلو د خلکو نه کار اخيستل شروع کړل ځکه چه کلو کښې عوام اوسيږي او هر يو تحريک چه عوامو ته ورسي نو کامياب به شي مونږ ځکه د پښتنو په زلمو او ز رولسپي کلي په کلي ګرځيدو او دا زما عقيده وه چه د ښار خلک خو تعليم يافته وي ځکه چه هلته

اخبارونه دي، سکولونه او دتعلیم او تربیت ډیر ځایونه وي او په کلو کښې نه وي او خلک
بې خبره وي.

دکانګرس ګرډ په ډیره لویه پیمانه تیار شوی و د ورکنګ کمیټۍ دټولو ممبرانو د
پاره ځان له ځانه له ځایونه وو زما ځای ددې نوورونه لوی و زما هم دا خیال و او د
دوی هم چه دصوبه سرحد خلک به راځي او ماسره به ډیره وي خو افسوس دی چه
دغه کانګرس له دسرحد نه څوک رانغلل. ماسره مهرتاجه او مریم او لعلی تللی وو
خو هغوی به ماسره نه وو، هغوی صوفیې سره دجنګو په کیمپ کښې وو. صوفیه دبمبئي
دصوبې د رضاکارو جنګو کمانډره وه او دهغې رضاکارې هم دخدمت دپاره کانګرس
ته راغلې وې. مهرتاجه او مریم هم په رضاکارو کښې شاملې وې او ټوله ورځ به یې کار کولو.
په دغو ورځو کښې ایم. این. رای رها شوی و هغه هم دې جلسې له راغلی و
دهغه ډیر تعریفونه په اخبارونو کښې شوي وو او کوم خلک چه تاشقند ته تللي وو هغوی
به هم دده صفتونه کول خو دی چه ما د نزدې نه ولید و او خبرې مې ورسره وکړې نو
ماته داسې سړی ښکاره نه شو. د ورکنګ کمیټۍ ممبرانو سره به یې هم ګپ لګولو، مهاتما ګاندهي
ته به هم نزدې نزدې کیناسته او خوشامندې به یې کولې. دکانګرس پنډال کښې یې یو
تقریر هم وکړو خو خوندناک نه و ځکه چه دسړي په زړه کښې یو څه وي او وایې بل څه نو
د خلکو دهغه ډیر اثر نه وي زما خو دا خیال و چه دی هر څه چه کوی ددې دپاره کوی
چه د ورکنګ کمیټۍ ممبر شي او چه پوه شو چه دا کار نه کیږي نو ددو وروي دکانګرس
مخالفت شروع کړو او خبره دې ځای ته ورسیده چه بیا دهغه نه زیات بل دکانګرس
مخالف نه و او مهاتما جي پسې به یې هم بدې ردې وې.

دفیض پور په کانګرس کښې چه به هر کله ماته لږ د پر فرصت وشو نو چا پېره کلوته
به تلم او دکلو حال بې د پر خراب و دغریبي او جهالت زور و. د مسلمانا نو حالت زیات قابل
رحم و. د هغه وجه داوه چه هندوانو کښې داسې خلک وو چه کله کله به یې د هغوی خبر
اخیستو او هغوی به یې د دین دنیا د حال نه خبرول. مګر د مسلمانانو خوار انو څوک غمخور نه
و. د خدای اسره یې ته پرانه وو. زه چه څومره د هندوستان په کلو کښې ګرځېدلی یم نو ما
لیدلي دي چه د مسلمانانو جذبه د هندوانو کمه نه ده، بلکه دا چه مسلمانان د چوت چات
نه وچت دي او هندوانو کښې دغه مرض ډېر دی او چه تر کومه ماليدلي دي نو هندوان
په نسبت د مسلمانانو (سوشلی بیک ورډ) دي اجتماعي طور وروسته پاتې دي. څومره
چه مسلمانان زر ترقي کولی شي هندوان هغومره زر نه شي کولی، ولی قوموناخو په دعوو او
تشو خبرو ترقي کولی نه شي چه په کومو قومونو کښې نیکان، پاکان او بې غرضه او د خدای
د پاره د خدمت خلک پیدا شي نو هغوی ترقي وکړي. خدای دې په مسلمانانو کښې
داسې خلک پیدا کړي.

## د پښتنو په هکله غلط فهمي:

زه چه په هندوستان کښې وم نو ما به ډېر کوشش کولو چه د پښتنو متعلق چه کومې
غلط فهمي پیدا شوي دي د دې صفایي وکړم. کلکته کښې چه د هندوانو ډېر عالم او باخبر
لیډرانو هغه ماته دا خبره وکړه چه په سرحد کښې او ازاد قبایلو کښې د هندوانو مال
او عزت محفوظ نه دی ماورته ووې چه تا سرحد لیدلی دی؟ هلته تلی یې؟ وې نه!
نو ماورته ووې چه دا د ملک د دښمنانو غلطي پراپیګنډې دي هلته د هغوی مال
ځان او عزت د دې ځای نه هم محفوظ دی او قبایل خو خېل همسایه هندو سره کولو ته

تیار وي . دپیرنګیا نو په علاقه کښې دلته هم او هلته هم د هند و مسلم د بې اتفاقۍ د پاره حکومت داسې کاروونه کوي چه ددې دیو بل دښمنان کړي ، دکلکو په فکر کښې دا خبره نه راتلله چه دومره منکلې پیرنګیان هم دومره خراب کاروونه کولی شي نو ماورته ووې چه دلته په ۱۹۲۲ ع کښې په ملتان کښې د هندوانو مسلمانانو فساد چا جوړ کړو؟ کانپور کښې هندوان مسلمانان دچا په لمسه قتل شول ؟ او پرون تا ته نزدې بمبي کښې د هند و مسلم فساد کښې دچا لاس و ؟ لاهور کښې د شهید ګنج جګړه څنګه پیدا شوه ؟ په کوهاټ او دیره اسماعیل خان کښې دا دومره لوی فساد د هندوا و مسلمان چا وکړ ؟ دې ټول هندوستان کښې چه هندوا و مسلمان لاس په ګریوان دی ولې ؟ ده د دې هر غور او فکر نه پس وویلې چه تاسو له په کار دی چه په دې باره کښې کتابونه او رسالې ولیکې نو ما ورته ووې چه زمونږ ذریعې محدودې دي تاسو له په کار دی چه تاسو لارښي او د هغه ځی حالات پخپله وګورئ او بیا د هغه متعلق اشاعت وکړئ تاسو داموږ کې نه او یورپ نه خوخبرئ او دخپل ملک دیوی حصې نه ځان نه خبروئ پخپله تاسو معلومات نه کوئ ، نه ورځئ ، نه ګورئ خو دبل په خوله پسې ځئ .

د پښتنو په باره کښې چه څومره غلط فهمي پیدا شوې وې ددې دلیرې کولو د پاره د کار سنبه ځای سیوا ګرام وځکه چه دلته به د هر ملک نه د هر خیال او د هرې عقیدې خلک راتلل ما سره به د خبرو د پاره سنبه موقع وه بله دا چه کله ناکله به مې د هندوستان د مختلفو علاقو دورې کولې او د عامو جلسونه علاوه به مې د هغه ځای هندوانو ، مسلمانانو سره تبادله خیالات کول او دکانګرس خلکو مې هم دې ته تیار کړل چه د فیض پور په دې عام اجلاس کښې د سرحد اتو متعلق یو ریزولیوشن پاس کړي . د کانګرس د څینو ذمه دارو

خلکو په زړونو کښې دا خیال پیدا شو چه د هندوستان د ازادۍ او امن د پاره دا خبره ضروري ده چه مونږ دې د سرحد خلکو سره تعلقات پیدا کړو مګر مغوي د دې خبرې نه خبر نه وو چه په دې لاره کښې څومره ډیر مشکلات دي ځکه چه پیرنګیانو دا کله غوښتل چه د هندوستان او د سرحد اتو د خلکو تعلقات دې پیدا شي پیرنګیانو مونږ له موقع نه راکوله چه ازاد و قبایلو سره خپله وروري جوړه کړو نو هندوستان له بیلې څرنګه دا موقع ورکوله چه هغوي سره تعلقات قایم کړي. پیرنګیانو خو مونږ هم قبایلو ته نه پرېښودو.

سیوا کرام ته به دیورپ ډیر ښځې او سړي راتلل لکه فادر الون (ILWON) فادر سي ایف اینډ روز او میري. د سړو په نسبت ښځو کښې هم عملاً دی زیاته وه کله کله به هغوي زمانه د سرحد اتو او د خدایي خدمتګارۍ تحریک تپوسونه کول. یوه ورځ سیوا ګرام ته یو ځوانه پیرنګیان راغلل هغوي سره دنا کپور لوی پادري هم و. هغو پیرنګیانو د ازادو قبایلو تپوسونه کول او ما به ځوابونه ورکول چه په دې کښې پادري صاحب ووې او داسې شروع یې وکړه چه زه په خیبر کښې پاتې شوی یم زه دا پریدونه ښه واقف یم هغه ښه خلک نه دي ځکه چه هغوي پیرنګیانو ته بوند او نیغ نیغ ورکړي ما د خندل او پادري صاحب نه مې تپوس وکړو چه دوی ولې تاسو ته بوند او نیغ ورکړي نو هغه دوی چه هغوي زمونږ نه نفرت کوي ما وې چه ستا دا خبره درسته نه ده حقیقت دا دی چه هغوي پیرنګیانو ته ځکه بد ګوري چه هغوي تاسو وینې نو په زړونو کښې دا خیال راپیدا شي چه دا هغه خلک دي چه په توپو، ماشین ګنونو، بمونو زمونږ کلي، زمونږ کورونه ورانوي، او زمونږ ښځې، نر، مالونه او بچي تباه کوي. زما په دې خبره هغه نورو پیرنګیانو خندل او پادري ډیر کچه شو.

## وزارتونه:

په ملک کښې د اسمبلو الیکشنونه شروع شول او اکثرو صوبو کښې د کانګرس امیدواران کامیاب شول. د موږ د صوبې انتخاباتو نتیجو په پېرنګیان او د هغوی پرګچي د پر حیران کړل. هغوی اولیدل چه هغوی درې نیم دری ستني راوغورځیدې، بیا د صوبې د متولو لوی لوی نوابان سر محمد اکبر خان هوتی د امیر محمد خان د لاسه شکست وخوړ، صاحبزاده عبدالقیوم دیو خدایي خدمتګار عبدالعزیز خان د زیدی د لاسه ارباب شیر علي خان د تهکال د ارباب غفور د لاسه، د هیري نواب د اسلم خان د لاسه، خان بهادر قلي خان د صاحب ګل جرنیل خدایي خدمتګار د لاسه، راپریوتل او دغه شان د پېرنګیانو ملاتړ خانان بهادران، رائي بهادران، خانصاحبان او رای صاحبان وغورځیدل.

د ۱۹۳۵ع د ایکټ د لاندې د صوبایي اسمبلو د پاره د انتخاباتو نتیجو ټولې دنیا ته عموماً او پېرنګیانو ته خصوصاً دا خبره په ډاګه ترسره کړه چه کانګرس په حقیقت کښې د عام اولس نماینده دی. ثبوت یې دا و چه په هغه وخت د هندوستان د یوولس صوبو نه په اتو صوبو کښې د کانګرس اکثریت وو. باقي درې د مسلمانانو اکثریتي صوبو کښې مقامي ډلې کامیابې شوې، صوبه سرحد چه د مسلمانانو اکثریتي صوبه ده (٪۹۳) هغه هم د کانګرس سره لاړله.

څلور ورځې پس په ډیلي کښې د کنونشن د پاره یوه جلسه مقرره شوه چه هغه کښې د آل انډیا د اسمبلو ممبران راجمع شول او په دې خبره بحث جوړ شو چه دې وخت کښې مونږ له څه قسم قدم اوچتول په کار دي. وزارتونه واخلو که نه؟ دې جلسې له د سرحد ډېر کارکنان راغلي وو. ډېره موده پس مې هغوی سره ملاقات وشو. په ورکنګ کمیټۍ کښې څه ورځې تاوده بحثونه وشول. جواهر لال د وزارت جوړولو سخت مخالف وا د ورکنګ-

کمیټۍ اکثریت یې په حق کښې وو زه هم اول د وزارت مخالف وم خو بیا زما خیال بدل شو
خکه چه کوم کسان چه د وزارت په حق کښې وو هغوی به هم داوې چه مونږ وزارتونه
ددې د پاره نه اخلو چه مونږ دې د پیرنګی اصلاحات" وچلو بلکه زمونږ دا اراده ده
چه ددې په ذریعه به مونږ دا د پیرنګی اصلاحات" نا کامه کړو. زمونږ د وزارت
اخیستو فایده داده چه زمونږ د له مضبوطه شی، که دا کار ونه کیدل نو فوراً به وزارتونه
پریږدو. دویمه نکته چه په کوم باندې د وزارت د اخیستو مخالفینو اصرار کوو، هغه د
صوبائی ګورنرانو خصوصی اختیارات وو چه کوم د دغه ایکټ د لاندې هغوی ته حاصل
وو. فیصله په دې وشوه چه تر کومې پورې ګورنران د صوبائی وزارتونو د تسلی ونه کړي
چه هغوی به په وزارتی فیصلو کښې مداخلت نه کوی نو تر هغې د وزارتونه نشی اخیستی.
د پېر وورځو بحثونو نه پس ورکنګ کمیټۍ د وزارتونو په حق کښې تجویز پاس کړو کنونشن
کښې هم ددې په حق کښې او مخالفت کښې ډیر تقریرونه وشول مګر اکثریت د ورکنګ
کمیټۍ تجویز پاس کړو د پاس کیدونه پس په هغه جلسه کښې صلا د ټولو صوبو ممبرانو نه
د وفا دارۍ حلف واخیستو او بیا خلک رخصت شول. زه یو څو ورځې د پلې کې ایسار وو
او بیا وارد ی له لاړم.

موږ وار دا او سیوا اکرام کښې:

زه چه تر څو هلته وم نو غنی او مهر تاجه ما سره وارده کښې وو. د لالی هغه
سکول خوښ نه شو هغه د وارد ې په سکول کښې داخل شو ددې سکول هیډ ماسټر
ناایکم ډیر ښه او قومی سړی وو او ډیره لږه تنخوا به یې اخیسته د هغه ښځه د بل ایم
اې وه ډیره ښه او قوم پرسته ښځه وه هغې به هم د جلګو په سکول کښې په لږه تنخو

کارکولو ددی دواړو ماسره ډیر ښه تعلقات او همدردی وه زما داوسېدو ځای
سیواګرام دواړدی نه ځلور میله لیری و دلالی د پاره تلل راتلل ګران وو نو دوی
سره ډیره شو. کهوتاجه چه به په چوتهی راغله نوماسره به سیواګرام کښی وه. ولی، په
واردا کښې واوپه دویمه، دریمه ورځ سیواګرام ته راتلو دلالي چه به کومه ورځ چوتهی
ده نو دلته به راغی یوه ورځ وختی غنی سیواګرام ته راغی په دغه ورځ دګاندهی جی د
پیدا کیدو ورځ وه چه ډیره په کښنیا ستو نوغنی ګاندهی جی ته دوی چه نن ستا
د پیدا یش ورځ ده ما وختی خان راورسو وچه نن به قسم قسم ښه خوراکونه وي لیکن
داخو بیا هغه بي خونده ایشیدلی کدو دی چه تل بي زه خوردم. هغه غنی ته دوي چه نه
هره ورځ سحر وختی دلته راځه غنی وخندل وې. زه به دی ایشیدلی کدو بسی
هره ورځ دادومره مزل کولی نه شم داکه چیری اوس پولا وو ای او ورسره سور کړی
چرګ وای نو زه به دې کار ته تیار شوی وم. داخو د توقو یوه خبره وه او په خندا تېره
شوه سبا له ګاندهی جی ماله ووې چه داهلکان دي دوی باندی جبر په کار نه
دی زما داخیال دی چه ددوی د طبیعت د خوراک انتظام وکړو ما ورته ووې:
داخو غنی توقه کوله او زما داخیال دی چه هغه به هیڅ رنګ دي خبرې ته تیار
نه شی ګاندهی جی په هغه ډیر کوشش وکړو خو کامیاب نه شو دغه شان په
مهرتاجه باندی هم ډیر وسونه کړی وو خو هغې هم داخیزونه نه ووملي ډیر
خوشحاله شوم چه دوی کښنی دومره سرپیتوب وچه دبل د جذبا تو خیال بي ساتلو
د سیګاون کلي چه سیواګرام ته نژدی دی وو د صفایي د پاره ګاندهي جي پو تنخوا-
دار ټچي مقرر کړی و زه ورسره متفق نه وم. زما رایه داوه چه دکلو خلک کوله

تربیت ورکول په کار دی چه هغوی د کلی صفایي خپل فرض وګڼی او خپله یې کوی بله دا چه د هندوستان په لکونو کلی دي که د دوه ره کلو د صفایي د پاره مونږ یو سړی مقرر کړو نو د هغو د پاره کوورونه روپۍ په کار دي. یو حل دا شي وشوه چه د سیکاون د غه سړی زیاته تنخواه غوښتله دوی ورله تنخوا زیاته کړې هم وه مګر داخل یې زیاته نه کړه هغه کار پرېښودو او لاړو. خبره داغې چه د صفایي هغه سړی تښتېدلی دی. نوګاندهي جي ووی چه راځئ چه مونږ ورله لاړ شو مونږ د صفایي سامان واخیستو او ور روان شو.

په دې ورځو کښې د بهار د صوبې د زلزلې ځینې علاقې د جوړولو په سلسله کښې د سویزرلینډ یو لوی انجنیر راغلی وا و دلته یې پېښې و دالې هم چو یتی وه ورته می ووې چه هلکه تیا ډېره هغه وې د څه د پاره ماوې د صفایي د پاره هغه په ترڅ شو چه زه خود خلکو غول غور ځولی نه شم هغه مو پرېښوو مونږ ټول روان شو چه کلی ته ورسېدو نو جوړه جوړه شو هغه انجنیر ډېرېنه سړی وې ونه ماسره یو شان و زه او هغه جوړه شو د ګاندهي جي جوړه نه و هغه موخپل جبعدار کړو او صفایي مو شروع کړه خو مونږ ته داسې معلومه شوه چه دا د کلی خلک زمونږ په صفایي خوشحاله نه دي کوم ځایونه چه به مونږ پاک کړل نو زمونږ دلیری کیل وسره سنځې هلکان او جنکی به راتلل او هغه به یې بیا ناولی کول هغه انجنیر راته ووې چه معلومېږي چه به دې خلکو کښې زمونږ د دې خدمت د احساس ماده نشته معلومېږي چه زمونږ خلاف مظاهره کوي ما او هغه داخبره ډېره محسوسه کړه چه مهاتماجي غوندې سړی یو کلی ته د صفایي د پاره ځي

او د خلکو د احال دی. زه به دی خبره د پر خند وم چه کله واپس راغلو نو یو مګکوی
ماله قسلی را اکوه چه خلکو او باسی چه ناسوبي په کانو نه یُ ویشتی او صفایی ته یی
پرېښودوئ. میرا جمن او کنو (کنوډ کا نډهي جی نمسي و او میرا جمن دیو انګریز
امیرالبحر (Admiral) سلیی لور وه چه خان یي د هندوستان د غریب ولس
خدمت د پاره ګاندهی جی ته وقف کړی و) هغوی هم دوار دي سره نزدی یو کلي
ته د صفایی د پاره تللی وو نو خلکو صفایی ته نه پرېښوول او د دوی صفایی کوله نو د
کلی خلکو ورو اولو به په کانو وولیشتل او بله عجیبه خبره خولا داده چه مونږ خپل خای
ته راغلو او زمونږ هغه خدمتګار چه سیوا ګرام کښی یي خدمت کولو خبر شو چه مونږ
د هغوی کلی له صفایی ته تلي وو هغوی زمونږ کار پرېښود او وتښتېد ل د هغوی په
خیال او عقیده مونږ اچوت شو، پلید شو او د پلید و خلکو کار کول د هغوی په خیال
ګناه وه. مونږ به سیوا ګرام کښی د او بو د پاره د پر ښکلی کوهي ویستلی و او د هغه
د پر ېي ښی اوبه وې او هغه اوبه موڅکلی هغوی به هم د دې او بو نه خپل منګی ډکول
هغوی دا کوهي پرېښود او بل مونږ ته نزدی یو شا ړ کوهي وچه اوبه یي د څکلو نه وی
د هغه نه به یي اوبه ډکولی او څکلی. کومو خلکو چه به د لته زمونږ کار کولو نو دا توول
په هندوانو کښی نیچ ذات د چه ورته اچوت وایي او نور هندوان د دوی خان ته
نزدی نه پرېږ دی او به چینو خایونو کښی چه په چا د دوی سوړي وشی نو هغه پلید ګڼی.

## د کانګرس وزارتونه:

د هندوستان په اکثرو صوبو کښی کانګرس الیکشن وګټه او د دوی اکثریت
شو. په صوبه سرحد کښی د حکومت د ډیر مخالفت او بی ایمانۍ سره هم په خلو پښتو کښی

نولس ممبران خدایي خدمتګار کامیاب شول، حکومت د خدایي خدمتګارانو خلاف تول خپل اثر ورسوخ استعمال کړی و او د خدایي خدمتګارانو د مقابلې د پاره یې د صوبې خانان، ملکان، وکیلان یو کړل د دوی د عمړولو د دښمنیو جوړه یې وکړه لیکن بیا هم زه داویلی شم چه خدایي خدمتګار و به الیکشن ګټلی وای او اکثریت کښې به راغلی وای که دهغوی نه خپینې غلطۍ نه وای شوی او د پرو جنبوا د خود غرضونې کاراخیستنې نه وای او اصولي خلک یې منتخب کړي وای، سره د دې هم اسمبلۍ کښې د دوی مضبوطه ډله وه د دوی مقابله کښې بله ډله د وصره لویه نه وه بیا هم حکومت بې ایمانی وکړه او د قانون او قاعدې برخلاف سرجارج کنګم د خدایي خدمتګارو په خای صاحبزاده عبدالقیوم ته د وزارت جوړولو دعوت ورکړو او هغه حکومت جوړ کړو دهغه او د سره ډله هم نه وه، دې پخپله حلف کښې فیل شوی و، عبدالعزیزخان ترې سیټ ګټلی و دې دهزارې نه کامیاب شوی و. هغه د پیر ټکیانو سره واوچه اسمبلی کښې د پیر ټکیانو خومره سره وو هغوی مجبوراً هغه سره ملګری شول. لیکن بیا هم دا وزارت د شپږ و میاشتو نه زیات و نه چلیدی شو او د حکومت د د پرو کوششونو باوجود مات شو او د خدایي خدمتګارو حکومت جوړ شو.

د کانګرس اول کښې چه په کوم صوبو کښې اکثریت ولو د وزارت جوړولو نه انکار کړي و لکه چه ګاندهي جي حکومت ته یو شرط وړاندې کړي و هغه دا چه ګورنران به د وزارت په کارونو کښې غیر ضروري مداخلت نه کوي. د ۱۹۳۵ء کال ایکټ تول اختیارات ګورنرانو له ورکړي وو او هغوی د قانون له مخه د وزارت په لویو او وړو کارونو کښې

کښې مداخلت کولی شو. حکومت د ګاندهي جي دغه شرط ونه منلو ولې چه هغوی خو د اوږدو پېښو جوړه کړې وه. پېرنګیان دې ته تیار نه وو چه هندوستان ته دې طاقت او اختیار ورکړې. اول کښې کانګرس د وزارتونو جوړولو نه انکار وکړو. حکومت د خپلو خلکو وزارتونه جوړ کړل خو دغه چېرته چلېدې شول. د ممبرانو اکثریت ورسره نه وو. د خولږه موده وروسته د کانګرس په خېنو غړو کښې د دې شرط برخلاف ګنګوسې شروع شو او راجګوپال اچاریه د دې خبرې ته تیار نه شو چه مونږ له وزارتونه اخیستل په کار نه دی. مونږه پټیل کښې وو داد سمبلړ، په غاړه یو کلی دی. ګجرات کښې ګاندهي جي راجګوپال اچاریه راوغوښتو. سردار پټیل هم دلته وو. ګاندهي جي د دوه شپې او ورځې هغوی سره بحث وکړو. خو د هغه خیال بې بدل نه کړې شو. هغوی وې چه مونږ له غیر مشروط طور وزارتونه اخیستل په کار دي او د هغه دا هم خیال وو چه دا خو مونږ موده مونږ وزارت نه دی اخیستی نو د قام او ملک تاوان شوی دی. راجګوپال رخصت شو او مونږ ټول د راجاجي په دې کار خفه وو. لیکن د خدای فضل و حکومت د ګاندهي جي شرطونه منظور کړو. او د سنده، پنجاب او بنګال نه علاوه د هندوستان په ټولو صوبو کښې د کانګرس وزارتونه جوړ شول.

مونږ د سیګاوان د کلي نه لږ بهرته او سېد و او د آب و هوا په لحاظ دغه ځای ډېر ښه وو خو د برسات په زمانه کښې به ډېر خېټې و تکلیف ورلاره هم کچه وه او ما لدای ی ډېره وه. اکثر به ډېری ښمې چېرې وې او خادو وا و بنیاد موته به ډېر تکلیف و او بل خوا نه به هلته په پېښو او ډېرو کښې ډېر کانې وو چه د الاړې پړی جوړېدی شوی خو د بې اتفاقي او بې تنظیمې په وجه دا کار پاتې و. ګاندهي جي دا کار شروع کړو او په

یو کال کښې مویوه لاده بچه کړه. دلته ماشي ډېر وو خو ملیریا کمه وه. یوځل په ګاندهي جي
د ملیریا سخته حمله وشوه هغه دارو هم نه خوړل، څه وخت چه هغه لې هوښه شو نو
مونږ ورله سول سرجن راوغوښتو هغه دا تجویز وکړو چه زه دی هسپتال له ورم
مګر هسپتال خو پرېږد ه هغه دارو نه خوړل په دې وجه د هسپتال نیاتی شو مونږ
ټولو ورته په اتفاق ووې او اخر مونږ دې راضی کړو خکه چه مونږ سره ډېر غم و او
د هغه ناجوړتیا مونږ ټول وارخطا کړي وو. مونږ ټول ورسره هسپتال له لاړو په
څو ورځو کښې د هغه صحت ښه شو. هسپتال له لوه ورځ یو سړی راغی روه دی ماران
ورسره وو د ګاندهي جي په مخ کښې لې پیټار کښېښوده او سړی تری اوچت کړه هغه
کښې قسم قسم ماران وو. ګاندهي جي ته لي نږدې کوال مګر ما تری منع کړو چه په دې
څیز څه اتبار دی بیا د هغه سړی خواهش وچه زه د اماران د تبرک د پاره د بابا
په غاړه کښې اچوم. ګاندهي جي خندل خو ما منع کړو هغه ورې. د اما دم کړې دی د
نقصان لي ذمه وار یم، ما ورته ووې که څه نقصان وشو نو زه به ستا ذمه وار یې څه کړم ښه
دا د چه دا کار ونه کړې او هغه می دی کار ته پری نه ښوده. بل ځای بیا په سیوا ګرام کښې
زمونږ بل ملګری ناجوړه شو د هغه محرقه تبه شوه څه ورځی پس میرابهن هم ناجوړه شوه
او محرقه لي شوه هغې ماته ووې چه معلومیږی دا چه زما هم محرقه (تبکی) ده مونږ سره
د هغې زیات فکر وخکه چه پیرنګیان اکثر د محرقی نه مري او دې ته مونږ نوې ما ددوی
دوا او ډېر خدمت کاوه خو ددې به راسره ډېر فکر و او د میرابهن به می زیات خدمت کاوه
په دغه ورځو کښې د ګهاتما جي یو دوست په بنارس کښې یوه عبادتګاه جوړه کړې
وه چه په هغې کښې د هر مذهب خلګو ته اجازه وه چه په کومه طریقه هغوی د خدای عبادت

کوی کولی شی، دهغی دافتتاح دمراسمو د پاره مهاتماجی اوزه بنارس ته لاړو، مهرتاجه هم ماسره وه او دهندوستان دمختلفو علاقو نه د پرنارینه او زنانه دغه افتتاح د پاره راغونډ شوی وو. ددی رسمونو دا اکیدو په وروځ د هرمذهب او ملت خلک موجود وو په دغه عبادتخانه کښی دهرمذهب خلکو خپلو خپلو طریقو د خپلو مذهبی کتابونو تلاوت او دعاگانی وکړی. زما په خیال د پیرنګیانو د راتلو نه پس دهندوستان په تاریخ کښی دا اوومبی ځل وچه دهرمذهب پیشوایان په ډیره مینه او محبت سره یو ځای راغونډ شوی وو او عبادت یی کولو.

بنارس، ډیلی، گجرات، کاټیاواړ:

مونږ د بنارس نه ډیلی ته راغلو، بیا د گجرات کاټیاواړ ته لاړو، په کاټیاواړ کښی ما د مهاتماجی کور او خپل خپلوان ولیدل هغوی ډیرښه خلک وو او د گاندهي جي سره یی ډیر مینه محبت د، یوه شپه موهلته وکړه، بیا گجرات ته راغلو او احمداباد کښی د دیاپیټ کښی چه دهندوانو یو ډیر لوی قومی کالج دی ډیره شوو دیاپیټ په رښتیا یو قومی کالج دی ولی چه ددی شاگردان چه د تعلیم نه فارغ شی نو هغوی کلونه ځی او د خپل قوم او ملک خدمت کوي. دگجرات دمیونیسپلیټی دخلکو د طرفه سپاسنامه را کړی شوه دا ډیرښه خلک دي مهاتماجی سره یی ډیر محبت دی یوازی محبت نه دی دازادی په جنګ کښی هم دهیچا نه وروسته نه وو، خو وروځی پس سیواگرام له راغلو زه چه څومره هندوستان کښی گرځیدم نو ما به لیدل چه هره صوبه کښی په سیاسی اقتصادی او تعلیمی لحاظ بلکه په هر لحاظ مسلمانان دهندوانو نه ډیر وروسته و څومره چه به ما په دی خبرو فکر کوو نو دي نتیجی ته ورسیدم چه یوازی گاندهي جي نه دی

جواهرلال نه دی مالویه نه دی، پټیل نه دی، راجندر پرشاد نه دی، سوباش، را-
جګوپال اچاریه نه دی، بلکه په سوونو داسی خلک دي چه ډاکټران، انجنیران، تعلیمیافته
خلک مدرسی جوړی کړی دي او لګیا دی، دخپل قام او ملک خدمت کوي. ډیر خلک
خان خان له په کلو کښی دیره دي خلک یې کلونه نه پېژني او د دوی په لاره کښی ځنځیران
اچوی مګر دغی هغوی په صبر استقلال دخپل قام خدمت کوي او هیڅ قوت هغوی
دخلکو دخدمت د لاری نه اړولی نه شی دهغو خلکو لوی تعریف دا دی چه ژوندلی ډیر ساده
او په ډیرلږ څیز باندی ګذاره کوله. په وارده کښی یو ځل دوا ردی دګلو د کارکنانو جلسه وه
هغوی ټول راغونډ شوی وو زه هم د (ونوبا) هغه نوی اشرم کتوله تلی وم دهغو کار-
کنانو په جلسه کښی شریک شوم ډیر خوار او کمزوری وو زما زړه پری وسو جاجوجي چه
ددي تنظیم صدر وه او نیتو باجي یې سکرټری و ورته می ووی چه دا خو د قوم ملکیت دی
غریبانانو دخوراک څه انتظام په کار دی او کمزوری سړی دقوم او ملک خدمت کولی نه شی
جاجوجي ووی چه تاسره زما پوره اتفاق دی او س زمونږ جلسه کښی دا تجویز وړاندی
کړم. جلسه کښی چه ما دا تجویز وړاندی کړو چه ددوی تنخواه دی زیاته شی، نو دهغوی د
کارکنانو نه یو سړی پاڅید وهغه ووئیل چه زمونږ دا ملک ډیر غریب دی اول خو مزدګر
دی نشته او چه مزدوری دي نو دړی آنی دسړی وی او لس پیسی د ښځی وی او مونږ
خو بیا هم څلور آنی اخلو زمونږ پټیل داشان ډوډی خوری لکه مونږ یې چه خورو د
تنخواه زیاتولو ضرورت نشته ولی چه دا خلک به وایی چه مونږ خو د باجبری وچه ډوډی
نه بیا مومو او دا زمونږ خدمتګار زیړی غوړی خوری.

ملبه داچه دهندوانو امیران، سوداګر اکثریت دهر یو قومی تحریک سره په زرګونو

لکونو روپو امداد کوي بل طرف ته مسلمانان دي تاسو وګورئ چه هغوی کښې دغه مت
څوک دی د هغوی تعلیمیافته امیران، سوداګران، وکیلان دي چه روپۍ ورکول خو پرېږده
د قوم او ملک د ترقۍ څه خیال هم په زړه کښې نه لري دغه وجه ده چه مسلمانان د زوال
سره مخامخ دي. دغه وجه ده چه په هندوستان کښې هندوان ګڼتېرې او مسلما-
نان پریوزي د هندوستان د مسلمانانو را ته دا تجربه وشوه چه کوم سړي د پیرنګیانو
خیرخواه وي، هغه د دوی لیډر وي د اسې حالاتو کښې به څنګه ترقي وکړي.

## د هندوستان د مسلمانانو د پاره فکر:

زه چه په ټول هندوستان کښې ګرځېدلی یم نو مسلمانانو کښې جذبه شته خو غمخور
نشته او خیرخواه نشته. سیوا ګرام ته به کله ذاکرحسین صاحب راتللو ده سره زما
ډېر تعلق و دی د جامعهٔ ملي اسلامیه دهلي پرنسیپل و ماده ته هندوستان کښې د
ګرځېدلو او تجیل ذهن د حالاتو او واقعاتو اثر په تفصیل سره بیان کړو او ورته مې د وې
چه دلته په مسلمانانو کښې رښتیني خدمتګار پیدا شوی نه دی ترقي کولی نه شي په مسلمانانو
کښې هم په سره سینه تعمیري کارکول په کار دي او د هندوانو په شان مسلمانانو له په کار
دي چه ځای په ځای کارکنان پیدا کړي چه د دوی د ترقۍ د پاره کار وکړي او مرکزونه
جوړ کړي. زه دې نتیجې ته رسېدلی یم چه په چوف او کوف باندې قومونه ابادېږي نه
کار په کار دی! او نه د جلسو د تقریرونو په واسطه په هغوی کښې ژوند پیدا کېدې شي نو
ما اراده کړه ده چه د مسلمانانو د پاره کار وکړم او د دوی له د اصلاح د پاره مرکزونه قایم
کړم او چه تو کومي ما ته خپلې صوبې ته د تللو اجازت نه دی شوی د دوی څه خدمت وکړم مګر
ما سره د دی خبرې ډېر فکر دی چه که چیرې ما ته د خپلې صوبې د تللو اجازت وشو نو د دې

خدمت به بیا څوک کوی؟ ځکه چه زه خو بیا دلته پاتی کیدی نه شم او په ما د خپلو خلکو د خدمت کولو حق دی نو که چیری په دی کښی زما سره ستاسو اتفاق وی او د مسلمانانو دا کار فایده مند گڼئ نو بیا تاسو زما د ملگرتیا د پاره سړی پیدا کړئ چه هغوی دې کار ته د خدای د پاره ملا وتړی او که چیری زه لاړ شم نو دوی دلته ناست وی او کوم بوټی چه مونږ کرلی دی هغه له اوبه ورکوی او وچیدو ته یې پری نږدی. بل سوال د پیسو دی مسلمانان رسمی خیراتونه خو ډیر کوی مگر د خدای د مخلوق د ابادی د پاره یوی پیسی ورکولو ته تیار نه دي د غه اخبره چه په دوی کښی نیک او د ابادی تحریک چلیدل گران دی.

زما خو دا خیال وچه دا کار دې د سنده د صوبې نه شروع شی ځکه چه هلته د مسلمانانو ابادی ډیره ده او په ټول هندوستان کښی د سنده خلک په هر لحاظ روسته پاتی دی زمونږ د بل ملگری دا رایه وه چه د بنگال نه دی بیا شروع شی او د سهارنپور هغه پروفیسر صاحب دا خبره وکړه چه که چیری تاسو د دی کار ابتدا د سهارنپور نه وکړه نو ډیر زر به ترقی وکړی او ډیر زر به ټول هندوستان کښی خور شی ځکه چه د یوپی مسلمانان د سنده او بنگال د مسلمانانو نه زیات پوه او مترقی دي او بله دا چه سهارنپور کښی ډیری مذهبی مدرسی دی چه هغو کښی ډیر طالبان د سنده او بنگال دي او د هندوستان د هری صوبې خلک پکښی شته دا د هندوستان د مسلمانانو تعلیمی مرکز دی او که دا مرکز د غلته جوړ شی نو د دغو طالبانو نه به سنده او بنگال کښی او نورو صوبو کښی ډیر کار روان شی مونږ ټولو په د غه ځای اتفاق وکړو چه کار به د د غه ځایه شروع کوو او منتظر وو چه څه وخت به هغه پوخوسړی زما سره پیدا شی.

خوورځی ما په سیوا آکرام کښی انتظار وکړو چه څه جواب راشی نو بیا زه جواهر لال

سره یو . پی ته لاړم . بابو راجندر پرشاد ماته بهار ته د تللو او دوري کولو وعده اخیستی وه نو زه په اله اباد کښې چه پروفیسر عبد الباری صاحب راغی زه او هغه دواړه پټنی ته لاړو او په صداقت اشرم کښې دیره شو هغه اشرم د ګنګا سیند په غاړه واو دپر د مزی اشرم دا اشرم د بهار د صوبې یو مسلمان بیرسټر مظهر الحق جوړ کړې و هغه د کانګرس د جماعت په معامله کښې هم د حکومت برخلاف د مسلمانانو سرسټر کړي وه افسوس چه دهغه نه وروسته په مسلمانانو کښې داسې څوک نه وو چه دغه اشرم یې اباد ساتلې وای او په دې وجه د هغه وراثت کانګرس ته پاتې شو اونن ورځې دغه ځای د بهار صوبې د بهار کانګرس کمیټۍ دفتر دی.

مونږ د دورې د پاره څه پروګرام جوړ وو چه د پنجاب میل د اکسیډنټ خبر راغی او د خبر په وسره سم د کانګرس کارکنان د مدد د پاره هلته ورسېدل. په دې کښې ډیر خلک مړه شوي وو او د مړو پیژندل نه کېدل چه دا هندو که مسلمان دی چه په چا به د هندو شک کېدی شو نو هغه به یې سوزوو او چه په چا به د مسلمان شبهه وه نو هغه به یې ښخ کړو او د مړو نه علاوه ډیر خلک زخمیان هم وو او هغوی یې د پټنې لوی هسپتال له د او رل خدای دې چا ته نه ښیي ، د مصیبت یو عجیبه منظر و څو ورځې پس مونږ د ځلې دورې پروګرام جوړ کړ او کافي ورځې مو د بهار په صوبه کښې دوره وکړه ، د بهار په صوبه کښې د شیرشاه سورې قبر دی چه مونږ هلته جلسه وکړه نو د دعا د پاره د هغه زیارت له ورغلم د هغه قبر ساده قسم جوړ دی او ښکلې ګنبد دی او چار چاپیره تری او به دي داو بو تالاب ډیر ښکلی دی لوی شیرشاه ته می د زړه د اخلاصه دعا وکړه خلکه چه هغه د پښتنو ګټندی سیاستدان او ښکیالی پښتون وچه مغلو له یې ماتې ورکړې وه او د مغلو نه یې د پښتنو هغه

حکومت دوباره اخیستی او بیائي حکومت په ټول هندوستان جوړ کړي او د کلکتې نه تر پېښوره
پورې سرې ده جوړه کړې دی . دخپل حکومت د ټینګولو د پاره یې د بهار په صوبه کښې د پرو
پېښتنو له ډېر جاګیرونه ورکړي وو مونږ دهغو پښتنو اولاد او جاګیرونه هم ولیدل . یو کس
دوه ښیلانه کوښې هم وو مګر دهغوی اوس هغه خرندنشته خلکو دخپل پلار نیکه ژبه هېره
کړې ده افسوس چه په پښتنو کښې دا کمزوری شته چه خپله ژبه هېره کړي . یو پي کښې هم
ډېر پښتانه دي دهغوی هم دغه حال دی ذاکر حسین صاحب افریدی پښتون دی د ژبې
په هېرېدو دخپلو نه سړی پردی شي . دبهار په صوبه کښې پښتنو سره ډېر جایدادونه وو خو دبلو
عملو په وجه تري ټول لاړل اونن ډېر خراب ژوند تېروي .

دبهار د دورې نه وروسته زه بېرته سیوا ګرام ته راغلم د ډېرې مودې نه د سنده د
کانګرس ممبران ماپسې وو او دایي خواهش وچه زه دي سنده ته لاړ شم او دهغه ځای په
مسلمانانو کښې خه کار وکړم زما هم خوښه وه ولې چه د سنده مسلمانان ډېر وروسته پاتې
شوي دي او مظلومان دي او مونږ خدائي خدمتګار د خود مظلومانو مګری یو او مونږ خپل خدای
سره داوعده هم کړې ده نوزه د سیوا ګرام نه سنده له لاړم . زما خو داخیال وچه سنده کښې به
کافي وخت تېروم . سنده ته چه ورسېدم نوما د کانګرس دوو کړانو په مشوره دخپلې دورې یو
لوی پروګرام جوړ کړو او دحیدر اباد نه مو شروع کړو مسلم لیګو خو زما د دورې دخرابولو د پاره د
مظاهرت پروګرام جوړ کړی و خو دسنده وزیر اعلی چه د ډېر قوم پرست او شریف انسان و خبر شواو
مسلم لیګو ته ي ووې چه عبدالغفار خان دلته زمونږ د قوم خدمت له راغلی دی په کاردی چه مونږ
ټول ورسره مدد وکړو او که مدد نه شو کولی نو مظاهرت خو د شرم خبره ده . زه خبر شوی یم چه تاسو
د مظاهرت څه خیال دی خو که دده په دوره کښې مو مظاهرت وکړو نو ډېر بد به درسره وکړم . دده په

جه مسلم لیګ په قلارشو او ماخپله دوره په اطمینان سره وکړه . په دغو ورځو کښې د سنده وزیر
لي خان بهادر الله بخش سومرو و دده زما سره ډېر مینه وه ، په حیدراباد کښې مو جلسې کړې
د ډېر هندوانو او مسلمانانو سره مو خبرې اترې وشوې ، ددې ځای نه کراچۍ ته لاړو ، په
اچي کښې مو کافي ورځې تېرې کړې او ډېر کار مو وکړو ، د کراچۍ نه سکر ته لاړو او د سکر نه
یک داباد له والغلو ولی چه دا خیال مو پیدا شو چه په بلوچستان کښې کار کول زیات ضروري دي.

## د بلوچستان دوره :

د ډېرې مودې نه زمونږ د بلوچستان د دوړو دا خواهش وو چه زه دې بلوچستان
ته راشم ، ما ډېر ځله کوشش وکړو خو حکومت نه پرېښودم ، په دغه ورځو کښې عبد الصمد خان -
کزی چه د بلوچستان د پښتنو ښتینی خدمتګار او رهنما دی په ما زور ولګو وچه ته
چستان ته لاړ شه ، په دغه کښې می الله بخش سره ملاقات وشو د هندوستان په سیاست
د ډېرې خبرې وکړې . هغه د پاکستان د جوړېدو په حق کښې نه وو ځکه چه د پنجابیانو
ز ذره مترې وو او پنجابیانو سره یو ځای کېدو ته تیار نه وو ، هغه دې خبرې ته تیار وو
کیچری سنده ، بلوچستان ، سرحد او کشمیر یو ځای شوو نو دا به ډېره ښه وي ، الله بخش
ومرو د سیاسی مخالفت په وجه د مسلم لیګ یو لیډر محمد ایوب کهوړو بیا وروسته قتل کړو .

زه په خیریت سره کوټې ته ورسېدم ، څه وخت چه زمونږ او د ګاډی د بلوچستان
سرحد کښې داخل شوو نو تر کوټې پورې په لاره کښې د والیس کیدو ویره وه ځکه چه زه یې
ځله دا واپس کړې وم ، په هر سټیشن چه به می د پولیس افسر ولیده نو دا خیال به می پیدا
و چه د جوړې حکم یې راوړې دی . زه په خیریت کوټې ته ورسېدم ، زما دا خیال دی چه
ومت جناح صاحب ته چه د هغه تعلق مسلم لیګ سره وو اجازت ورکړی وو نو ما ته یې هم اجازت

راکړه ، ولی چه زما تعلق کانګرس سره وو.

عبدالصمد خان اڅکزی سټیشن ته راغلی و، په سټیشن کښی نور هم ډیر هندوان ، مسلمانان راغلی وو

ما ئی خوږو ځی کوټه کښی تیری کړی او یاد کوټی نه فورټ سنډیمن ، قلعه عبدالله ، هنه باغ ، ګلستان ، چمن

لورالائی او د بلوچستان د نورو ځایونو دوره می وکړه ، ډیره د خوشحالی او کامیابه دوره وه او زړه می په دی

هم ډیر خوشحاله شو چه پښتانه او بلوڅ را ویښ شوي دی هغوی سره می جلسو او مجلسو

کښی د پښتنو او بلوڅو د ورولی خبری وکړي او پل ی کښی ما سره ډاکټر و پښتنو او بلوڅو

اتفاق وو ، ځینو پښتنو زمونږ د پښېنور د خلکو نه شکایت کولو او ډیر ګیله من وو پو ښتنی نه

ورو ستو ماته معلومه شوه چه د دی وجه پښېنوری حاکمان وو یعنی د پښېنور هغه کسان

چه د غلته د پیرنګیانو نوکران وو او پیرنګیانو د چل کار د چلولو لپاره د غلته مقرر کړی

دی افسرانو د خپلو ورونو سره شریفانه سلوک نه وو کړی بلکه د سړیتوب نه پریوتی ، د فرعونیت

بد ترین سلوک کوو او د هغوی په زړه کښی د ټولو پښېنوروڼه نفرت پیدا کړی و ما هغوی ته

تسلی ورکوړه او پوهه می کړه چه دیو څو کسانو په ګناه تا څو د پښېنور ټول پښتانه مه نیسئ ا

بخدای دی نو را پښتانه د اسی بی ننګه نه کړی لکه دا چه دی حکومت زمونږ نه دی بلکه

پیرنګیانو دی ، بله دا چه په دوی کښی د دې حاکمانو اکثریت د هغه خانانو ، میا ګانو ا

ملایانو وو چه د انګریز د خوشحاله ولو لپاره دا دلته چه تاسو سره کوم سلوک کړی دی او

یی کوی د ایوازی تاسو سره نه کوی بلکه مونږ سره یی هم هلته په هغه خپله صوبه کښی کوی

ډیره عجیبه خبره وه چه دلته د دی پښتنو سرکاری افسرانو د پنجابیانو افسرانو سره د

چه په شریکه یی د بلوچستان پښتانه او بلوڅ خوړل . د بلوچستان د دوری نه وروسته

مونږ جیکب آباد ته راغلو ، په جیکب آباد کښی ډاکټر جیت رام چه د کانګرس صدر

محمد امین کوسوهم مونږ سره یوځای شو په جیکب اباد کښې د هندوانو او مسلمانانو
وه لویه جلسه وشوه، په دې جلسه کښې د سیول او پولیس دافسرانو دا اراده وه چه څه
ړبړې وکړې خو د وزیراعظم الله بخش په مداخلت څه کړبړې ونه شوه، مونږ د
بلوچستان د هغې نتولې علاقې دوره وکړه چه په بریتش بلوچستان کښې د پښتنو اکثریت
اباد کښې دی، زما او د عبدالصمدخان اڅکزي دا رایه وه چه د بلوچستان هغې برخې ته هم
ورشو چه بلوڅ په کښې اباد دي، د ډاکټر چیت رام او محمد امین کوسو هم دا رائې وه
په مونږ د بلوڅو د هغې علاقې ته لاړه شو، مونږ هلته لاړو خلک نتول په شوق او په مینه
راغونډ شوي وو چې د جلسې وخت راغې نو زما دا اراده وه چه په هغه جماعت کښې جلسه
وکړو چه د بازار په سر کښې وو او د نورو ملکرو دا خیال وو چه هغه ډاک کښې دې وکړو چه
بازار نه هغه طرف ته وو هلته د جلسې انتظام وشو، جلسه چه شروع شوه نو د بلوڅو یو
پولیس راغې، د جلسې په خوا کښې تیرشو او جلسې ته یې سنه وکتل د هغه نه لږ ساعت
پس د بلوڅو یو نتولې تیرونه په لاس جلسې ته راکښېشول او بغیر د تپوس نه یې
په خلکو را باندې کزار چه سرې ته بریې د هن ورکوو د علی علی چغې به یې ورسره وهلې
زمونږ نو سرو بې د سرهې په بل ځای کوزار نه کوو په یو ساعت کښې میدان خالي
شو زما یوې خواته ډاکټر چیت رام او بلې خواته محمد امین کوسو په کوسونا ست وو
وخت چه د جلسې نتول خلک وتښتېدل زه یوازې پاتې شوم نو زمانه چاپېر
نتول سره ورځ یې را باندې جوړه کړه او ډاکوشش یې کوه چه زه هم وتښتېم خو زه ونه
تښتېدم. په هغه ورځ ما څپل سره خرنیلی د او په کرسۍ سره تورنا ست وم زه پوهه
وم چه سنه کوزار به اخلي خو تښتېدم نه کتل مې چه دوې څه کوي زمانه سنې طرفته

محمد امین کوسو و هغه یې په سر وهلی و او بې هوښه شو او د کرسۍ نه را پرېوت
بل طرف ته ډاکټر چیت رام و په هغه یې هم سرمات کړې و هغه هم د کرسۍ نه په خاو
کښې را پرېوتی وزمانه چا پېره د پر وګړ ځېدل چه دی به هم د نور و خلکو په شان
وتښتی پو هه شو چه دی نه تښتی او مونږ خپل کار د وکړو نو ځپله وتښتېدل زه پا
چه ومې کتل نو د کوسو او ډاکټر د سر نه وینو دا رې وهلی بل څوک نه وو عجیبه حالت
معلومېده چه د ډاکټر چیت رام او کوسو په باره کښې ورته خاص هدایت شوی
او زما په باره کښې هم ورته هدایت شوی و ، بیا ورو ستهٔ معلومه شوه چه د غه بلوڅ
رئیس د دوی د پر دوست و او دوی پری احسانونه کړی وو مونږ سیول سرجن
پسی پو سړی په موټر کښې ولیږ لو دوی مو یوړل او چه کوم ځای مونږ د پر دوو هغ
مو کتونه کښې واچول وینه یې نه ودرېدله حالت یې خرابېدلو او عبد الصمد خا
او زمونږ نور ملګری هم خوږ دو خو د ومره نه د مقامی خلکو نه معلومه شوه چه دوی د د
قصی نه خبر و او په تحصیل کښې را پورت هم کړې د ملکو سرکاری افسرانو د دې کار مخ
نه نیوله حقیقت خو دا و چه دا ټول کار د سرکار په اشاره شوی و نوا فسرانو یې مخ
مخه بند وله یوازې دا ځای نه په ټول بلوچستان کښې حکومت کوشش کړی و د ج
زمونږ جلسو کښې ګړبړي پیدا کړی ولی په پښتنو کښې د ومره پښتو لا یاتی وه چه
د خپل مېلمه عزت وکړي ماز ګېر د هغه علاقی پولټیکل افسر چه پوځی کپتان و او هغ
و او دا ټوله قصه هغه کړې وه . خپل اسسټنټ سره ماته راغی او د دې واقعی تپوس
یې دا نه وکړو او دا ته یې ووی که چیری تا سو په دی خلکو مقدمه چلول غواړئ د عوی
پری کوئ نو زه به د هغی انتظام وکړم د غه اسسټنټ د پښتون د علاقی د صوابۍ تحصیل

د دوبیانو. د کلي وو ما دوی ته په ځواب کښې ووی چه مونږ. خدایي خدمتګار د چانه
بدل نه اخلو، مونږ. مظلومان یو، زمونږ. بدل خدای پاک اخلی هغوی چه ما سره خبری
کولی نو د حکومت د طاقت باوجود ملامته او خرغوندی ښکاریدل ښه ساعت ما سره
و بیا رخصت شو. تیاره ما ښام شو مسول سرجن داورسید هغه وخت زمونږ د
زخمیانو بد حال و او د محمد امین کوسو حالت ډیر خراب و، د زاتلو سره ډاکټر د هغوی
د وینو بندولو کوشش وکړو او مونږ. ته یې ووئیل چه د دوی حالت ډیر خراب دی د دوی
د پاره ځه انتظام کیدې نه شی ښه به داوی چه د جیکب اباد هسپتال ته یې ورسوو مونږ.
هغوی په موټرونو کښې واچول او تیر ما ښختن جیکب اباد ته ورسیدو د سیول سرجن
ډیر ښه سړی وو، ورسید و سره د هغوی لپاره ډیر پوره انتظام وکړو هغوی یې ځانګان
په کمرو کښې واچول پټی یې هم وشول او چه د هغوی انتظام وشو نو بیا مونږ. چیلو
ځایونو ته رخصت شو، چه شپه تیره شوه زه سحار وختی هسپتال ته لاړم سیول سرجن
مونږ. نه مخکښې راغلی و او په ما یې زیری وکړه چه د دوی د بچ کیدو زیات امید پیدا شو
هغه وخت چه دوی د خطره نه بهر شول او حالت یې ښه شو، نو زه جیکب اباد نه حیدراباد ته روان شوم
جیکب اباد ته زما ګاډی سحر وختی ورسیدل کله چه ستیشن ته ورسیدم نو لا تیاره وه او سبا ختلی نه وو
و فیسر ملکانی صاحب د کانګرس د کارکوونکو سره ستیشن ته راغلی و، زه ډیر حیران او
خوشحاله شوم په دې چه خان بهادر الله بخش وزیر اعظم د سنده ستیشن کښې حاضر
او حیران په دې شوم چه زمونږ. لوی خلک داسی خلکو مخی له نه ځی او خوشحاله په دې شوم
چه د ملک او قوم خدمتګار سره دومره مینه لری، زمونږ. لویو خلکو کښې دا ماده نشته په حیدرآباد
کښې د سینده د کمیټئ ممبران راغونډ شوی وو او د عامی جلسئ ورستو زما او د هغوی

ترمینځه خبری اتری وشوی ، دډیری مباحثی نه وروسته هغوی ماته
دوه د مطلب خبری وکړی او راته یی وویل چه کله ته وار دی ته ورسی نو
دا خبره به مهاتما ګاندهی او دورکینګ کمیټی ممبرانو ته وکړی . یوه دا
چه دې صوبه سنده کښی به مسلمانانو کښی دخاکسارانو تحریک
ورځ په ورځ په ترقی کښی دی که چری ددې صوبې په مسلمانانو کښی
د خدایی خدمتګاری تحریک شروع شی نو بنه به دي ځکه چه
خدایی خدمتګاری یو قومی ملی تحریک دی چه په هندوا و مسلمان
کښی د همدردی او ورورولی جذبه پیدا کوی او دا بل تحریک
په مسلمانانو کښی تعصب پیدا کوی ، ما ورته ځواب ورکړو چه دا کار خو
چه دی دا سی خلک کولی شی .

دیو سرړی په زړه کښی چه د خپل قوم او دخپل ملک
محبت او همدردی وی بیا به خلک د هغه خبرو منلو ته تیار وی
که هغه سړی د هر ملت او مذهب وی بله خبره یی دا وکړه چه مونږ
دخلکو لپاره څه کولی نه شو او نه مو د هغوی خدمت ته زمونږ د صوبې
د کانګرس مشران جی رام داس ، دولت رام پریږدی او نه مونږ د هغوی
لپاره په اسمبلی کښی څه کولی شو او نه کلو ته د هغوی د خدمت او پوهه
کولو لپاره تللی شو ، ما تری پوښتنه وکړه چه د دی وجه څه ده هغوی
راته وویل چه د کانګرس د چلولو لپاره جی رام داس ته اکثره چنده او امداد
سرمایه داران ورکوی او هغه سرمایه دار دا نه غواړي چه د عوامو فایدې

دی اسمبلی کښې څه قانون پاس کړی شی او یادی د کانګرس خلک
والو او مزدورانو ته لارښی او هغوی دی پوهه او را ویښ کړی څکه
هغوی په پوهه کښې د سرمایه دارو تاوان دی، د دی له پاره مونږ
له څه کولی نه شو او که وکړو بیا هغوی مونږ سره ملګری کیږی
واره بیا مونږ ته چنده نه راکوی منبه به داوی چه ته زمونږ د امعامله
نګ کمیټیٔ ممبرانو ته ورسوې . زه د حیدر آباد نه واردی ته روان
شوم کله چه ورسیدم نو په داسی وخت چه جی ایم داس
هم حاضر و نو له قصه می د هغه په مخکښی
ورکینګ کمیټیٔ ته وکړه . زه چه دی
وخت کښې وارده
کښې وم (رفیع احمد صاحب)
چه د غه وخت د کانګرس صدر و . ما ته و ویل چه باچاخان
تا سو پښتنو مونږ پسی ولی راخیستی ده
چه سرکار ته مشکلات
پیدا کوئ
ما ورته و ویل چه هغه کومه
داسی خبره ده چه مونږ په ناجایزه تاسو ته تکلیف درکړی
دی نو ده راته وویل چه عنایت الله مشرقی مونږ ګرفتار کړلو
د حکومت نه معافی وغوښته مونږ پرینبود نو ستاسو د سرحد نه

وړپسې پښتانه خاکسار داغلل او تمانچې پرې کېښودې چه مونږ دې وته
تا خو مونږ وشرمولو چه معافي دې وغوښته . هغه وړته منګورشو دی
دادې وغ دی او قسمونه ئې ورته وخوړل چه تحریک نه پرېږدم هغه دې
خلکوله وړې بیا کار شروع کړو نو مونږ بیا ونیولو هغه بیا
معافي غوښتله خلک ترې ویزاره شول او
تحریک کمزورې شو دهر یو تحریک
انحصار په لیډر
وی
چه بهادر او هوښیار وی
نو د تحریک خلک هم زړه ور او پوهه
وی چه لیډر کمزوری او تنګ نظره وی نو د تحریک خلک
هم بې زړه او تنګ نظره وی .



## دخدايي خدمتکار دوهمې وزارت

دخدايي خدمتکار وزارت ،زمونږ وزيران اوپيرنګيان
دجواهرلال دوره ،دپيرنګيانو افسران اوزمونږ
حکومت ،پښتانه راوبينس شول .ډکاندهي جي دوره
وزارتونه اوخدايي خدمتکار



زه اوه کاله پس خپلی صوبی له راغلم. زه په ۱۹۳۱ع کال کښی گرفتار شوی وم او په ۱۹۳۷ کښی راغلم زمونږ په خلکو ډیر زور زیاتی او ظلم شوی ولیکن د هغوی جذبه مړ شوی نه وه، د خلکو د مخونو نه ماته معلومیده چه زړونه یې د جذبات نه ډک دي. زه چه نه وم نو سری جامی هم نه وې حکومت بندی کړی وې. زه چه راغلم نو سری جامی هم راغلی څه وخت چه خدائی خدمتگارو واوریدل چه زه خپلی صوبی ته راورسیدم نو بیا هغوی بندیز ته کتلی نه دی ټولو خپلی سری جامی واغوستی مگر حکومت ورسره چیړ ونکړو هغه ټولی پابندی د خدائی خدمتگارو نه وچتی شوې.

زما په غیر حاضرۍ کښی حکومت چه څومره ظلمونه کولی شول هغه یې د صوبې په خلکو او په تیره بیا په خدائی خدمتگارو کړی وو د خدائی خدمتگارۍ د بربادئ د پاره یې ټولی طریقې استعمال کړې وې خو کامیاب شوی نه و بلکه خدائی خدمتگارۍ زیاته ترقی کړې وه او خلک کښی پوهه او سیاسی شعور پیدا شوی و، څه ورځې پس زه د اسمبلی د ممبرانو سره ایبټ آباد له لاړم چه هلته د اسمبلی د ممبرانو اجلاس و. د هزارې ډیر خلک زما هر کلی له راټول شوی وو، د سترګی مه شی نه پس یوه جلسه وشوه چه په هغې کښی ما تقریر وکړو او د خلکو شکریه می ادا کړه بیا خپلو ځایونو له لاړو، زه د هزارې د خلکو میلمه وم، غنی او ولی هم راغلی وو هغوی زمونږ د پاره ځان له انتظام کړی و. په دی ورځو کښی د مسلم لیګ او خزب اختلاف په مینځ کښی اختلاف و، د صاحبزاده صاحب د وزارت دا کوشش وچه دا وزارت د مات نه شی او خدائی خدمتگارو زور لګولی وچه مات دې شی. صاحبزاده صاحب لوی حبی او لوی لوی ملایان، میاګان راغونډ کړی وو هغوی به هره ورځ جلسی کولی هغ

دروغ او بهتان جوړولو زما برخلاف یې تقریرونه کول حال دا چه زه نه په اسمبلۍ کښې وم او نه د پارټۍ لیډر وم، د هزاره یو لوی بزرګ مولانا محمد اسحاق صاحب مانسهروی چه د خلافت په وخت کښې زما ملګری هم و او په هزاره کښې یې ډېر کار کړی و او خلکو به په جوپان کښې په اوږه اوګرځولو او پېرنګیانو پنډۍ کښې نظربند کړی و. هغه پخپل تقریر کښې زما متعلق دا ووې چه یوه ورځې عبدالغفار خان پنډۍ له راغلی وزه ورسره وم لیکن هغه چیرته یو لمونځ هم ونه کړو او د شپې په جلسه کښې چه څو وخت هندوانو او مسلمانانو هغه ته ګیتا او قرآن پیش کړل هغه قرآن ته ډېر توجه ونه کړه په ښي لاس کښې یې ګیتا واخیسته او ګس لاس کښې یې قرآن واخیستو. زما په باره کښې د مولانا محمد اسحاق صاحب دا ټولې خبرې دروغ وې زه بې شکه جلسې له پنډۍ ته تلی وم لیکن مولانا محمد اسحاق خو یو ساعت د پاره راغلی و او هغه وخت کښې یې ما ته وویلي وو چه زه د دې خلکو په جلسو کښې شرکت نه کوم خو چه دا جلسه ستا د پاره ده او ته خو د اسلام یو مجاهد یې نو ځکه زه بیګا له دې جلسې له ضرور راځم په دې جلسه کښې ما له چا قرآن او ګیتا پیش کړې نه وو بلکه زما په ټول عمر کښې ما ته په جلسه کښې چا قرآن او ګیتا پیش کړې نه دی چه په کوم قوم کښې دا قسم خلک د دین ستنې ګڼلی شي نو هغه دین کله په داسې ستنو ټینګیدلی شي په دغو ورځو کښې پېرنګیانو دا غوښتل چه د خدائي خدمتګارو په مقابله کښې په دې صوبه کښې دې یوه بله ډله هم جوړه شي نو د صاحبزاده صاحب په ذریعه فوراً مسلم لیګ جوړ شو او د دوی جلسې شروع شوې. د دې نه څه موده مخکښې جناح صاحب د مسلم لیګ د جوړولو په خیال صوبه سرحد ته راغلی و خو کامیاب شوی نه و او ډېر مایوسه تلی و ځکه چه په هغه وخت کښې د پېرنګیانو دا پالیسي نه وه او هغوی په صوبه سرحد کښې د هیڅ قسم ګوند جوړېدل نه غوښتل. په دغو جلسو کښې به هم مولانا صاحب محمد اسحاق د کانګرس

بر خلاف او د مسلم لیگ په حق کښې تقریرونه کول. په جلسه کښې تری پوښتنه وکړه چه
مولانا صاحب ستا خوږې پیر کامران د خدایي خدمتګار په ټکټ والی نو تا د هغه د پاس ه
پراپیګنډه کوله او مونږ ته دې وې چه خدایي خدمتګار قومی او پرینه تحریک دی نن څه چل
وشو او کوم دلیل پیدا شو چه خدایي خدمتګار خراب او د هند د انو جماعت شو د غه شان یوان
دی نور هم د پر ملایان وو چه مونږ سره پې قیل ونه تپر کړې وو په دې ز مبنت کښې کامیابه
شوې وو خو د پیسو په از مبنت ناکامیابه شول. ز مونږ یو قوې کارکن مولوی شاکر الله
صاحب د نوښار د خدایي خدمتګار د امید وار میا جعفر شاه مخالف شو او د تاج محمد خان
خان بهادر ملګری شو. څه ورځې پس د عمر زو خان بهادر سعد الله خان مونږ میلمانه
کړو. دی د صاحبزاده صاحب د وزارت په وخت کښې وزیر و. دی دعوت ته لي صاحبزاده
صاحب هم رابللی وو. صاحبزاده صاحب چه راغی نو ما سره یو ځای کښېناستو د راشه د پشه
نه پس لي راسره داخبره شروع کړه چه بچوابه د هندوستان د خلکو سترګی دی خواته وې او
ددی ملک خلکو چه به څه ویل هغوی به هغه کول لیکن افسوس دی چه ددی ملک د خلکو سترګی
اوس هندوستان ته دي او هغوی چه څه وایي دوی هغه کوی ما ورته وې چه صاحبزاده
صاحب چه ته د حالاتو نه پوره خبر نه یې نو ځکه داسی خبری کوې اوس هم هغه حالت دی بدل
شوی نه دی اوس هم د هغو خلکو سترګی دې طرف ته دي اوس هم چه ددی طرف خلک څه
وایي هغوی هغه کوی څه وخت چه سول اینډ ملیټری ګیزټ اخبار دا غلط خبر شایع کړو
چه باچاخان د کانګرس نه جدا کیږی نو دی صاحبزاده صاحب عبد القیوم ما پسی لاهور ته
سره راولیږلو او خط یې ورکړې او زه د شملی نه لاهور ته راغلی وم نو د لته می هغه سره ولیدل
هغه راته زباني هم ووې چه صاحبزاده صاحب دې چه باچاخان ته وایه چه د خدای د پاره

کوری د کانګرس نه جدا نشي او که ته د کانګرس نه جدا شوی نو بیا پیرنګیان زمونږ
ږلی له هیڅ نه وو کوي. د پرو خبرو نه پس ما ده ته د خپلې صوبې خبرې شروع کړې
ورته ووې چې دا کوم حقوق چې حکومت مونږ له راکړې دي زه منم چې دا نیمګړی
ناقص دي او ددې په ذریعه مونږ د خپل قوم او ملک د پاره هغه کار ونه شو کولی
مونږ زړې، غواړي خو بیا هم په دې کښې دومره خرشته که په اتفاق سره مونږ
مسش وکړو نو د پیرنګي په ځای پښتون د دې ملک مالک کیدې شي نو اوس نه
ته پوښتنه کوم چې د پیرنګي په مقابل کښې ته مالک کیدې شې؟ هغه ځواب راکړو
زه نه مالک یم او نه مالک کیدې شم ولې چې زه د پیرنګیا نو مقابلې ته تیار نه یم ما
ووې چې بنه ده ستا په پښتنو دا وریځ پیرزو کیږې چې د پیرنګیا نو په ځای دې
نه د دې خپل ملک مالکان شي نو هغه ووې چې بې شکه زما زړه هم غه شیز غواړي
بیا ته ووې چې دا خو به هله کیږې چې ته بل چاله موقع ورکړې. نو هغه ووې چې
لکل دې ته تیار یم نو ما ورته ووې چې بنه به دا وي چې ته د وزارت نه استعفا
ځکه چې زه دا مناسب نه ګنم چې اسمبلۍ کښې ستا بر خلاف د عدم اعتماد ووټ پاس
هغه ما سره وعده وکړه او په دې خبره راضي شو چې استعفا به وکړم لیکن ما نه چې
ه شوی ده نو سر جارج کننګم ګورنر هغه دې کار ته پرې نه ښود و او دا افسوسناکه
شوه چې ما دهغې مخنیوه یعنې په اسمبلۍ کښې دده په خلاف د عدم اعتماد
اد پاس شو او د عدم اعتماد ووټ پاس کیدو سره دخدايي خدمتګار و
ډاکټر خانصاحب ته یې د وزارت د جوړولو دعوت ورکړو او د صاحبزاده صاحب په ځای
ی خدمتګار و وزارت جوړ شو.

## دخدائي خدمتګارو وزارت،

دوزارت جوړېدلو سلا او مشورې دپاره مولانا ابوالکلام ازاد او بابو را
پرشاد ايبټ اباد ته راغلل دخدائي خدمتګارو اسمبلي پارټي په ممبرانو کښې چه څو
دوزارت خواهشمند وهغوي دخدائي خدمتګارانو په ذريعه دخپلو خواهشاتو دپوره
دپاره کار شروع کړو. ددې ټولو سرغنه ثمين جان وکيل و، دده ډېر شوق وچه وزير
دقاضي عطاء الله په مقابله کښې ډېر خلک دده په طرف وو او ندې وجه هم دغه وه چه
صاحب دخپل وزارت دپاره کوشش نه کولو او هيچا ته يې ويلي نه وو تر دې پورې چه ما
هم ددې خبرې کنايتاً هم ذکر نه وکړي دخدائي خدمتګارو د مشورې نه پس زه، ډاکټر
مولانا ابوالکلام ازاد او بابو راجندر پرشاد کښيناستو او په حالاتو موغور وکړو. ز
رايه وه چه زمونږ صوبه ډېره وړه صوبه ده مونږ له دا ډېر زيات نه زيات دخلور و
زيات جوړول په کار نه دي. په دې دوران کښې ثمين جان ماله هم راغې او ما ته
چه زه په دې خبره رضايم که چېرې ما او قاضي صاحب پارليمنټري سکرټريان کړه
يوازې نه قاضي به هم راسره وي داهغه ثمين جان خان دې چه قاضي صاحب دده
ماله د بويلي جيلخانې له راغلې و او دده دپاره يې زمانه مجبوراً د نوښار په خدائي
خطونه واخيستل چه دده مخالفت دې نه کوي په دې وجه دې داسمبلۍ ممبر شو چه
په دې پوه شو وزارت په دوو تونه دې او دوزير اعلې په مرضي دې او بله دا چه
پارليمنټري سکرټريانو هم مخالف وم ځکه چه زمونږ صوبه وړه ده دومره ګنجائيش
نشته او نه دومره کار شته نو مونږ دا فيصله وکړه چه ډاکټر صاحب سر دې، د
وزيران وي او په هغه کښې دې يو هندو وي او دوه مسلمانان چه د

دا سمبلي ممبران مونږ سره ملګري شوي وو او د صاحبزاده صاحب برخلاف يې
ووټ ورکړې وو مونږ ورسره دا وعده کړې وه چه يو وزير به د هزاره ي وي پاتي
يو وزارت شو نو ډاکټر صاحب قاضي عطاء الله صاحب واخيستو او د هزاره ي نه يي
محمد عباس خان واخيستو. په هندوانو کښې زما رايه وه چه لاله بنجورام د ډېر اسما-
عيل خان دې وزير شي ځکه چه هغه د کانګرس زوړ کار کن ؤ او قيدونه يي هم تېر کړي وو او
ډېر بااصوله سړي و، د مولانا صاحب دوی دا خيال وچه رای بهادر ايشرداس چه هندوانو
کښې لايق او بادرسوخه سړي دی، دی دې وزير شي ليکن زمونږ د تولولاله بنجورام
خوښ و او هغه وزير مقرر شو. حقيقت دادی چه کانګرس په بارسوخو رای بهادرانو
پسې ګرځي او مونږ په خدمتګارو پسې ګرځو. کله چه زمونږ وزارت جوړ شو نو زمونږ
دا فکر و چه څومره زمونږ نه کېدی شي خلکو ته فايده ورسوو مونږ په اسمبلۍ کښې د
تجويز و نه پاس کړل. يو موماليه کښې معافي وکړه او بل د کوهاټ، بنو او سوات خلکو ته
دا يو ډېر تکليف و د هغوی دا و بو دا نتظام د پاره موخه روپۍ منظورې کړې او دا مو
اراده وه چه هر کال به چه څومره کېدی شي د دی خلکو د او بو د پاره روپۍ منظورو دو تر
هغې پورې چه دا خلک په او بو ماړه شي. د کوهاټ د کرک تحصيل دا حال وو. چه هلته به
زمونږ. ميند وا وخويند و د ښلو او د وه ويشتو ميلونه د ښنګلو او به راوړلې د وزارت
دا کوشش وو چه د ښنګلو او به ي هغې علاقې ته ورسوی او چه کله وزارت د وه کاله پس
استعفا ورکوله نو هغوی د ومره کړې وه چه بيا د غې علاقې خلک دا تو ميلونه لرې او بو
پسې نه تلل او اکثرو کلو ته خو او به ور ورسولي شوی. دا د او بو دا مسئله به بېخي حل شوې
وه خو د پښتنو په پرو جنبوا و خود غرضو دا کار ترسره کېدو ته پرې نه ښو، ولې چه هر کلي به ډېل

چه او به اول مونږ له را کړئ. د دی د پاره مونږ یوه سرکاری کمیټی جوړه کړه او ما پکښې ممبری
د دی د پاره منظوره کړه چه دا د عامو خلکو د فایدی او خیر کار دی خو افسوس دی چه
زمونږ د خپلو خدایی خدمتګارو د بی اتفاقی په وجه خلکو ته چه کوم قسم خیر او فایده
مونږ رسول غوښتل ونه رسولی شوه او هغه کار نیمګړی پاتی شو. کانګرس د خپلو
وزارتونو د پاره دا هم ضروری ګڼله چه د صوبی قانونی مشیر یعنی ایډوکیټ جنرل به
د ګورنر په خوښه نه مقرریږی بلکه د ده واک د دی د وزیرانو سره دی او د هغوی چه
د خپلی خوښی نه کوم قسم سړی غواړی هغه دی ګورنر مقرروی. د بهار صوبه کښی د ګورنر
او وزیرانو په مینځ کښی لویه جګړه شوی وه او نوبت د استعفا ورکولو ته رسیدلی و
د غو ورځو کښی سر سلطان احمد د بهار د صوبی ایډوکیټ جنرال و هغه د سرکار
ډیر خیر خواه و لو ګورنر نه غوښتل چه هغه دی د دی عهدی نه لیری کړی شی او وزارت
غوښتل چه د ده په ځای خپل اعتباری سړی مقرر کړی په دی بانلدی د وزارت او
ګورنر تر مینځه جګړه وشوه او چه ګورنر پوه شو چه وزیران په دی خبره استعفا ورکولو
ته تیار دی نو بیا یی د هغوی خبره ومنله، سر سلطان احمد لیری شو او د کانګرس
سړی مقرر شو. د غه شان زما هم دا خیال و چه زمونږ وزارت دی هم خپل سړی په
دی عهده مقرر کړی په دغو ورځو کښی سردار راجه سنګه ایډوکیټ جنرال و ډاکټر
صاحب په دی مسئله ګورنر سره خبری وکړی خو هغه د ده لیری کولو ته تیار نه و نو راجه
سنګه بخپل ځای ایډوکیټ جنرال پاتی شو، نو نتیجه دا شوه چه زمونږ د وراثت څو کلی
د ډاکټر صاحب او زمونږ نه واخیستل که زمونږ خپل ایډوکیټ جنرال وای نو د پاس
شوی قانونی زراعتی بل مطابق به عمل شوی و زمونږ د صوبی خلکو ته به تاوان نه وی رسیدلی

ز مونږ داوراثت به اخیستی شوی نه و او مونږ ته به هم تاوان نه وی رسیدلی. زما طبیعت
ه نه و نوزه د خور د خود پاره هوا کلی ته لارم دا یو ښکلی دارام ځای و او ما پکښی خوږ ځی
ام کړو. بیا د دی ځای نه فقیرا خان سره دا کورود په دوره لارم. مونږ چه په ۱۹۳۰ ع
ل کښی خدایی خدمتګاری جوړه کړه دا تحریک د پښتنو د طبیعت موافق او ډېر زر
پښتنو کښی خور شو خو پیرنګیانو مونږ له موقع رانه کړه د هری نیمی میاشتی پس بی ګرفتار
ح او زمونږ قوم او خدایی خدمتګارو سره یی بی حده ظلمونه وکړل خو خومره چه دوی
سم کولو تحریک زیات خوریدلو پیرنګیانو زمونږ دا تحریک د باو نه کړی شو او چه
ونږ عارضی سوله د ګاندهی جی او لارډ ارون په مینځ کښی وشوه نو بیا هم مونږ
نګیانو کار ته نه پریښود و ځای په ځای به یی راته ایک سو چوالیس (د قانون یو سل
ملور خلویښتمه ماده) دفعه لګولی وه او به هزاره کښی خویی مونږ ته ډېر مشکلات
کړی وو نو دلته مونږ په تسلی سره کار نه وکړی بل زمونږ نه د میا احمد شاه دله
جدا شوی وه هغوی هم زمونږ برخلاف ډېری غلطی خبری خوری کړی وی خو
ی هم پخپلو ذلیلو ارادو کښی کامیاب شوی نه وو اوس چه مونږ اووه کاله پس
صوبی ته راغلو او د خدایی خدمتګارو وزارت هم جوړ شو نو مونږ د لوی سره د خدایی
متګاری تنظیم شروع کړو، هزاره کښی هم مونږ له د کار کولو موقع په لاس راغله
هغی علاقی دوره می وکړه.

## زمونږ وزیران او پیرنګیان:

څه وخت چه اول زمونږ وزارت جوړ شو نو په نوکرشاهی خلکو باندی که هغه
زان وو او که دیسیان وو هیبت او ویره راغله، رشوتونه، ظلمونه بند شول

لیکن افسوس چه دا حالت تر ډیره وخته پاتې نه شو نوکرشاهي زمونږ وزیرانو سره خلا
ملط شوا و دهغوی دخوی، بوی نه خبر شول او تعلقات یې ورسره قایم کړل نو بیا په خپله
زره پالیسی روان شول، رشوت خوریږي ده دوزارت او خدایي خدمتګارې تحریک
ته نقصان ورسیدو که زما په هغه تجویز عمل شوی وای نو دومره تاوان به مونږ وای
شوی زما دا تجویز وچه وزیرانو له دضرورت نه زیات تعلقات پیرنګیانو سره په کار نه ک
او نه دضرورت نه زیات هغوی سره خلط ملط کیدل په کار دی خکه چه زما تجربه ده
چه غلام قومونه دیر کمزوری وی او حاکم قوم ته تینګ نه دي. حاکم قوم کښې یو قسم کشش
وی او محکوم قومونه خود په خود ځان ته راکاږي. دغه وجه وه چه ما به پیرنګیانو سره
نه لیدل هغوی به زما خلاف پراپیګنډه کوله چه ده د پیرنګیانو نه نفرت دی. زه خو خد
خدمتګار یم او دخدای خدمت خو دخدای د مخلوق خدمت دی ایا پیرنګیان دخد
مخلوق نه دي؟ او دا نه چه ګوندې په دې کښې یوازې زمونږ وزیران فیل شول، د
امتحان که مونږ کښې به هر چا راغلي وای هغه به یکښې پاتې راغلی ؤ ددې نه هغه سړې بې
کیدې شي چه ددې قسم موقع پیدا کیږي و نه ځان وساتي ما د ډاکټر صاحب د پاره دیر
سره داسې تعلقات دیر خطرناک ګنل ځکه چه په هغه د مجلس دیر اثر کیږي هغه چه انګلس
نه راغلي و نو به هغه د پیرنګیانو دیر اثر و پیرنګیان ورته پاک او رینبتونی ښکاریدل
خیل قام خلک ورته دروغجن ښکاریدل. زه دا نه منم چه پیرنګیان پاک او رښتینی دی
دخپل قام د پاره، مګر دبل قام د پاره او خصوصاً په سیاست کښې دغه شان نه دی.

## دجواهرلال دوره:

په دغو ورځو کښې جواهرلال سرحد ته راغی، پنډت جواهرلال چه زمونږ صوبې

چه اول خلق راغلي نو په ټول ښار کښې مونږ د ده جلوس وکړ حُولو، په زرګونو خدایي خدمتګار
ورته هر ځای ولاړ وو او بیا په شاهي باغ کښې یوه لویه جلسه د ده په دی ناوی وشوه دی جلسې له
سرکارې او قومي ډیر مخلوق راغلي وو قومي نظمونه یکښې وویلي شو سره د دی چه جواهر لال
په پښتونه پوهېدلو خو د دی نظمونو او د دی نظارې او ماحول نه ډیر متأثر شوی و دا نظم
چه یکښې وویل شو چه: (زمونږ سرې جامې زړې کړې د خانانو نوکرانو) نو ډیرو خلکو ورته
زړل او چه تهکال له تلو نو جلوس کښې یو سیکه چه د خدایي خدمتګارو کمانډر و باوری دی
مخکښې روان وا او د نعرۀ تکبیر چغې یې وهلې. ما جواهر لال ته ووې چه وګوره دا سکه
دی خو دلته د ومره قومیت او اتفاق خدایي خدمتګارۍ پیدا کړې دی چه دی د نعرۀ
تکبیر نارې وهي. ډاکټر صاحب خروجي ته زما دا شکایت وکړو چه دی مونږ د پیرنګیانو
سره د تعلقاتو ساتلو نه منع کوی، جواهر لال ما سره په دی مسئله ډیر بحث وکړو چه دا
خبره د تهذیب نه لرې پریوتې ښکاری ما ورته ووی چه زه منم ما ته هم دا خبره ښه نه ښکا-
ری خو دی کښې دومره فایده نشته لکه چه څومره یکښې نقصان دی نو مونږ به هغه تهذیب
نه کړو چه په هغه زمونږ قوم او ملک ته نقصان رسیږی لیکن هغه زه په دی خبره مجبور کړم
چه ماله په دی معاملاتو کښې دخل کول په کار نه دی. نو ما دا خبره غلې کړه چه کله به زه پېښور
ته لاړم نو ما به کتل چه یا به ډاکټر صاحب د پیرنګیانو میلمه وا او یا به پیرنګیان د ده میلمانه
وو. د ده او د پیرنګیانو تعلقات دومره زیات شو چه حکومتي کارونه خو پریږده هغوی
مونږ کو. نو معاملو کښې هم دخل شروع کړو د پیرنګیانو او د خپل قوم په باره کښې د
ډاکټر صاحب هم بیا هغه زړه رویه شوه چه په ډیرو کوششونو بدل کړې شوی وه خبره
وه چه د ډاکټر صاحب دا رایه وه چه پیرنګیان عموماً او ګورنر خصوصاً د وزارت سره ډیر

تعلقات وواوزمونږ سره یې ډېره همله دی وه او دده وروړ محمد ظفرخان زمونږ
ذمه دار خدایي خدمتګار و. ددوی ټول خاندان زمونږ تحریک کښې د هرچا نه وړاندې
وو او دنورو وکیلانو په شان چالاک او دروغجن نه وو ما داغوره وګڼله چې د محمد نواز-
خان نه حقیقت معلوم کړم ماوې چې دی پوه نه شي او حقیقت معلوم شي. خیرزه دده
خای له لاړم ور سره کښېناستم خبرې موشروع کړې آخره کښې می ترې ددې خبرې
پوښتنه هم وکړه چې تاله خولې هم د مسلم لیګ دعوت درکړې دی هغه وې هو! خو چې
ورو سته یې فکر وکړو نو بیا پښیمانه شو خبره یې د خولې نه وتلې وه چې لږ فکر یې وکړو
نو راته یې ووې چې ما باندې خودې چل وکړو زه واپس پېښور ته راغلم او ډاکټر صاحب
می ددې خبرې نه خبر کړو حقیقت دا و چې ددې قسم خبرو کښې خدایي خدمتګار و ته
هم قصور و ډېر داسې خدایي خدمتګار و و چې وزارت ته یې غلط خبرونه رسول او
په دې وجه د ډاکټر صاحب عقیده په دې ټینګه شوې وه چې دوی ټول دروغجن دی
مګر په خدایي خدمتګارو کښې رښتینې خلک ډېر وو خو دروغجن پکښې وو د هغوی په
وجه رښتینې هم د شک نه خلاص نه شو. زمونږ چې حکومت جوړ شو نو مونږ له نوی
خلک راغلل او مونږ په خدایي خدمتګارۍ کښې واخیستل دا خلک د خدمت د
پاره نه بلکه د اقتدار او دلوټ د پاره او هم د خدایي خدمتګارۍ د بدنامولو د پاره
په جماعت کښې داخل شوي وو دا زمونږ نه لویه سهوه او غلطي وشوه چې د غه خلک
مونږ په خپل جماعت کښې واخیستل په کار دی چې کله زمونږ جماعت اقتدار ته ورسید
نو د غسې تماشبین خو د غه نه او ابن الوقت کسان دې خپل جماعت کښې د خه مودې
د پاره نه اخلي او چې بیا کله یې اخلي هم تحقیق په کار دی چې داسې خلک وا خیستی شي

چه هغوی حقیقت کښې د خپل غرض د پاره نه د قام د خدمت د پاره پاڅېدلي نه راځي زمونږ د صوبې د ګورنر جارج کننګم په باره کښې د ډاکټر صاحب عقیده وه چه دی ډېر ښه سړی دی او هغه ډېر خپل دوست او مرد ګڼلو د هغه دې عقیدې سره زما اتفاق نه وو زه منم چه کننګم ډېر ښه او هوښیار سړی وو خو د ډېر ښه پېرنګي هم زمونږ د پاره ښه کیدی نه شو ولې چه زمونږ او د هغوی قامي مفاد بېل وو.

## د ګاندهي جي دوره:

او س صوبه سرحد کښې خپل وزارت و، په دا تلوخه بندیز نه و نو ګاندهي جي هم په ۱۹۳۸ع کال کښې راغی د هغه هر کلي او استقبال چه په کوم شان و شوکت هغه یو تاریخي حیثیت لري. کوم څیز چه په ګاندهي جي ډېر زیات اثر کړی و هغه د باورۍ خدائي خدمتګارو هغه نظم و ضبط و چه هغوی څومره په خاموشۍ حوصله او انتهائي وقار دا دزه ګول. لکونو خلکو جلسې او جلوسونه سمبالول ګاندهي جي ولیدل چه څومره په مینه او اخلاص خدائي خدمتګار خپل جلوسونه او جلسې منظم او قابو ساتي او دا ئې هم ولیدل چه په جلسو او جلوسونو کښې اولسونه څومره په جوش او بې باکه مننه د خدائي خدمتګارو سره تعاون کوي. د ګاندهي جي عوندی ګوځنده او جهان دیده قامي او اولسي مشر هم په دې مجبور شو چه ولي وېل: «د ما چپل ژوند کښې داسې خاموشه او منظمې جلسې ډیرې کمې لیدلې دی» او څکه د ګاندهي جي دا امید پیدا شو چه ددې درنو او تورزنو پښتنو په ذریعه د خپل ژوند د مقصد حاصل کړي او ګه والي د زما د عادت چه پښتانه دې نړیوالو دا چه هندوستان له ازادي وګټي بلکه د دغه ازادۍ په برکت ټولې دنیا ته د عدم تشدد دا زرین اصول ورمعرفي کړي.

گاندهي جي به مونږ سره خندل چه د شپې تو له شپه ما په گاډي کښې تکې خوب نه دی کړی ولی چه د پنجاب په هر ټیشن به مخلوقات راغلل دا تیل او ډیکې به وې او چغې سورې او کړیکي به وې. گاندهي جي په غوږ ونو مالوچ ټومبلي وو، په ډې لړ کښې ما ته د جواهر لال نهرو هغه خبره را یاده شوه چه کله هغوی په اول ځل د صوبه سرحد په دوره راتلل هغه ویل چه د پنجاب په ټولو ټیشنونو کښې تو له شپه خلکو چغې وهلې دی او مونږ لې تکې خوب ته نه پرېښو هغه نهرو جي خپل انداز کښې ویل چه د هر یو سړي دا کوشش وه چه زما غوږ له خوله راوړي او د انقلاب زنده باد چغه یکښې ښه په زوره ووهي لکه چه د دې خلکو دا خیال وي چه د جواهر لال په غوږ کښې په چغه وهلو به انقلاب راشي خو هغه ویل چه یو ټیشن کښې کا ډې د ډیلو او ما بیا دې چغو او کړیکو ته خان تیار ولو چه کړکی نه مې سر بهر کړو نو څه گورم چه د ټیشن دیوسر نه تر بل سره پورې په پلیټ فارم د ډیره جامو خدایي خدمتگار ولاړ دي نه ټیل شته نه کړیکې نه ډیکې شته، نه چغې. نه غوبل شته، نه داندل یو مشر ما له راغی راته لې ووې: «مونږ ستا ستړی مه شې ته راغلی یو او تا ته هر کلی وایو». زه ورکوز شوم هغوی ټولو ما ته په شریکه د باجو سره سلامي وکړه، جواهر لال وویل چه زه دومره متاثر شوم چه زما غوني زیگ زیگ شوا و بیا لې میا افتخار الدین ته چه هغه وخت د پنجاب کانگرس صدر و مخ کړلو ولي ویل: «همیں کسی کے بتانے کی ضرورت هی نه پڑی که هم شریف پټهانوں کی دیس میں پنچے هیں» یعنې مونږ ته د دې وینا ضرورت نه شو چه چا را ته ویلي وې چه موتبو د شریفو پښتنو خاورې ته را ورسېدو.

گاندهي جي چه د سرحد په دوره راغی نو اوله عامه جلسه په چارسده کښې مقرر شوه فدا عبد المالک صدر او انحر گل سالار و دوی چه څرنگه خدایي خدمتگار وو او څرنگه

خدمت یې وکړې او بیا یې چه څنګه د کار خلک پیدا کړي وو نه داسې کار چا په صوبه کښې کړې او نه داسې خلک چا په صوبه کښې پیدا کړي وو. ما ته ښکاره ده چې چه جلسې له راغی په جلسه کښې به زر ګونو خلک ناست وو د هغوی په راتلو یو سړی د ځپله ځایه ونه خوزیدو. د ما ته ښکاره ده چې موټر راغی سټیج سره ودریدو مونږ د موټر نه راکوز شو. موټر لاړ. مونږ سټیج ته وختو هلته جلسه شروع شوه. خلک خاموشه ناست وو تقریرونه یې اوریدل. ما ته ښکاره ده چې د دې جلسې نه ډیر متاثره شوا و چه تقریر له پاڅیدو نو ویل وې چه زه په ډیره دنیا کښې ګرځیدلی یم. ډیرې جلسې مې لیدلې دی خو ما داسې د سپلین او داسې جلسه لیدلې نه ده او بیا چه تلو نو چه څرنګې راغلی وو هغسې لاړل موټر سټیج له راغی دې پکښې کښیناستو چه دې لاړو نو جلسه خوره شوه نه مخکښې او نه څوک وروسته خوځیدلی دي. زمونږ د چارسدې یو خان و هغه به وې چه زه په داسې یوه ډله کښې نه شریکیږم چه د کومې ډلې مشر چه بنجارې او قصاب او شاخیل وي. زمونږ مشرې په خانۍ نه وه په خدمت وه. زمونږ دا تمانزو جرنیل شاخیل و زیاړه نکل نوم یې وو، د دوی ماتحت ډیر خانان، اربابان، میاګان او ملایان وو، د دوی حکم به یې لګه د تنخوا دارو نوکرانو په شان منلو او دا یوانې د دوی نه و د هر افسر چه هغه به هر څوک و، په خدایي خدمتګارو کښې یوه ښکلې ورور ولي وه محبت و او هر کار ته به چه مقرر شو هغه به یې په مینه محبت کولو. ما ته ښکاره ده چې د ټولې صوبې دوره شروع کړه. د پېښور نه پس مونږ کوهاټ ته روان شو چه دړې ته ورسیدو نو ډیر افریدي د هغه استقبال ته راټول شوي وو پکښې څه هندوان وو دا هغه هندوان وو چه د غه ازاده قبایلي علاقه کښې اوسیدل او د کانونه یې کول ما ته ښکاره ده چې ته دوی چه دوی نه تپوس وکړه چه په دې ازاده قبایلي علاقه کښې ستاسو مال، ځان او عزت محفوظ دی؟ دلته هم چیرې

په تاسو داکې پوهيږي چې ګاندهي جي تېرې تپوس وکړ نو هغوی ورته ووې چې زمونږ هر څه محفوظ دي او چه څوک په مونږ زور زياتي کوی نو دوی د هغو مقابله کوی. ما ورته ووې ګاندهي جي! هغه ټولي داکې سياسي داکې دي د پيرنګيانو په رعيت کيږي او تاسو پرې پيروی ولي. زمونږ ډرايوران زمونږ ګاډي به هغه چلولو. ولي ډېر بنه ډرايور دی. چه کوهاټ ته ورسيدو نو د ګاندهي جي استقبال ته ډېر خلک راغلي وو بيا لويه جلسه وشوه بيا د دې ځاينه بنو ته لاړو بيا ډېره اسماعيل خان ته لاړو. د هغه ځاي پېښور ته راغلو او د پېښور نه مردان ته لاړو او بيا د مردان نه هزاره ته لاړو، او بيا د هزاره نه ګاندهي جي هندوستان ته روان شو. ګاندهي جي د خدايي خدمتګارو د ډسپلين او عدم تشدد نه ډېر خوشحال و.

دسرحد د خلکو سره د ګاندهي جي دومره مينه محبت وچه ماسره يې وعده کړې وه چه که ته وايې نو زه به شپږ مياشتي په صوبه سرحد کښې او شپږ مياشتي په سيوګرام کښې تېروم. سردار پټيل سرحد ته د ګاندهي جي په راتلو خفه و او په دې خبره يې ورسره هميشه اختلاف کولو. سردار پټيل دا نه غوښتل چه ګاندهي جي سرحد ته لاړ شي د پټيل دا کوشش وچه مسلمانان په کانګرس کښې رانه شي، کانګرس کښې يو سړی وچه هغه مسلمان وخوره ته هند وښکاريد و نو هغه ته يې ويلي وو چه پام کوه دا مسلمانان درنه کانګرس ته رانه شي.

ګاندهي جي ته د صوبه سرحد وکيلانو او بيرسټرانو د ډاکټر صاحب په بنګله کښې يوه سپاسنامه د سردار عبدالرب نشتر په ذريعه پيش کړې وه او په هغې کښې يې ورته ليکلي وو چه مونږ په دې فخر کوو چه ته زمونږ هم پيشه يې يعنې وکيل يې. ګاندهي جي ورته ډېر مزيدار جواب ورکړو چه: زه ستاسو هم پيشه نه يم دا څه بنه پيشه نه ده د کوم وخت نه چه ما د خداي د مخلوق خدمت شروع کړې دی نو دا پيشه مې پرېښې ده تاسو له

هم په کار دی چه دا پیشه پرېږدې او د ملک خدمت ته ملا وتړې .

زمونږ د وزارت قایمېدو لږ وروسته موږ خبر شوو چه په دې کښې څو زمونږ د سرکاري دعوت ( ایټ هوم ) واغې ځنګه چه په دې کښې د شرکت د پاره نورو خلکو ته لیکل شوي وو په دې کښې یې ډاکټر صاحب له هم دعوت ورکړی وو . په دغو ورځو کښې په کلکته کښې د کانګرس ورکینګ کمیټۍ جلسه وه زه هغې له تللم ډاکټر صاحب ما سره د اخبره وکړه چه مونږ د ګورنر په دې ایټ هوم کښې شریک شو که نه ؟ ما ورته ووې چه د کانګرس وزیران په هیڅ قسم سرکاري دعوتونو کښې شریکیږي نه شي . هغه ووې چه ښه به داوی چه د ګاندهي جي نه تپوس وکړې ! او بیا ما له تار دراکړې که چیرې دده اجازه وی نو په هغه تار کښې صرف «هو» ولیکه او که نه وی نو صرف «نه» ولیکه . زه چه کلکتې ته ورسېدم او د ګاندهي جي نه مې پوښتنه وکړه هغه ووې چه د غه رنګ سرکاري څیزونو کښې مونږ نه شریکیږو و نوما ډاکټر صاحب له د «نه» تار ورکړو څه وخت چه ډاکټر صاحب ته تار ورسېد نو هغه ګورنر د دې خبرې نه خبر کړو او ګورنر دا خبره پټه نه کړه او په « ایټ هوم » کښې د ډاکټر صاحب خلاف ډېره پراپیګنډه وکړه . ملک خدابخش ته یې د خلکو په مخکښې وویل چه ډاکټر صاحب خو شرکت غوښته خو دېره نه ورله تار دراغی نو ځکه شریک نه شو کله چه زه واپس راغلم او د دې خبرې نه خبر شوم نو ډاکټر صاحب ته مې ووې چه دا سړی ستا دوست نه دی او دا خبری د دوستی نه دی بلکه د شرافت نه هم لیرې دي مګر د ډاکټر صاحب داسې طبیعت وو چه دا رنګه خبرې به هغه ته لږې ورځې یا د دې وې بیا به ترې نه هېرې شوې .

په کلکته کښې سوباش چندر بوس او د هغه ورور سرت چندر بوس د ورکینګ کمیټۍ د ممبرانو د پاره د ډېر ښه انتظام کړی وو او د هر سړي د ارام او خوشحالۍ فکر

به بي ساته ګاندهي جي بي چپل کور کښې ديره کړې وه . زه بي ديوه پړلوي تعلقدار سره ديره کړې وم او دغه شان د نورو ممبرانو حال وو . د ګاندهي جي به بي ډېر خدمت کولو . زه ګاندهي جي سره ناست وم چه سوباش بابو هم راغي دي د ځېلې ناجوړتيا نه پوره جوړ شوې نه وو او ګاندهي جي ورته ووې چه ته خو لا پوره جوړ شوې نه يې نو د کانګرس صدارت خو کولې نه شې ده ووې نه جي ! زه خو اوس ډېر ښه يم او دغه کار کولې شم . زه پوه شوم چه دده دا دومره دا رومدار ددې خبرې د پاره دې چه په جلسه کښې د ورکينګ کميټۍ ټول ممبران دده تجويز پاس کړي . لالي په هغو ورځو کښې دانټرنس امتحان نه وو ورکړې او په وارده کښې ځ جمنا لال جي بجاز چه اجلاس له راتلو نو لالي بي ځان سره راوستې وو . لالي سره بي ډېره مينه کوله او په ډېر زور بي ماته ايله ديوې شپې د پاره پرېښې وو . د جلسې د ختمېدو نه پس هغه ګاندهي جي سره واردې ته لاړو او زه ځېلې صوبې ته را واپس شوم .

## وزارتونه او خدائي خدمتګار :

مونږ خو وزارت ددې د پاره اخيستې وو چه خپل جماعت مضبوط کړو او ډېرې نګې ده لمکزورې کړو ، ددې د پاره په سرحد کښې موهغه ټول انعامونه بند کړل چه د سرکار له طرفه به خلکو له ورکيدې شو ولې چه په دې صورت به دې خلکو ډېرې د خلکو له بيت المال نه اخيستې او خدمت او تابعدارې به بي د ډېرنګيانو کوله او دغه شان انريري ميجسټرېټي موهم ماتې کړې او ضلعدارې موهم ماتې کړې . خکه چه دا ټول خلک د ډېرنګي دلاوه بل کار مو داو کړ وچه غريب خلک مود ملکانو د ځوکيدارې نه خلاص کړل چه په دې وسيله به هغوي په خلکو ډېر زياتي او ظلمونه کول . زمونږ دا هم اراده وه چه د ګلو مېرداران

دي هم مات شي ځکه چه دا هم د پیرنګی یوه مضبوطه دله وه، مونږ غوښتل چه د هغوی په ځای دی د مالیی د ټولولو د پاره په هر تحصیل کښی نایب تحصیلدار مقرر شی، مګر په دی کښی کامیاب نه شو ځکه چه زمونږ د اسمبلی ځینی ممبران پخپله نمبرداران وو. دا زمونږ د غلط انتخاب نتیجه وه او د اینده له پاره مونږ له د دی نه سبق اخیستل په کار دی بله دا چه د کوهاټ د تیری ریاست په خلکو دوه ظالمانه ټیکسونه وو چه هغه ته به بوا او تیرنی ویلی شو، په اسمبلی کښی د هغه د لیری کولو د پاره قرار داد پاس شو.

یوه بله عجیبه خبره درته وکړم، یوه ورځ زه او قاضی صاحب په ایبټ اباد کښی مازیګر په سېل ګرځېدو مونږ ولیدل چه زمونږ نه وړاندی جینکی دی او وړپسی هلکان دی، دا ما ته بده ښکاره شوه، ما قاضی صاحب ته وویل چه ستاسو د وزیرانو دومره اختیار شته چه د دی مخنیوی وکړی ځکه چه دا خو زمونږ بچی دی، د دوی عزت زمونږ عزت او د دوی بی عزتی زمونږ بی عزتی ده. قاضی صاحب را ته وویل چه مونږ قانوناً دومره اختیار نه لرو، ما ورته وویل چه مونږ د خپلو لونړو، خویندو او میاندو د عزت حفاظت نه شو کولی نو د داسی حکومت نه څه فایده. تعلیم کښی هم څه نه څه ترقی وشوه په اخر کښی سکولونه پرانستی شول او هغه کښی کافی برخه د جنکو د پاره وه او څو سره چه مونږ غوښتلو هغومره تعلیم خوریدی نه شو ځکه چه د دی د پاره په بجټ کښی لږ رقم مقرر شوی و چه د هغه زیاته برخه به د محکمی په خرڅونو لګېدله مونږ هغه کښی هم څه بچت وکړو، د انګریز ډایرکټر په ځای مو د دیسی سړی ولګولو او د انسپکټر عهده مو لیری کړه نور هم پکښی ګنجائش و مګر د هغه اصلاح زمونږ د وسی نه بهر وه.
د تعلیم په باره کښی چه کوم زیاتی د پښتنو برخلاف پیرنګیانو کړی دی هغه لی په هندوستان

کښي دبل چا سره کړي نه دي . دپښتنو دپوهي دپاره ددي بي کاره تعليم يې هم ډېر لږ
انتظام کړي و او دجنګو دتعليم طرف ته يې اودومره توجه نه وه کړي بلکه دښمني دپښتنو
سره داکړي وه چه ابتدايي تعليم يې په مورنۍ ژبه نه وه او په پردۍ ژبه کښي وپښتنو
دخپلو چوپړ دپاره دخپلو ملا ، رسو دجوړولو کوششونه به وکړل او ملا ، هسي به يې جوړي
کړي مګر حکومت ددي په ځای چه هغوی سره امداد کړي وای دهغه مخالفت به
يې کولو او دهغو دبنديد وکوشش به يې کوو ، زمونږ وزارت دا قدم هم او چت
کړو چه په ابتدايي ملا ، سو کښي يې پښتو ژبه لازمي وګرځوله او بل طرف ته زمونږ
قوم تمول عمر دبلې دپرق دلاندې تېر کړي وهغوی اختيارات ليدلي نه وو او نه ورته
دا معلومه وه چه آخر زمونږ اختيارات څومره دي مونږ دوه انيز ګټلي وا و قوم
دوې غوښتله او دا هم پرېږ ده چه دجايز او ناجايز هيڅ قسم تميز نه و او دهر
سړي دا خيال وچه لوټ دي نو ، و وکړو او زه پاتي شوم نو ر قوم خولا پرېږ ده د
دخدايي خدمتګار ، وهم دا حال وچه هر وخت به د وزيرانو په بنګلو کښي ناست وو
تاڼي او تحصيلونه ددوی نه خالي نه وو او دهر يو به چه څه وی که هغه به وشو خو سبه
او که هغه به ممکن نه و لو بيا به يې د وزارت برخلاف پراپيګنډه کوله چه د غريبانو
خلکو دپاره څه وستو او مخالفينو به هم پرې مالګه ، مرچکي دوړول ، بيا به يې
کلو کښي پراپيګنډه کوله چه دخدايي خدمتګار و او غريبانانو هيڅ ونه شو په دغه
طريقه دغو نادانانو دوستانو خپل تحريک ته نقصان ورسولو ما چه به دخدايي خدمتګار و
دی کار ته کتل نو حيرانيدم به او دځان سره به مې وي چه خدايه دا هغه خلک دي
چه دوي خدای سره وعده کړي وه چه مونږ به ستا دپاره دخپل قام او ملک

خدمت کوو العبیر د ځه لالچ نه د ډیر افسوس خبره خولا داوه چه څه وخت به یو ملامت
و یا یوه وظیفه وه نو دهغی د پاره به سلو خدائي خدمتګارو درخواستونه ورکړي وو
خو وظیفه به یوه وه یو سړي له به ورکړے شوه هغه به هم خدائي خدمتګارو د انور یو کم
سل خدائي خدمتګار به تول خفه وو ، او د وزارت او د خپل تحریک برخلاف به لي
سرخاى پراپیګنډه کوله او تشه پراپیګنډه نه وه . کنځل او بد ویل به هم ورسره و .
کومه ورځ به چه د نوکرو د پاره د مقابلې امتحان د نو عجیبه نظاره به وه په
سوونو امید وار به وو او هر یو امید وار سره به د سفارش د پاره جرنیلان ، کرنیلان
سالاران او ناظمان راغلي وو عجیبه خبره خولا دا وه د هغو کسانو د زامنو د پاره به
هم سفارشونه کول چه پلرونو یي د حکومت د پاره د وی سره ډبولي وو او شهیدان
او په موجوده وخت کښې هم د پیرنګیانو ملګري وو . ما ته به د خدائي خدمتګار
سی کارونه ډیر بد او مکروه ښکاریدل که د امید وار به څه وشوا که نه د دوی
به وشو په مونږ وکښې به ورګډیدل چاى ، د دوى به یي وخوړل او پالوده پرې
پاسه . په دې کښې بل لوی نقص دا وو چه تول کسان خو به نوکران کیدې نه شول نو
هغو کسانو او د هغوی خپلوانو به خدائي خدمتګارو ته پیغورونه کول چه لجیلخانې
مونږ تیرې کړې او فایدې د نورو خلکو دې ستا سو پکښې څه وشو ؟

زمونږ د وزارت نه یوه لویه غلطي دا هم وشوه چه د سرحد هغه وحشي او ظالمانه
قانون چه مونږ تول ورسره مخالفت کړے وو او زه تول عمر پیرنګیانو په دې قانون
کې ګرفتار کړي او قید کړې وم ، دې وزارت اول د هغه سرحدي قانون مات
و . هغه پیرنګیانو زمونږ د وزارت په ذریعه بیا واپس جاري کړو جماعت سره یي

څه سلا او مشوره څه چه زه يي هم خبر قدري نه کړم . حال هم دا چه په کار وچه د اسې
نه وای شوی د جماعت نه تپوس شوی وای او که چيری د جماعت رضا نوی نو دو زيرا نو
هيڅ حق نه و چه هغه مرقانون يي بيا ژوندی کړی وای . په دی قانون يو څو د پيښ نکيانو
اقتدار زيات شو ځکه چه په جرګو کښي د مقرريدو په طمع خلک ورمات شول او سلامونه
يي شروع کړل او بل زمونږ د پر خلک د سرحدی قانون په ذريعه حکومت قيد کړل او بيا
خو مونږ هيڅ ويلي نه شول ځکه چه د غه قانون مونږ پخپل وزارت کښي اجرا کړی وا او
زه تول عمر پير نکيانو په دی قانون کښي قيد کړی يم او بل طرف تول سرکاری نوکرانو
زمونږ برخلاف يوه منظمه پراپيګنډه د خپلو افسرانو په داګيرنه شروع کړه ، دوی
او دوزارت څه پروانه کوله او نه يي څه کنمل د پرخله ماسره په خپل ځان د پروسر کاری
ملازمانو د خلکو په مخکښي د خدايي خدمتګارو برخلاف قصی کړی دي . د غه شان
زه يو ځل سره د عاشق شا باچا د مومند و د کوه دامان په دوره وو . د هغی علاقی
تامنيدار به مونږ سره وهغه به زمونږ برخلاف پراپيګنډه کوله او خلکو ته به يي ديل
چه باچاخان خو غوا نه حلالوی ان تردی چه په يوه لويه جلسه کښي ځينو کسانو د ده په
لمسه شور جوړ کړو او زما د تقرير په دوران کښي يي را نه دا سوال وکړو چه ته غوا حلا
لوی ما ورته وي چه زه خو قصاب نه يم او مسلماني خو څه په غوا حلالولو باندی نه د
دا قصه ډاکټر صاحب او نورو وزيرانو ته ورسيده او ول خو ډاکټر صاحب د عاشق شا
باچا په خوله يقين نه کولو او چه يقين يي وشو نو بيا يي هم د هغه تانيدار څه و نه کړی شو
دا خو پريږده زمونږ کلی کښي د جواری پرو ډاکټر صاحب دری ځله پخپله د دی
پر بند ولو د پاره راغلی و ليکن بند نه شو ځکه چه دا خو د پوليس کار و او پوليس ملا

نه کولو هغوی خو به یکښې حصه اخیستله. ډاکټر صاحب پخپله یو سړی په رشوت نیولی و په هغه مقدمه چلید له خواخو مجبوریت بری کړو. حقیقت دا وو چه سرکاری افسران دصوبی دوزارت نه نه وېریدل ولی چه ددی هغوی له سزا نه شوه ورکولی، چه کوم سرکاری افسر به وزارت ناراضه شو او دغه له دسزا ورکولو اراده به یې وکړه، نو ګونړ او لوی انګریز افسرانو به دغه افسر سمدستی دصوبی په خواکښې ایجنسو ته بدل کړو او په دی طریقه به هغه دسزا نه بچ شو. نتیجه دا شوه چه سرکاری افسرانو دوزیرانو په ډاکه حکم عدولی کوله او د هغوی سره یې د هیڅ قسم تعاون نه کوو. ددی تولو خبرو د پاسه د ډاکټر صاحب خیال و چه سرکاری افسران د هغوی وزارت سره تعاون کوی. په خوشدل کپتان د ونود پټولو مقدمه جوړه شوه او بد پکښې راګیر شو نو کورنړ راغی او ډاکټر صاحب ته یې ووې چه داسړی به زه ددی ځای نه بدل کړم خو دا مقدمه ترې واپس کړه. ډاکټر صاحب ته خپلو ملګرو ویلی وو چه ډاکپتان ډیر خراب سړی دی ده په خدائی خدمتګارو ډیر ظلمونه کړی دی وهلی یې دی، شړ مولی یې دی، بیګناه یې قید کړی دی. خو ډاکټر صاحب عجیبه سړی و. ددی تولو خبرو د پاسه هغه یې د ګورنر په خوله بدل کړ. دغه خیال زمونږ او زمونږ دتحریک د پاره ډیر خطرناک و او دغه وجه وه چه دحکومت ملازمانو زمونږ تعاون نکړو او انګریزانو به چه څه ورته ویل هغه به یې کول او ددی ملازمانو دا یقین وو چه واک اختیار د دوی نه بلکه د انګریزانو دی دغه شان زمونږ داسمبلی ممبران او د دستورکمیټ بورډ ممبرانو هم دا خبره هیره کړه چه مونږ دقوم په ووټ منتخب شوی یو او هر څه چه کوو به کار دی چه دقوم د پاره وکړو. عجیبه خبره خو لا داوه چه په دستورکمیټ بورډ کښې ونورو ځایو کښې چه به کوم سړی دوی مشر مقرر کړو هغه به په دیانتداری سره کار کاوه او د

خپلو اصولو پابند به وو او د دوی ناجایز سفارشونه بی نه منل نو دی به دهغه غور ځولو کوشش کولو. لو یه د افسوس خبره دا وه چه د دوی خپل خدایی خدمتګار وورور دوی سره به بی په یوه کلی قید و نه تیر کړی وو دهغه په ځای به بی هغه سړی له ووټ ورکولو چه خدایی خدمتګار به نه وو د ملی مار به خو په ده به بی غوړی زیږی وهلی او دده خوشامندی به بی کولی. د جګړا خان په دوی غوړی زیږی وهلې وې او بله دا چه دی خو د پیر نکیانو ډنډ ماروو، هغه زمونږ خدایی خدمتګار نه وو خو تول دهغه ملګری شول او هغه بی د خپل خدایی خدمتګار په مقابله کښی کامیاب کړه. وزیرانو به هم چا سره سلا مشوره نه کوله هغوی زمونږ دی وروڼو داسی واړه خطا کړی وو چه پخپلو کښی هم د دوی سلا مشوره نه وه او نه د اصولو پابندی وه. وایسراې راغی دوی دهغه هر کلی وکړو او بیا د دوی کښی ورسره د ډاکټر صاحب شریک شو ماته د کانګرس د های کمانډ نه تار راغی چه داخه مو وکړل؟ دهغه شان زمونږ د اسمبلی په ممبرانو کښی هم ډلې جوړی شوی وی په دستر کټ بورډ و نو کښی هم پری جنبی وې دخدایی خدمتګارانو هم دغه حال و نو رخولا پر بږده چه د ډاکټر صاحب او قاضی صاحب په مینځ کښی دکلی ګوډی ارباب عبدالرحمان خان او میا جعفر شاه سخت اختلاف پیدا کړی ؤ. ډاکټر صاحب او قاضی صاحب زمونږ ډیر ذمه دار خدایی خدمتګاران ووا و دوزارت نه مخکښی د دوی یو بل سره ډیره مینه محبت، وروروَلی او ښه تعلقات وو. زمونږ چه به په ملک کښی دوره کوله نو زمونږ خلاف به پیرنګیانو پراپیګنډه کوله او ملایانو ته به بی ویل چه دوی بالشویک دی. دوی مذهب ورکوی او تا سو ورکوی او خانانو، ملکانانو ته به بی ویل چه دوی خوستاسو نه هر څه اخلی او غریبانا نو له بی ورکوی. ملایانو مونږ سره زښتی ولی نه کوله او دهغوی بی منل. او دهغوی خبرو سپی تلل. ولی خانان او ملکان بیره تلل

سره پر ۹۲ مخ اداء کښې مزدور ته بیدار کیګي چا چه به مزدوري کوو جایداد به ئې شوو یعنې طبقه مزدوري نه کوي ځکه چه دولتمند شوي دي -



زمونږ مونږ ملي تېر سوي نه کول، زه د دواوي په دوره وم چه د غلته څه خانان او ملکان را غلل او زمانه يې تپوس وکړو چه مونږ ته او روچه تاسو زمونږ نه جایدادونه اخلئ او غریبانانو له يې ورکوئ، ما ورته او وئیل چه مونږ له خدای داسې ملک راکړی دی چه د دولتونو او نعمتونو نه ډک دی. که مونږ ازاد شوو او دا ملک زمونږ شي او مونږ ملا وتړو، دا ملک اباد کړو، نو څوک به غریب پاتې نه شي، مونږ به ټول خانان شو زمونږ دا اراده نه ده چه ستاسو نه جایداد او ملک واخلو مونږ خو ستاسو حالت هم ښه کول غواړو او د وږي مړول غواړو، که دا وږي ماړه شي نو تاسو ته څه تاوان دی، که تاسو د پیرنګیانو ملک ته لاړ ئ نو هلته نو خلک خوړ پرېږده د مزدورانو يې بنګلي او موټرونه وو او ستاسو نه تپوس کوم چه ستاسو موټر شته، بنګله شته؟ که زمونږ تحریک کامیاب شو نو د ملا حالت به هم ښه شي او د خان او ملک حالت به هم ښه شي، مونږ دا هر څه چه کوو نو د خان د پاره نه کوو، دا د دی قوم او ملک د پاره کوو.

چه مونږ د صفائي کار شروع کړو او کلوته تلو جارو کاني به را سره وي، جماعتونه حجري او لاري، کوڅې به مو جارو کولې، نو د پیرنګیانو ایجنټانو به خانانو، ملکانانو او ملایانو ته وئیل چه د دوی د دی جارو نه مطلب دا دی چه په تاسو جارو دا شي او دا ملک د غه شان ستا-سو نه پاک شي خو زمونږ په کوشش قوم کښې رو رو لي، عزیز ولي، قام ولي او سیاسي شعور پیدا شوی و، نو چه څو مره به دوی زمونږ خلاف پراپیګنډې کولې هو مره به په قوم کښې مونږ سره د خلکو همدردي زیاتیده، ولې چه هغوی به لیدل چه مونږ خو د هغوی خدمت کوو او د هغوی د حق د پاره پیرنګیانو سره په جګړه یو، تکلیفونه، مصیبتونه او جیلخانې تیروو. خلکو به وئیل چه جیلخانې دوی تیروي او حق زمونږ د پاره غواړي، د غه وجه وه چه د قوم او خلکو مونږ سره ډېره همدردي وه، خلکو ته معلومه وه چه د ۱۹۱۹ع اصلاحات" هندوستان نه قبلول، هغوی وئیل چه لوږ دی

ه غالباً چه د عبدالغني مولانا مولوي بشير احمد صاحب وو، په احمد کلي
کميونسټ شو. او د خدائي خدمتګار سخت مخالف وو
ګونګ دوست وو. طورو ته به راتلل ۱۲



ولي د صوبه سرحد نوابانو، خانانو، صاحبزادګانو، سيدانو او زبرګانو د اصلاحات غوښتل خوپيرنګيانو نه ورکول، ورته يې وئيل چه تاسو پښتانه په حکومت څه پوهيږئ تاسو ځنګليان خلک يئ د اصلاحات خو دوئ (خدائي خدمتګارو) مونږ له ګټلي دي. بيا دې قوم ته معلومه وه چه د ووټ خوبا چاهي وه. خلکه چه حکومت په ووټ جوړيږي او ووټ راله دوئ ګټلي دي.

حقيقت دا دی چه زمونږ تحريک ته ډير نقصان اقتدار ورسولو، داخو د غرض نه خلک د اقتدار په انتظار کښي وو چه اقتدار راغي. نو دوئ په مونږ کښي راننوتل دوی خو خدمت له نه راغلي اقتدار پسې راغلي وو، نو مونږ کښي يې دهغې خپل اقتدار د پاره پوري جنبې پيدا کړې. اقتدار خراب شی نه دی مونږ هم چه کوشش کوو د اقتدار د پاره کوو. خو اقتدار د حکومت د پاره نه، د خدمت د پاره زمونږ د خدائي خدمتګارو خو دا قاعده وه چه مونږ به د يو کار د پاره څوک مقرر ولو، نو مونږ تول به راغونډ شو. ما به ورته او وئيل چه دا کار دی او د دې کار د پاره مونږ له يو سړي په کار دی، تاسو يو سړي خوښ کړئ چه د دی کار د لايق وی او ما ته يې راکړئ هغوی به يو سړي خوښ کړو او ماله به يې راکړو. داسې به به دې کار کښي نه د چا خفګان وو نه ګيله، نه مخالفت. مونږ په تولاندي کښي د خدائي خدمتګارو صدر انتخابوو افضل خان صدر منتخب شو، هغه ماله راغی ما ته يې او وئيل چه باچا خانه زه خو خدائي خدمتګار زه که صدر يم هم به خدمت کوم او که صدر نه يم هم. زمونږ مولوی صاحب په صدارت خوشحاله نو خوښه دي نه ده چه دا صدارت هغه له ورکړم، ما ورته او وئيل چه ستا خوښه ده. نو زما هم خوښه ده. نن تاسو دي سياسي جماعتونو ته وګورئ، په دوی کښي دا جګړې مخالفت پارټي بازي او جدائي دا څه څيز پيدا کړي دي دا اقتدار!

زه دې قوم ته وايم چه تاسو تر خو بلي غرضه، ديانتدار، ايماندار، په قوم او ملک مين

خلک پیداکړی نه دی، نو نه دا ملک ازادیږی او نه دا قوم.

بیا ووټ دی. نو زه د ووټ مخالف نه یم. دا مونږ چه په کومه طریقه خپلی جماعتی او قامی فیصلی کوو دا ووټ نه دی؟ او دا جمهوریت نه دی؟ او دا ووټ مونږ په قربانو کښی نه دی!

خو زه دا وایم چه زمونږ دا قوم د ووټ په حقیقت پوهول غواړی او باید چه پوه دی یی هم پوه کړو چه ووټ هغه چا له ورکول په کار دی چه څوک یی مستحق دی. ورور عزیز ته یا په پیسو ووټ ورکول نه دی په کار. زه خو وایم چه څوک په پیسو ووټ خرخوی د هغه د ووټ حق خیستل په کار دی. د خود غرضو خلکو په وجه خدایی خدمتګار و کښی هم خود غرضی پیدا شوه. دیوی حلقی نه به یو ممبر کیده او ده خواستونه به سلو کسو ورکړل. چه یو سړی به وشو نو یو کم سل به خفه وو. بیا به یی پارلیمنټری بورډ ته بد رد وئیل. د هغه حال د ملا زمتونو وو چه ځای به یو وو. او امیدواران به سل وو. نو نوکری خو به یوه وه. دیو سړی به ورسیده. یو به خوشحال شو یو کم سل به خفه وو. نو بیا به یی متعلقه وزیر ته کنځل کول، او مسلم لیګ به دا پراپیګنډه کوله چه د غریبو خه حال شو. بیا به ماله هم دا غلبل شکایت به یی راته کولو. ما به ورته وئیل چه دا سړی چه مقرر شوی دی دا خدایی خدمتګار دی او که نه؟ دوی به او وئیل چه خدایی خدمتګار دی، ما به ورته او وئیل چه خدایی خدمتګار دی نو بیا خو دا یوه نوکری ده یو سړی ته به رسیدله بلکه دا چه ما به تپوس کړو چه دا کوم خدایی خدمتګار چه مقرر شوی دی دا د وزیر ورور عزیز دی. د هغه خپل ورور وزیر مقرر کړی دی نو وئیل به یی چه نه. نو بیا به ورته ما او وئیل چه دا ننه کار د دی په تا سو خپلو وزیرانو لپسی بد رد وایئ.

پیر ټنګیا نو ته خو دا معلومه وه چه دا یو اصولی جماعت ګڼ چه خه وایی هغه کوی

مونږ. خلکو ته وُيلي وو چه ځوک يي ګټي هغه به يي ښتي او پيژنګيا نو ته دا هم معلومه وه چه
دوی د نورو سياسي ليډرانو غوندی نه دی چه قوم سره د انتخاباتو وخت کښي کومي وعدي
وکړي نو يوه هم نه پوره کوی نو چه زمونږ وزارت شو نو هغوی سره فکر شوا و زمونږ د بد
نامولو کار ونه يي شروع کړل . يوه ورځ قاضي صاحب ماله راغي چه ډاکټر صاحب خو د کورنۍ
کتنکم سره د ملازمتونو په باره کښي دا وعده وکړه چه دی د باره به کمپي ټيشن
(Competition) (د مقابلي امتحان ) وی چه ځوک لايق او قابل وی هغه به اخيستي
شي که چيری داسي ونه شي نو ايډمنسټريشن ( اداره ) به خراب شي دا قسم مسئلي به
زمونږ يوه کميټۍ وه ، هغي ته پيش کيدی . زه هم د کميټۍ ممبر وم ، ما قاضي صاحب ته
اووئيل چه ته هغه کميټۍ را وغواړه ، څه وخت چه د کميټۍ اجلاس شروع شو نو ما د ډاکټر
صاحب نه تپوس وکړو چه ډاکټر صاحب تا د کودنو سره فيصله کړي ده ؟ ډاکټر صاحب
اووئيل چه که کمپي ټيشن نه وی نو بيا خو به قابل خلک رانشي ايډمنسټريشن به خراب شي
ما ورته اووئيل ډاکټر صاحب ما د انګريزانو په حکومت کښي داسي خلک ليدلي دی چه
ملازمان دی او دستخط کولي نشي . بله دا چه پيژنګيا نو ته به ځوک د ملازمت د پاره
پيش شو نو دوی به تری اول دا پوښتنه کوله چه د سرکار دی څه خدمت کړی دی
او هغه خلک به يي اخيستل چه د سرکار خدمت به يي کړی وو . نو مونږ ته هم پکار دی
چه هر چا دی اخلو نو دا پوښتنه تری کوو چه تا يا ستا پلار د دی ملک او قوم څه خدمت کړی
دی او دا خدايي خدمتګار خو ټول عاجزان دی ، دوی خو خپل اولاد په خپل کلي کښي
هم سبق نه شي ويلی او دولتمند خو دلته نه چه په يورپ او امريکا کښي خپلو بچو سبق ووئيلی
شي نو ددی خو دا مطلب شو چه قرباني خو غريب وکړی او چه څه ګټه اوشوه نو هغه

«خانانو بچو واخیستہ چہ څوک د ملک او قوم د ازادئ جنګ کښې د پیرنګی ملګری وو زه د کمیټی تفتیش (مقابلی د امتحان) خبره منم خو په دې شرط چه تاسو د دی غریبانانو بچولہ دغه شان تعلیم ورکړئ، څنګه چه دولت مند خلک خپلو بچولہ ورکوی ماورته او وئیل چه که تاسو دی سره اتفاق نه کوئ نو بیا به داوی چه استعفا ورکړئ. ډاکټر صاحب راته جواب کښې و وئیل چه زه د دې کمیټۍ نه استعفا ورکوم.

لنډه دا چه زه په دې نتیجه ورسیدم چه څومره ژر کیدی شی موږ له وزارت پریښودل په کار دی ځکه چه زموږ تحریک ته د فایدی په ځای تاوان رسوی زموږ داسمبلی په ممبرانو کښې ورځ په ورځ اختلافات زیاتیدل، چابه د ډاکټر صاحب نه شکایت کولو او چا د قاضی صاحب نه دا اختلاف اصولی نه و بلکه ذاتی واخو بت دی ته ورسید و چه د وزارت ماتولو د پاره د هزاره ضلع د کانګرس اسمبلی ځینی ممبران د اټک په ډاک بنګله کښې مخالفو ممبرانو سره د سلا او مشورې د پاره جمع شول مګر خدای خبر چه ولی څه فیصلی ته و نه رسیدل. د لبعضې خلکو دا خیال و چه خان بهادر سعد الله خان او اورنګ زیب خان په کور کښې د وزیر اعظمی په عهده بانډی وران شول. د آل انډیا کانګرس کمیټی پارلیمنټری کمیټئ صدر مولا نا ابو الکلام ازاد د پخپله سرحد ته راغی مګر دا مسئله حل نه شوه ځکه چه د ذاتیاتو شخصی مسئلی حل کیدی نه شی د اسمبلی بعضی ممبرانو زه مجبور کړم چه په دې معامله کښې مداخله وکړم د هغوی هم دا خیال و چه بیا به داوی چه موږ د او وزارت پریږدو زما خو د اول نه دغه خیال و مګر د وزیرانو په کارونو کښې می مداخلت نه کولو ځکه چه ذمه داری د هغوی په سر وه. ما د خدائی خدمتګارو لویه جرګه جمع کړه او د وزارت دا

خبره مې ورته وړاندې کړه چه ټولو ممبرانو په دې خبره اتفاق وکړو چه حکومت موږ سره

تعاون نه کوي نو موږ له په کار دی چه وزارت پرېږدو ځکه چه د دې نه زموږ تحریک

ته ګټه نه رسي بلکه نقصان رسي . اجلاس ختم شو او ما د صوبې د خدايي خدمتګارو

لويې جرګې نه د دريو د ديو کسانو يوه کمېټه جوړه کړه او د اسمبلي ممبرانو ته مې ورته

سبا له به تاسو راځئ او يو يو کس به ځان ځان له خپله رايه او بيان دې کمېټې له ورکوي

سبا له چه هغې کمېټې خپل کار شروع کړو نو د امير محمد خان د هوتي نه علاوه نورو ټولو

ممبرانو د وزارت په حق کښې رايه ورکړه زه حيران شوم او بهرته راووتم ټولو ممبرانو

ته مې ووې چه داخنګه خبره ده پرون تاسو د وزارت مخالف وئ او نن بيا ملګرې

شوئ ډاکټر صاحب ماته ووې که ماته اجازت وی نو دا زه ستاکاره کړم ما

اجازت ورکړو هغه ووې چه دوی ټول وايي چه وزارت دې وی ملګري دې هغه

څه چه موږ ورته وايو . ليکن دغه خبره موږ ته منظوره نه ده نو په موږ د دباو اچولو

د پاره دوی بيا د وزارت د ماتېدو ته په کوي . خير موږ خواره شو مګر د وزارت

د پرېښودو په باره کښې زما رايه نوره هم ټينګه شوه او خوځله د آل انډيا کانګرس هاى

کمانډ ته مې داخبره وړاندې کړه چه تاسو موږ له اجازه راکړئ چه موږ د سرحد

وزارت مستعفي کړو ځکه چه موږ ته د فايدې په ځاى نقصان رسېږي . ې هغوي اجازت

نه راکوله او وړاته به يې ويې چه ټول وزارتونه به په يو ځل پرېږدو . د دې کړو د خداى فضل د

چه ديورپ دويم لوى جنګ به (۱۹۳۹ع) کښې شروع شو .

## وزارتونه مات شول :

کله چه يورپ کښې د جنګ په شروع کېد و برتانيې د جرمنۍ خلاف د جنګ اعلان

کړو نو د هغی سره سره یې د هندوستان د طرف نه هم د جرمني خلاف د جنګ اعلان وکړو
کانګرس په دې اعتراض وکړو چه د تېرو صوبایي انتخاباتو نه دا خبره واضحه ده چه
مونږ د هندوستان د اولس نمائندګان یو. نو په کار دا وو چه د هندوستان د طرف نه
د جنګ د اعلان کولو نه وړاندې د هندوستان د خلکو رایې معلومه کړې شوې وې. بلکه
مطالبه یې دا هم پېش کړه چه که د برتانیې او د اتحادي طاقتونو دا اعلان صحیح وي
چه دوی په دنیا کښې د صلح او امن او ازادۍ د پاره جنګېږي نو کانګرس تپوس کوي چه
ایا په دې که به هندوستان هم شامل وي او که نه؟ مخکښې ورته بیا کانګرس دوېل چه مونږ
په شکل د دغو اصولو د پاره جد وجهد کوو او حکومت برتانیه له دا تسلي ورکوو چه هندوستان
هم په دې جنګ کښې صفوی سره تنګ په تنګ ودرېږي او د هیڅ قسم قرباني نه به غاړه
نه غړوي خو په شرط ددې چه حکومت برتانیه دا اعلان وکړي چه د جنګ په خاتمه به هغوی
هندوستان له ازادي ورکړي. چونکه حکومت برتانیه ددې اعلان کولو نه انکار وکړو نو
ددې خلاف د احتجاج په طور د کانګرس ټولو صوبايي حکومتونو په جمع استعفا وکړه او مونږ
دا ددې مصیبت نه خلاص کړو. د وزارت د ماتېدو نه وروسته ما ټولې صوبې دورې
وکړه. د وزارت په وجه چه په صوبه کښې کوم جمود پیدا شوی و د وزارت په پرېښودو او زمونږ
کوششونو جلسو او تقریرونو په خلکو کښې ورو ورو بیا ژوند راپیدا شو. دیورپ دویم لوی
جنګ شروع شو. د کانګرس د پاره دا خبره ضروري وه چه د جنګ په باره کښې قوم د خپلې پالیسۍ
خبر کړي. د کانګرس ورکنګ کمیټۍ ددې کار د پاره په وارده کښې راجمع شو. پنډت
جواهر لال نهرو چین ته تللی وو هغه یې د تار په ذریعه راوغوښتو هغه د هوایي جهاز په ذریعه
راورسېدلو په دې کښې فیصله وشوه چه بله میاشت کښې به بیا راجمع کېږي او حتمي فیصله به کوو.

پیرنګیانو ددی نه پس په ټول هندوستان کښې د مسلم لیګ وزارتونه جوړ کړل خو زمونږ صوبه کښې ېې د مسلم لیګ وزارت قایم نه کړو. ګورنر کننګم به وئیل چه دلته زه د مسلم لیګ حکومت نه جوړووم. که زه چیری حکومت جوړووم هغه به د ډاکټر خان صاحب وی. نو زمونږ خلک په دی خوشحال وو چه د مسلم لیګ حکومت نه جوړوی خو زما دی سره اتفاق نه وو. او زما د ګورنر دا خبره خوښه نه وه ولی چه ما وئیل چه د مسلم لیګ حکومت جوړ شی نو چه خلکو ته د خدائی خدمتګار د حکومت او د مسلم لیګ د حکومت فرق او ښه او بد معلوم شی خو اخر هغی ګورنر چه دلته د مسلم لیګ حکومت نه جوړوو، د مسلم لیګ حکومت جوړ کړو زه په جیلخانه کښې چه خبر شوم چه د مسلم لیګ حکومت جوړ شو، نو ددی په جوړیدو قوم پرست خلک ډیر خفه وو ولی زه خوشحاله وم. خلک حیرانیدل. ما به ورته وئیل چه زمونږ دا قوم ډیر عجیبه دی. تاسو نه ګورئ؟ مونږ ده ته ایز ګټلی دی او دوی روپۍ غواړی. مونږ سره روپۍ نشته نو زمونږ نه خفه وو مونږ ده ته ایز ګټلی وو هغه به مو ورکولو او مسلم لیګ به دا ځم نه ورکوی او هم د غه شان وشوه.



## دخدايي خدمتكارو غرزي پرزي

انفرادي سول نافرماني ، زما د قتل سازش ، هزاره كښي دخدايي-
خدمتكارو كيمپ ، اتمانزو كښي كيمپ ، عالمي جنگ
او كانگرس ، قبايلو ته دخدايي خدمتگارو
وفدونه ، هندوستان پريږدئ
تحريك ، دميروليس واقعه ، زما گرفتاري
او هوري پورجيل ، وزارتونه جوړيږي .



اخور د ۱۹۴۲ کال په دسمبر کښې ورکنګ کميټئ د انفرادي سيول نافرماني قرار داد پاس
کړو او دا فيصله يې وکړه چه دا سيول نافرماني به صرف د آل انډيا کانګرس کميټۍ ممبران د
مرکزي اسمبلي ممبران او د صوبايي اسمبلۍ ممبران کوي او د دې دپاره هدايات او
قواعد هم خواره کړل چه په دې طريقه به دا کوي. په پېښور کښې مونږ د خدائي خدمتګارو
په دفتر کښې دا ټول شوي يو ممبر به مو را غوښتلو، هغه ټول هدايات او قواعد به مو ورته
بيانول نو بيا به مو د هغوی عملي کولو او پوره کولو وعده ترې اخيستله. بير سټر قيوم
د مرکزي اسمبلۍ ممبر و کله چه ډاکټر خانصاحب د صوبې اسمبلۍ ته ودرېدلو نو هغه
د مرکزي اسمبلۍ د ممبرۍ نه استعفا وکړله او پخپل ځای د پېښور ښار يو بير سټر
عبد القيوم ممبر کړو. زما په ده ډېر اعتبار نه و او دې څه چه دې ټولو د اسمبلۍ
ممبرانو نه مې هم اميد نه و چه دوی به په دې پوره عمل وکړي نو ده له مې اجازه نه ورکوله. ډاکټر صاحب راته د ده دپاره ډېر منت وکړو نو اجازه مې ورکړه دا هم ورکنګ کميټۍ
پاس کړي وه چه شايد د سيول نافرمانۍ سره به دا خلک ګرفتار شي. که ګرفتار شول خو
ښه او که حکومت و نه نيول نو دوی له په کار دي چه کور کښېنني وېده دې قام پسې کلي
په کلي وګرځي او د سيول نافرمانۍ تقرير ونه دې کوي تو هغې پورې به ګرځي څو پورې چه
ګرفتار شوي نه وي. ليکن افسوس دې چه ډېرو لږو خلکو د دې پابندي وکړه اکثرو
کسان ورځ دوه اخوا دې خوا وګرځېدل او بيا پخپلو کورونو کښې کښېناستل او وکيلانو خو
دومره کمال وکړو چه دا کار خو پرېږده خپل وکالت يې شروع کړو او د ټولو نه اول بير سټر
قيوم په وکالت شروع وکړه. د هزاره دوه کيلانو خو داحال و چه خدائي خدمتګار دو مېز کښې په

پلټنګ کولو هغوی کچرۍ بند ولې خدائي خدمتګار به ګرفتار ېدل او په دغو کچرو کښې ستیه۔ ګړې وکیلانو په پیسو باندې د خلکو مقدمې کولې او د ټولو نه عجیبه خبره خولا داوه چه دې وکیلانو نه کچرۍ پرېښودې او نه تحریک. ما پخپله داو کیلان او بیرسټران راټول کړل او ورته مې ووې چه داتا سو د خدائي خدمتګارۍ د اصولو نه مخالف کار دونه کوئ خپل ځانونه او جماعت بدنامي ئ نو مهرباني وکړئ یا کچرۍ پرېږدئ یا جماعت هغوی دې د وارو ته تیار نه وو ځکه چه په کچرو کښې پیسې وې او جماعت کښې عزت وقار زمونږ ځینو خدائي خدمتګار د و ملګرو د پرښه کار د وکړو، پخپلو خلکو کښې کلي په کلي وګرځېدل خلک یې پوه کړل خو حکومت نیول نه، اخر ستړي شول او کار ترې پاتې شو. زمونږ جماعت کښې دا قسم خلک ډېر کم وو، زمونږ تعلیمیافته ډلې هغه که انګریزي تعلیمیافته وو او که مذهبي تعلیمیافته و د قوم او ملک سره یې څه کار نه وا او نه یې څه همدرد ی او د جیبې لوله بلکه د یو معمولي غرض د پاره به یې زمونږ تحریک سره مخالفت کولو. په ستمبر ۱۹۴۱ع کښې د هشنغر په یو کلي شیر پاو کښې زمونږ کیمپ و، دسمبر په غاره نور ځاته طرف ته لګېدلي و د هشنغر خلکو د دې کیمپ انتظام کړې وکوم ځای چه زمونږ کیمپ و د هغه نه چاپېره فصلونه اولو ني لولي ګنډي وې زمونږ د علاقې اسسټنټ کمشنر یو پېرنګي وا او میجر کول یې نوم و زمونږ د تحریک ډېر مخالف وهسې خو هم هر پېرنګي زمونږ د تحریک مخالف وې او هر پېرنګي مونږ خپل دښمنان ګڼي چه په څه طریقه زمونږ تحریک ته نقصان ورسوي بیا هم هغوی هر کار په یوه مناسبه طریقه باندې کوي لیکن دا پېرنګی لا بل شان و دې خو تحریک خو پرېږده زمونږ په مرګ هم حصار نه و. دې چه زمونږ د کیمپ نه خبر شو نو زمونږ کیمپ ته نژدې دوه ورونه کاکاخیل میاګان دو چه ډېر ظالمان وو هغه یې راوغوښتل او ورته یې ووې چه

دغه وخت هندوستان کښې وو، هغه لاځه کوې چه زمونږ دهغه چاچې لور چه د مور میراث یې هغې له ورکړې و مړه شوه نو د شریعت مطابق دهغې میراث نیم زما رسیدو او نور اوسه پورې ماله حکومت راکړې نه دی. دا میجر کول ډیر عجیبه سړې و دا بله عجیبه یې وادی چه چرې به ده نه دخدائي خدمتګارو مقدمه پیش شوه نو خدائي خدمتګار به یو قسم بیان کولو او ده به بل قسم لیکلو دخدائي خدمتګارې په مقابله کښې دهر قسم بې انصافۍ او دروغو ته تیار و ډیر نالایقه سړې و هغه به خپله نالایقي پخپله منله یو ځل ما سره یو ځای شوی و، په خبرو خبرو کښې یې راته ووې زمانه خلک کیلې کوې مګر حقیقت دا دی چه دا د حکومت بې وقوفي ده چه زه یې په دې عهدې ټاکلې یم زه یو نوجې سړې یم زه په قانون څه پوهیږم. ددې نه لو خبرو سره بیا هم هغه پیرنګی و، د پیرنګیانو په راج کښې د پیرنګی د پاره دلایق او نالایق سوال دسړه نه و، بس دغه کافي وه چه پیرنګی دې د دې خدمت په سلسله کښې هغه ترقي وکړه د ډیره اسماعیل خان ډپټي کمشنر ولګیدو.

دهشنغر د کیمپ نه وروسته زمونږ بل کیمپ په دولسم ستمبر ۱۹۴۱ کال کښې په هزاره کښې وشو مونږ به دخدائي خدمتګارو د تعلیم او تربیت د پاره دغه شان کیمپونه کول او ورسره به مو جلسې هم کولې. په ایبټ اباد کښې زمونږ جلسه وه، تقریرونه کیدل زه هم په سټیج ناست وم چه په دې کښې خان میر هلالي صاحب په سټیج و دریدو او تقریر یې شروع کړو چه څه وخت ده د جناح صاحب نوم واخیستو نو د نوم سره سم ما دلمنې نه ونیوو او کښې مې نولو او زه پاڅیدم جلسې ته مخاطب شوم او ورته مې ووېل چه ای خدائي خدمتګارو ورونو مونږ خدائي خدمتګار یو دخدائ ته دخدمت ضرورت نشته زمونږ کار دخدای د مخلوق خدمت دی زمونږ کار په چا اعتراضونه

اونکته چیینی نه ده او دا زمونږ کار نه دی چه په نورو جماعتونو او دهغوی په مشرانو نکته چیینی او اعتراض وکړو زمونږ کار دادی چه مونږ خپل پروګرام خلکوته پیش کړو چه مونږ ستاسو د پاره داغواړو او دا کاریوا ځی نه کیږی دا به هله کیږی چه تاسو دا سره ملګری شئ ملک هم ستاسی او زمونږ شریک دی ، قوم هم شریک دی او کارهم شریک دی . زه به چه کوم جلسه کښې وم او چا چه به خپل تقریر کښې دیو جماعت یا دیولوی سړی نوم په بد ه واخیستو نو ما به کښینولو او پوهولو چه ته خدایی خدمتګاری تا ته په بل کس یا جماعت داعتراض کولو حق نشته ته که خلکوته ښه وایی نو دخپل جماعت په باره کښې ورته وایه حقیقت دادی چه زمونږ دغه اصول وو .

په دې کیمپ کښې دا فیصله وشوه چه مونږ به په اتمانزو کښې دقولی صوبې یولوی کیمپ کوو په نهم نومبر ۱۹۴۱ کښې په اتمانزو کښې یولوی کیمپ وشو په دې کښې زمونږ دقولی صوبې دهرې برخې نه خدایی خدمتګار او دجرګې ممبران شریک شوي وو . دری سوه شپیته تنه پکښې خدایی خدمتګار وو او یوسل وپنځوس دخدایی خدمتګار و دجرګو ممبران وو . ددی نه علاوه دکشمیر شیخ عبد الله ، بخشی غلام محمد او افضل بیګ دخپلو ملګرو سره شریک شوی وو ، دغه شان دبلوچستان عبد الصمد خان اڅکزی سره دملګرو راغلی وو اودغسی دکیمپونو دا سلسله په ټوله صوبه کښې مونږ جاری وساتله او دخدایی خدمتګار و تربیت پکښې په ښه شان سره وشو او دجلسو په ذریعه موږ عام خلکو سره هم تعلقات زیات او پاخه شول او ډیرو کار خلک پیدا شو چه قام او تحریک ته یی ډیره فایده ورسوله .

په ۱۹۴۱ کال کښې جاپان هم په دویم لوی جنګ کښې شریک شو په فلپاین یی

حمله وکړه او چه د برما سرحد ته راورسیدلو کانګرس دا مناسب وګڼل چه پخپلو فیصلو باندې
په دویم ځل غور وکړي د دې دپاره په بارډولي کښې د کانګرس د ورکنګ کمیټۍ جلسه جوړه
شوه . دا پړه همه جلسه وه او لس ورځې جاري وه ، د کانګرس د ورکنګ کمیټۍ د
ممبرانو په مینځ کښې یو اصولي اختلاف پیدا شو هغه دا وچه مونږ د عدم تشدد د لارې
اختیار کړو او که د تشدد د لارې اختیار کړو ؟ کانګرس تول عمر د عدم تشدد د په لاره تللې
او په دې وخت کښې د اکثرو ممبرانو دا رایه وه که چیرې پیرنګیان مونږ له خپل حق را کوي
نو په دې وخت کښې مونږ هغوی سره هر قسم امداد ته تیار یو او د تول عمر د عدم تشدد د
دا اصول به هم قربان کړو ، مګر ګاندهي جي دې ته تیار نه وو او نه زما هغوی سره په دې
اتفاق و ، زه او ګاندهي جي یو طرف ته وو او هغوی تول بل طرف ته وو دا تجویز چه د راندې
شو پاس شو نو په دې وجه ګاندهي جي او ما د کانګرس ورکنګ کمیټۍ نه استعفا ورکړه او
او په دې فیصله وشوه چه په وارده کښې دې زر تر زره د آل انډیا کانګرس کمیټۍ یوه
جلسه وشي او دا خبره دې ورو وړاندې شي . زه په وارده کښې وم چه ماله د دکن حیدرآباد
نه د غني او د هغه سخر او خوابنی د طرف نه خط راغی چه د غني لور وشوه ، مونږ تاته مبارکباد دې
درکوو . زه بیا د دکن حیدرآباد ته لاړم د روشن مشره خور سټیشن ته راغلې وه ، او زه هغې
سره هغوی کره لاړم ، د روشن مور او خور او بودا پلار د پړ ښه ښکلي خلک وو . د هغې پلار
د حیدرآباد د ښه ځایونه ماته وښودل ، د ښار نه بهر د دوی ډېر ښکلي کور وو ، زړه
مې غوښتل چه څو ورځې ورسره تیرې کړم ، هغوی هم نه پرېښودلم چه زه ژر راشم . خو کلي ته
راغلم او کار مې شروع کړو .

د ورکنګ کمیټۍ دا میټنګ ختم شو او مونږ تول خپلو ځایونو ته لاړو ، څنګه چه د

آل انډیا کانګرس کمیټۍ جلسه نزدې وه زه بمبۍ ته لاړم او د جلسې د پاره ایسار شوم د جېلخانې د خوراک په وجه زما غاښونه خراب شوي وو هغه مې اوبنکلي وو او په بمبۍ کښې مې نوي غاښونه اېښودل . سعدالله د بمبۍ په کارپوریشن کښې انجنیرو ، هغه مې خبر کړې ؤ ، هغه نو ټیشن له راغلی و او زه د هغه کره لاړم ، بمبۍ کښې د هغوی ډېر ښکلی کور و صوفیه چې د ده بي بي وه ډېره ښه ځني وه ، ډېره قوم پرسته وه ، زما به يي ډېر مدار کولو ، په دغو ورځو کښې یونس جان هم بمبۍ کښې ؤ او ما سره ډېره و او د جناح صاحب سره ډېر تګ راتګ وا و ما ته يي د جناح صاحب ډېر قصې کولې او را ته به يي وې چې جناح صاحب وايي چه ما نه چا ډېره متول بد ديا نته او خود غرضه خلک دی او که چېرې د عبدالغفار خان په شان یو سړی را سره ملګری شي نو ګوړئ به چې زه به څه څه وکړم . هر سحر چې به کې تلو نو ما به پوهولو چې کوره پام وکړه زما ذکر جناح صاحب سره ونه کړې زما داخیال ؤ چه هغه به ضرور د ده سره زما خبرې کوي چه دی ورسره بغیر زما د تپوس نه څه وعده نه وي کړې چې جناح صاحب د مسلم لیګ د خیال سړی دی او زه د خدایي خدمتګار د خیال سړی یم او مسلم لیګ ما ته ډېر نکیانو جوړه شوې د له ښکاره ده مګر یونس جان زما په نصیحت عمل ونه کړو او اخرې ورسره زما ذکر وکړو . جناح صاحب ورته ووې چه زما له طرفه ورته د چایو دعوت ورکړه . مګر زه هغه شپې له د کانګرس جلسې له واردی ته روان وم ، نو په دې وجه مې ټیلفون په ذریعه د هغه شکریه ادا کړه او معذرت مې ورته پیش کړو او واردی ته روان شوم .

د کانګرس د جلسې د پاره د هندوستان د ټولو صوبو نه خلک راغلي وو خکه چه دا ډېره اهم جلسه وه کوم قرارداد چه ورکنګ کمیټۍ باردولي کښې پاس کړی و هغه وراندې شو

د پر بحثونه پوری وشو، زما هم اراده وه چه ممبرانو ته خپل خیال ښکاره کړم، مګر د جلسې صدر، مولانا ابوالکلام ازاد ماله اجازت را نکړو او هغه قرار داد په اکثریت سره پاس شو د پاس کیدو نه پس ما د کانګرس نه استعفا ورکړه، مولانا صاحب راته ووې چه د اخبار والا و سره د دې ذکر مه کوه. دا زما کار دې زه به یې اخبارونو کښې د خپل طرف نه شایع کړم مګر شرط به داوی چه ته به د خپل ځان په ځای د خپلې صوبې یو سړی مقرروې او که چیرې ستا د صوبې کارکنانو ته ستا د رایې ضرورت وی نو رایه به هم ورکوې. کانګرس هغه د سول نافرمانۍ انفرادی ستیه ګره هم واپس واخیسته. دوی که د پیرنګیانو د خوشحالولو د پاره خو مره خوشامندې وکړې خو د پیرنګیانو په زړونو کښې زمونږ د پاره د رحم ګنجایش نه وو او د دوی یوه خبره یې هم ونه منله.

د کانګرس جلسه ختمه شوه زه پیښور ته راروان شوم ما د صوبې جرګه راغونډه کړه او په اتفاق سره مو ډاکټر صاحب د کانګرس د ورکنګ کمیټۍ ممبر مقرر کړو، د ممبرانو تسلی مې وکړه. دوی ته مې د جرګې کار وسپاره او د خدایی خدمتګارو کار ما واخیستو، مولانا بیا هم زما هغه استعفا شایعه نکړه، اخر دېره موده پس یې شایع کړه. د غوږ ځو کښې جاپانیان په ډېرې تېزۍ مخ په وړاندې روان وو، امریکې او پیرنګیانو له یې ډېر شکستونه ورکړل جنګ د هندوستان سرحد ته را ورسېد، برما هغوی قبضه کړه او په مخه راروان و ملا سره دا فکر پیدا شو چه که دوی د غسې راروان وی نو ممکن دی چه ډېر زر د هندوستان یوه برخه ونیسی او شاید چه ټول ملک کښې ګډ بړی پیدا شی.

زما دا یقین وو چه څنګه پیرنګی ته د جاپان د طرفه خطره هندوستان ته او بیا د یخوا زمونږ اړخ ته رانزدې کیږی نو پیرنګی به ضرور دا کوشش کوی چه په د دې ملک

کښې فساد وکړي ، دا سې خبرونه هم مونږ ته رارسېدلي وو چه پېرنګي د خپلو ایجنټانو
په ذریعه په قبایلي علاقو کښې د دې قسمه غونډې کړي وې تر دې چه یوه غونډه په پېښور
ښبقدر کښې د خان بهادر قلي خان په ذریعه د مومند و رابللې وه چه هغې ته د صوبې
ورنر کننګم صاحب په خپله هم ورغلی وو . مونږ دا محسوسوله چه د پېرنګي به دا کوشش وي
په مونږ پښتانه سره په خپل منځ کښې ورلاندې باسي . نو مونږ له په کار دي چه د دې د
سره د غو علاقو ته خپل خلک ولېږو او د دوی پوه کړو چه مونږ د یو بابا اولاد پښتانه یو
پېرنګیانو د دوی زمونږ نه بېل ساتلي وو . تا سو ته به یاد وي چه کله په ۱۹۳۰ع کښې
پېرنګي په خدائي خدمتګارانو ملک سور تنور کړو نو زمونږ دا تول قبایل ورسره د
مومند و او اپریدو نه واخله تر وزیرستانه پورې د دوی خپلو پښتنو رونړو په مرسته
پېرنګي مقابل ته ودرېدلي وو ، د هغې په نتیجه کښې پېرنګي خپله تول توجه د یخوا او کرخوله
د دې لر او بر پښتنو شلول ته وښي ، او زمونږ او د دغې قبایل رونړو د تعلقاتو د خرابولو
خاطر زمونږ په منځ کښې په هیڅ قسمه فریب د هوکې دروغ او بې ایمانۍ پې صرفه ونکړه .
چه د خدائي خدمتګارۍ تحریک شروع کړو نو د پېړ خله مې دا کوشش وکړو چه زه د
قبایلو دې ورونو له لاړ شم دا د پښتنو تحریک دی ، دوی هم پښتانه دي چه دې تحریک
ې مونږ سره شریک شي ولې پېرنګیانو پرې نه ښودم ولې چه پېرنګیانو وې چه د هغوی
زمونږ په منځ کښې ورور ولي جوړه نه شي ، د قبایلو مسئله زمونږ قامي مسئله وه زما
خیال زمونږ د مرګ او ژوند مسئله وه ، د دې کار د پاره ما د خپلې صوبې دوره شروع
چه خپلو خلکو سره په دې حق کښې سلا او مشوره وکړم او د دې کار د پاره خدائي خدمتګار
کړم چه هغوی دې د قبایلو علاقې له لاړ شي او خپلو پښتنو ورونو کرځې هغوی دې د

موجوده حالاتو نه خبر کړي او په هغوی کښې دی ورو ورولی، عزیز داړی، اتفاق پیدا کولو کوشش وکړی.

په دغو ورځو کښې پیرنګیانو یو وزیر هندوستان له رالیږلی و چه د هندوستان او انګلستان په منځ کښې روغه جوړه وکړي ددهٔ نوم سر ستیفورډ کریپس و، زه په کوهاټ کښې وم چه ډاکټر صاحب را ته ټیلفون وکړو چه دغه شان قصه ده او ما سپی دوړ ګنګ کمیټی نه خبر راغلی دی چه شمله کښې حاضر شه، ما ورسره اتفاق وکړو او ورته می ووي چه لاړ شه څکه چه مونږ تولو دا غوښتل که پیرنګیان په روغه جوړه مونږ له خپل حق راکوی نو ددی نه به ښه خبره کومه وي، ډاکټر صاحب لاړو دغه وخت به پیرنګیانو ډېر سخته وه جاپان د سیلاب په شان راروان و او دهرچا دا خیال و چه جوړه به وشي او مونږ له به خپل حق راکړي مګر پیرنګیان د هندوستان پرېښودو ته کله تیار وو؟ د دغو خبرو په ناکامی د هندوستان خلک ډېر مایوسه شو او دا یقین یې وشو چه پیرنګیان مونږ له خپل حق نه راکوی او دا شک یې پیدا شو چه پیرنګیان به هندوستان جاپان ته پرېږدي او مونږ ته یې نه پرېږدی دی مایوسی د خلکو عقیده هم کمزوری کړه خلکو به وي چه په عدم تشدد خه کیدی نه شی مونږ له به کار دی چه د خپل ملک دازادی د پاره د تشدد نه کار واخلو دغه وجه وه چه د هندوستان په مختلفو علاقو کښې ډېر تشدد وشو. د یورپ او امریکې هم ډېر عجیبه خلک دي، د جنګ نه مخکښې به دوی او ددوی اخبارونو د ګاندهي جی ډېر زیات تعریفونه کول او عدم تشدد یې د دنیا دامن، صلح، ابادی او ترقی د پاره ډېر ښه سیکم ګڼلو مګر کله چه جنګ شروع شو نو بیا خو پیرنګیانو او امریکې ته امداد ضرورت وا و پخپله یې په تشدد د لاس پورې کړې و هغه وخت یې په عدم تشدد

کښې کته وه او اوس یې تشدد په کار و نو چه کانګرس یا ګاندهي جي به د عدم تشدد نوم واخیستو دا به د دوی په طبیعت بدلګیدو او د ګاندهي جي برخلاف به یې په اخبارونو کښې لوی لوی مضمونونه چاپ کول ما چه به دغه مضمونونه ولوستل نو د غو خلکو پورې به د یر خندل راتلو او دغه خلک به هم دا نه د خپلو خلکو په شان خود غرضه او بې صوله ښکاریدل.

## قبایلو ته د خدائي خدمتګارو وفدونه:

ما د تولې صوبې دوره وکړه، لوئې لوئې جلسې وشوې او ټولو خدائي خدمتګارو سره سلا مشوره وشوه. ټولو ما سره دا ومنله چه په دې نازک وخت کښې په کار دي چه خپلو قبایلي ورونو له لاړشي او هغوی په دې ټول حقیقت پوه کړي. د صوبې دوره مې شروع کړه او د دې کار او خدمت د پاره د صوبې په ټولو ضلعو کښې د یرو کسانو ما ته خپل خدمات وړاندې کړل. زه چه د دورې نه بیرته راغلم نوشاد محمد مبرې مې ملکنډ ایجنسي ته ولیږه، په ملکنډ ایجنسي کښې زمونږ د یر خدائي خدمتګار وو په ۱۹۳۰ کال کښې چه په نورو ضلعو کښې د خدائي خدمتګارۍ تحریک شروع شوی و نو د غلته هم شروع شوی و او د دې ایجنسۍ پښتنو ورونو د ۱۹۳۰ کال په جنګ کښې مونږ سره سمه برخه اخیستې وه شاد محمد خوشحال خوشحاله د غلته کار وکړو خو کله چه پولیټیکل ایجنټ خبر شو نو هغه یې فوراً ګرفتار کړو او دوه کاله یې سخت قید کړو.

پیر ټنګیانو به هیڅ شان نه غوښتل چه مونږ د دې غلته کار وکړو خو مونږ هم فیصله کړې وه چه د دې نازک وخت کښې به د قبایلو ورونو علاقه کښې کار کوو ولې چه دا خو زمونږ د آبادۍ او بربادۍ سوال دی مونږ دا فیصله وکړه چه که پیرنګي اجازه کوي که نه خو مونږ به د غلته کار کوو او په پښتنو کښې به پوهه او اتفاق پیدا کوو.

زمونږ د صوبې کورنۍ سره جاړج کننګم و دی ډېر نرم، هوښیار او چالاک سړی و د
ماورته یو خط په دی مضمون ولیکه چه: «نن په دنیا کښې د انقلاب یو زوروور سیلاب راروان
دی، مونږ ویرېږو چه چیرته زمونږ په کور کښې کړ بړ جوړ نه شي او مونږ په خپلو کښې برباد نه شو
نو د امن د قیام د پاره مونږ دا خبره وړ ګڼو چه آزادو قبایلو ته وفدونه ولېږو او هغوی د دې
حقیقت نه خبر کړو، مونږ تاله تسلی درکوو چه مونږ هلته ستا سو د حکومت برخلاف د هیڅ قسم
کار نه کوو مونږ خپل غم اخیستی یو او هغوی سره به خپله د وروری، همدردۍ او وفا مولی
خبره کوو، امید دی چه خومره زر کېدی شي ته به مونږ ته د دغه خیر کار د پاره اجازت
راکړې څه ورځې تېرې شوې، زما د خط ځواب راغی بیا می وته ولیکل که چیری ستا خوښه وي
او که دی خوښه نه وی مونږ نور ستاد اجازت انتظار کولی نه شو. د فلانی تاریخ پورې که ستا
اجازت راغی مونږ به خپل وفدونه دې علاقو ته لیږو، مونږ د خپلو وفدونو د لیږلو د پاره
۵ د اګست ۱۹۴۲ کال مقرر کړی دی.» دا لیک می د یونس جان په لاس کورنر له ورلیږه کورنر
نه ګلی کښې و. یونس جان چه نته ګلی ته ورسیده نو ورته معلومه شوه چه کورنر په خپله بنګله
کښې ټول پولیټیکل ایجنټان او د صوبې ټول ډپټی کمشنران راغوښتی وو او هغوی سره
په دې معامله کښې سلا کوی یونس راته داهم ووې چه فیصله یې په دې وکړه چه د صوبه سرحد
علاقه کښې دوی نه منع کوو او په آزادو قبایلو کښې به د پولیټیکل ایجنټانو په ذریعه څومره چه
کېدی شي مونږ ته به مشکلات پیدا کوي او زمونږ د خیر دا کار به ناکامیابه کوي یونس جان
زما د خط ځواب راوړو هغه کښې کورنر مونږ له یو قسم اجازت راکړی و مونږ سباله د کلامد ارخان
په مشرۍ کښې یو وفد د ملکنډ په لاره باجوړ ته ولیږه کله چه وفد د ملکنډ ایجنسۍ ته ورسید
نو د ملکنډ پولیټیکل ایجنټ د سمې او سوات راهیزی، خانان، ملکان راټول کړي وو او

زمونږ وفد ته یې لاره نیولې وه او وړاندې یې نه پرېښوول. پیرنګیانو مونږ ته لوی
شر او فساد جوړ کړی و او مونږ یې کورکښې جنګولو. دوی کامدارخان د وفد مشر ته ووې
چه تاسو واپس ځئ مونږ لاړ نه دکوو هغه ورته ووې چه زمونږ کتاب کښې واپس تلل
نشته مونږ به یا وړاندې ځو او یا به مړو او که باچاخان راته ووې چه واپس شئ نو بیا به
هلته واپس شو، اګرچه ددې خانانو، ملکانو نیت ښه نه و او د پولیټیکل ایجنټ په بدنیت
دالېږلی وو مګر کله چه دوی زمونږ سره دخلکو جوش او همدردی ولیده نو د لارې د بندولو
جرئت یې ونه کړی شو او بیا ددغو ملکانو، خانانو جرګه ماله مرکز ته راغله او ما ته یې منت
وکړو چه مونږ پولیټیکل شرمویې ته دا جرګه واپس کړه، ما دوی ته وکړل چه دا جرګه خو تاسو د
پښتنو دخیر د پاره مادرالېږلې ده خو هغوی د پیرنګی نه په مجبور وو اخر فیصله په دې وشوه
چه په ملکانو کښې د ملکانو ایجنسۍ کار به مقامی خدمتګار کوی او مونږ به یې نه منع کوو او
دا وفد دې د ملکانو په ځای دکوټ او اکرې په لاره باجوړ ته لاړ شي ما ورله د وفد په
نوم خط وکړه چه تاسو د ملکانو دلارې په ځای دکوټ او اکرې، اتمانخیلو په لاره باجوړ ته
لاړ شئ. دکوټ کلي کښې کاکاخیل، میاګان وو هغوظالمانو د پولیټیکل دخوشحالی د پاره
زمونږ وفد وواهه، په کانو یې ووېشتل ګریوانونه یې ترې وشلول. باجوړ کښې هم پیرنګیانو
د وفد د رسیدو نه مخکښې جاسوسان لېږلی وو او پیسې یې خوری کړې وې چه دا وفد
هندوان دي او دهندوانو ایجنټان دي او دمسلمانانو غلام کوله هندوانو دالېږلی دی
او په ده دا افسوس خبره داده چه باچاګل صاحب دحاجی صاحب د ترنګزو مشر ځوی هم
زمونږ خلاف دغسی پراپیګنډه په خلکو کښې کړې وه په یو ځای کښې هلکان زمونږ د وفد
مړګ ته تیار شوي وو خو مشرانو منع کړل او ورته یې ووې چه صبر وکړئ چه دوی راشي او

مونږ ترې پوښتنه وکړو ، وفد چه کلې ته ورغې حجره کښې کښېناستل ، نو عبدالمالک صاحب فدا پاڅېد او هغوی ته یې ووې چه زمونږ پښتنو ورونو مونږ باچاخان تاسو له د دې له پاره رالیږلی یو چه په دنیا کښې د جنګونو یو لوی سیلاب روان دی که مونږ بې خبره پاتې شو نو لاهو به شو . باچاخان وی چه زما ورونو ته ووایئ چه پرې جنبې پرېږدئ نېږدې کښېږدئ ورغې جوړې وکړئ چه مونږ د غه وخت کښې د دې قابل شو چه یو بل سره امداد وکړو او د سیلاب نه ځان وساتو او باچاخان داهم ویلي دي چه تاسو خرڅې کوئ هسې نه چه سبا په جنګ کښې کارخانې بندې شي او تاسو بربنډه پاتې شئ او غلې دانې په کور وکښې وساتئ چه وږي پاتې نه شئ . اوبل وفد مونږ باچاګل صاحب له مومند وله د فضل رحیم ساقي صاحب په مشرۍ په ۱۹ اګست ۱۹۴۲ کال کښې ولیږلو دوی اول باچاګل صاحب سره ولیدل او ورته یې ووې چه باچاخان وې چه زمونږ او ستاسو خو ډېر تعلقات وو دا څه چل دی چه نیپه اخبارونو کښې په مونږ ستا د طرفه د کفر فتوې چاپ کېږي او د سیکو ډېرې پولیټیکل ایجنټ قلي خان پچیل لاس هغه خانانو لیسې کرځوی او هر چاته وایي چه وګورئ باچاګل صاحب به باچاخان باندې د کفر فتوا لګولې ده . زمونږ خو دا خیال دی چه دا کار پیرنګیان د خپله ځانه کوي . باچاګل صاحب زمونږ ساقي صاحب ته اوږده قصه وکړه او دا اقرار یې وکړو چه دا ما لیږلې دي چه اخبارونو کښې دا خبرې چاپ شي او خلک د باچاخان نه واوړي . پیرنګیانو د کابل حکومت سره هم سلا کړې ده چه که مونږ په جاپان جنګ بایلود نو دا ټول د صوبه سرحد ملک به تاسو ته پرېږدو او دا پښتنانه د اسلام په نوم د جاپان سره وجنګوئ که جنګ موږ وګټلو نو ستاسو حکومت به پرې جوړ شي . باچاګل وې چه زه د دغه د پاره میدان اوارووم ، نو ساقي صاحب ورته ووې چه صوبه سرحد کښې خو نور تنظیمونه هم شته د هغوی برخلاف ولې قدم

نه اوچتوي نو هغه وخندل او ويل چه مونږ ته خو باچاخان يو لوى خدمت په لاره کښې
پروت دى دا ستور تنظيمونه خوزه په يو سوک سمولي شم. خوساقي صاحب ته دا پته ولګېده
باچاګل صاحب چه دا څه کوي د افغانستان د صدر اعظم محمد هاشم خان په اشاره يي کوي.
وفد بيا په ټولو مومندو کښې کلي په کلي کښې وګرځېدل او زما د ورور ولۍ او عزيز ولۍ پيغام
يي هرچا ته ورسولو. مومندو ورونو ورسره هر ځاى دعا د خير وکړه او د مومندو مشرانو
او ملکانو ټول د باچاګل نه برخلاف شوي وو ځکه چه ده په افغانستان کښې خپلو خوشامند-
ګرو له لونګۍ ورکړې وې. دا وفد پنځوس ورځې پس واپس شو او مرکز ته ماله راغلل او د
خپلې دورې رپورټ يي مفصل راکړو، ما يو وفد تيراته، افريدو ورونو له هم لېږلى وو
هغه په څه وجوهاتو واپس راغلو. نوساقي صاحب د وردګى ته مې ووې چه زه غواړم
چه ته د دوو نورو خدايي خدمتګارو سره تيراته لاړ شې او هغوى ته زما له طرفه د ورور ولۍ
عزيزدارۍ او اتفاق پيغام ورسوې چه که چيرې د دې جنګ مصيبت زمونږ په ملک
راشي نو چه مونږ يو بل سره د تکليف په وخت کښې امداد وکړې شو او که خداى پيرنګيانو نه
زمونږ ملک آزاد کړو نو چه د ټولو پښتنو قومي جمهوري حکومت جوړ کړې شو، ساقي صاحب
او د دزړو فقير محمد او د پېښور تحصيل د پاوکي کلي عبدالمجيد خان مې ورسره ملګرى
کړل. دوى په ۲۱ اکتوبر ۱۹۴۲ کال تيراله لاړل، په مختلفو لارو کښې ورته پوليټيکل ايجنټ
يو ويشت سوه خاصه دار کښېنولي وو خو دوى ترې خداى په امان کړل او تيراته ورسېدل.
دوى د افريدو او اتو قومونو کښې او د ورکزو څوارلسو خېلونو کښې قامي جرګې جوړې کړې ټوله
تيرا کښې يي دورې وکړې، خلکو ورسره د ورور ولۍ سلوک وکړو. ماله د دې وفد د تلو نه
وړاندې خوشحال خان ملک دين خيل راغلى وو دې وفد زما ځاى له راولېږه، زه به ورسره

کاروکړم. ماورته وویل چه مونږ سره خوپیسی نشته دي زمونږ خود کار دخدای دپاره

کوو خو ده ډیر اصرار وکړو او وویل چه زه خو هم دخدای دپاره کوم نو ملا دوفلار ددغه

ځای له ولیږلو ما دخپله طرفه ساقی صاحب له څه پیسی ددوی دخپل خرچ دپاره اودچرګی

دپاره ورکړي دوی چه لاړل نو هلته يي کار شروع کړو جرګه هم وشوه او خدمت يي هم

شروع کړو په تیراکښی يي دوړی شروع کړي؛ شیخ محبوب علي پولیټیکل ایجنټ وا ودحکومت

زمونږ دا کار نه خوښولو نو هغه وړلیسی لګیدلی و. دغو ورځو کښی عاشق شاه باچا زما د

اجازت نه بغیر وړلیسی تیراته لاړو او زه نه پوهیږم چه په کوم خیال يي داسی خبری وکړي؛

چه دخوشحال خان ملک دین خیل دا خیال پیدا شو چه دوی سره خو ډیر سال دی او دهند-

وستان ددوی هر قسم خدمت کولو ته تیاردی، نو بیا عاشق شاه باچا واپس راغی او

خوشحال خان د ساقی صاحب نه دپیسو مطالبه وکړه ساقی صاحب ورته ووې چه مونږ

سره خوپیسی نشته سره ددوی جولوکښی واچوو او جلسی لځو او که ملاسر خیل ملک

په چاخرخول غواړي نو بخپله ورسره خبره وکړي ده رټ ځواب ورکړو چه زما دځای نه

څۀ زما فقیران نه دي په کار نو هغوی افضل خان زخه خیل خیل کورته بوتلل او هغه ورسره

دوه نیم کاله په تولیه تیراکښی دخدای دپاره کار وکړو او د باړوان د صاحبزاده کانو سره

دیره و هغوی هم دوفد سره دخدای د پاره ډیر کار کړي دی تیراکښی صرف دوه بزرګان

داسی ووچه ډیر نکیانو دا ثر نه بچ وو یو دخو کنو دانګوری ملا صاحب او بل دباړوان

صاحبزاده صاحب عبد الرزاق، دمحمود اخونزاده زوی محمد سعید خورته سپین

ووي چه زمونږ لنګر او نور کار و بار دقول دپیرنکیانو په امداد چلیږي داسی وړله دغو تږي

بزرګ صاحب هم ځواب ورکړی و.

د وزیرو آزادو قبایلو ته می یو کسیز وفد میرزا تاج محمد خاموش لیږلی و هغه وزیرو ته ورسیدل او فقیر ایپی صاحب سره یې ملاقات وشو او زما د ورور ولی پیغام یې ورورسولو خو قام کښې ورته کرځېدو ځکه چه فقیر صاحب ورته ووی چه دلته ستاد کرځېدو حاجت نشته دا قام جوړ شوی دی زه چه څه ورته وایم هغه کوي نو دی واپس راغی.

بل وفد کښې د پرانګو عبد الحکیم ستی جان او د بیټنو جرنیل عبد الرحمان می مسعود وورو ته ولیږل خو هغوی د واړه حکومت کو فتار کړل، ستی جان یې واپس راولیږه او جرنیل عبد الرحمان بیټنی د ټانک د وه کاله قید شو چه ته ولی د هشتنغر د سری سره مسعود و له روان وې. یو وفد می د تل او هنګو د خدایی خدمتګارو کره می ته ولیږه هر کله چه سدتې ورسیدل نو یو جومات کښې دیره شول، د کرمی پولیتیکل ایجنټ ورپسې خپل ملکان او سپین ږیري راولیږل. هغوی دوی ته ووې چه ښه به داوي چه تاسو واپس شئ او دلته ونه کرځئ دوی ورته ووې چه داولی مونږ خو تول دیوې علاقې پښتانه یو تاسو هلته راځئ او مونږ دلته راځو. ملکانو ورته ووې چه مونږ د پولیتیکل ایجنټ نه مجبور یو تاسو خپلې علاقې له نه پرېږدو، د ډېر بحث نه پس هغوی د وفد د غړو پښې لاس وتړل او موټرک کښې یې واچول او تل او هنګو له یې ورسول. هغوی هم راغلل او ماتی یې داحال ووې.

زمونږ د دې وفدونو په تلو کرځېدو کښې او خلکو سره لیده کاته او تبادله خیالاتو کولو په وجه آزادو قبایلو ورونو کښې لو یه تبدیلی پیدا شوه او په پښتنو کښې د تاموله وورو ولی احساس او پوهه پیدا شوه، زمونږ د باجوړ د وفد مشر کامدارخان دو چه ورسره صدر صاحب محمد اسرار او فدا عبد المالک او ناظم سرفراز خان هم وو کامدارخان چه واپس راغی نو دا نو ملګری می شاته باجوړ کښې پاتې شول، او میان صاحب.

عبدالحکیم دچینګئ سرغ دیره شول.

بچولړي دتعلیم ورکولو دپاره یوه مدرسه هم پرانستنه دهغی هم پرېږښه اثر وشو

زمونږ یو خدایی خدمتګار دباجوړنه پېښور ته راتلو چه په لاره په مومندو کښې غلو

وشو کولو، دباجوړ خلک په دې ډیر خفه شو او تش خفګان نه هسې پې وکړه او دهغو غلو نه

پی حساب واپس واخیستو او هغوی معافی هم وغوښتنه.

پیرنګیانو او دافغانستان حکومت زمونږ ددی وفد و نوړ نه کامیابه کولو

ډیر کوششونه کړې وو خو خدای کامیاب نه کړل. داخیره مامحسوس کړې وه چه دهغه

تحریک دپاره یو مرکز ضروري وي ډیر ځایونه می وکتل خو په څه وجوهاتو به پاتی شول

دسر دریاب ډېل نه په قبله دکو دو اوسره یاب منځ کښی دسیند په غاړه یوه ښته

وه یو میل بره سویل غاړې ته یوچین او میدان و، دغه ځای ځنګل و تنهایي وه دغه

ځای موخوښ شو او داګری او کو ډو پېښتنو دا مځکه دمرکز دپاره وقف کړه.

په ۵ اګست ۱۹۴۲ کال مونږ دچارسدی دکیمپ نه وروسته مرزا تو الوخدایی -

خدمتګارو دمنیرخان دباغ نه دخرو لوخانګی وریبلی هر چا دځان سره، سره زما چه خو

ځانګی اخیستی شوی هغه مور او اخیستی او بچلو پېښور س دریاب ته رو ان شو.. دلګو نیلی

ولیست محمد اسرار خان صاحب کړې و، مونږ لاړو ستنی مو بنجی کړې لړی مو

پری سواره کړل، لیښتی اولوخه موپرې واچوله او دغلته دیره شوه، شپه او ورځ به

لس، اته خدایی خدمتګار به ماسره دغلته وو، دوی به راله وارث خان چوله اوکتوی

به موپخیله بخوله، ددی ځای نه مونږ دټولی صوبي دخدایی خدمتګارو سره رابطه قایمه

کړه، ددوی چه به څه کارو و دلته به ماله راتلل او زما چه به څه کارو و دخدایی خدمتګار

په ذریعه به مي خبرول دغه محکمه بنځه وه، مونږ به دسحر دچای نه پس تشکور ی
واخیستلی په کاربه موشروع وکړه، دوددي دوخت پورې به مومحکمه جوړوله بیا به موپه
هغه کښې سبزي کول شروع کړل، اتمانزو کښې دغنی بنځې وه په هغې کښې مود مرکزدپاره
دخښتو انتظام وکړو او دپرانګو او با بړې خدایي خدمتګارو دهغود راوړلو دپاره دوه
دېرې ډیرې راوستې وې چه دهغې یوسر مرکز ته رارسیدلی و بل سرېي اتمانزو کښې و
دغه شان په یوه ورځ کښې ټولې خښتې راوچلیدې: دآبادۍ دپاره مود سیند په غاړه
ځای خوښ کړو هلته مو یو هال دهغه سره دوه کمرې او دواړه طرف ته برنډې
جوړې کړې او دویم چت په جوړولو موشروع وکړه، دیوالونه جوړ شوا و چت پرې لانه
جوړ شوی، چه پاکستان جوړ شو او مونږ ګرفتار شو ددې په ابادۍ کښې ټول کار خدایي
خدمتګارو په خپله کړې وو. زه به هم ورسره لګیا وم ګلکاره به مې خښتې ورکولې. دهرې تپې نه
به لس، پنځه لس خدایي خدمتګارو ادېه وار راتلل او خپل خرڅ، خوراک به یې هم دځان سره
راوړل. یوه هفته کار به یې کولو بیا به دبلې تپې خدایي خدمتګار راتلل. زمونږ اراده وه
چه دلته به سکول او هسپتال هم جوړ وو او ډېرو خلکو داخیال ظاهر کړې وچه مونږ به
دلته ځان له کورونه جوړ وو تردې حده چه مونږ دلته دخپلې مقبرې فیصله هم کړې وه.
بیرسټر قیوم چه وزیراعظم شو نو دمرکز دورانولو او لیلام مولو فیصله یې وکړه داګرې خانانو
ورته ووې چه دا ځای ورانوه مه دا خوهسې هم زمونږ جاید اددی، مونږ به یې لیلام
کښې واخلو اوملرسره یا هسپتال به یې کړو، قیوم وې چه زه به داخامخوا ورانوم او
ددې خدایي خدمتګارو دمرکز دانښه ورکوم ځکه چه که دلته یې نښنه پاتې وې نوچه
بیا دوی په لاره ځي وایي به چه دغه زمونږ مرکز وچادې لیلام ته غاړه کښې نښودوه آخر

د شپږم نمبر کلي یو مومند نور محمد واخیستو او په ہمونو یعني د اینامینټ باندې یې ورله بنیاد-
ونو پوری والو زول + نور محمد لسپنتون گرو. ده فیرنگی ده خوشحالو وول . او قیوم ته ده

## د هندوستان پریږدئ تحریک:

کله چه د کرپس مشن ناکامیاب شو نو د هندوستان په خلکو کښې مایوسي پیدا اشوه زړه
او د افکرلي پیدا شوچه بغیر د مقابلې نه پیرنګیان مونږ له څه نه راکوي په دغو وختو کښې په بمبې کښې
کښې د ورکنګ کمیټۍ اجلاس و، په دې وخت کښې د کانګرس (QUIT INDIA) یعنی «د هندوستان
نه ووځئ» تجویز پاس کړو او مهاتما ګاندهي او د ورکنګ کمیټۍ ټول ممبران ونیوی شو د دې
د نیول کیدو سره په ټول هندوستان کښې د پیرنګیانو برخلاف زور و رجد وجهد شروع شو
چه د کانګرس ذمه دار کارکن پیرنګیانو قید کړي وو او دوسته څوک ذمه دار کسان او مشران
پاتي نه وو او خلک هم د پیرنګیانو نه مایوسه شوي وو. نو خلک د عدم تشدد په ځای د تشدد
په لاره روان شول. پیرنګیانو د تشدد د مقابله په تشدد وکړه او پیرنګیانو هم داغوښتل هغوی
له عدم تشدد د مقابلې چل نه ورتلو او د تشدد د خو هغوی سره د ومره سامان وو چه د پیرزدلي
د تشدد تحریک ختم کړو او په خلکو یې دومره زور ظلم او زیاتي وکړو چه په دنیا کښې به د وحشي
نه وحشي قوم په چاکړی نه وي، سړي خو پریږده چه د ښځو سره یې داسې سلوک وکړو چه
په لیکلو یې ماله شرم راځي. د ګنهګار، بې ګناه تمیز نه کولو، د ښمنان څه چه د خپلو وفادار
ملګرو د ښځو سره یې زیات شرمناک سلوک وکړو. داسې واقعات یکښې راغلي دي چه د فوج
او پولیس د کاروائي نه علاوه پیرنګیانو په کلو باندې د هوائي جهازو نه په میشن ګنونو ګولۍ
ورولی دی او کلو باندې یې بمونه غورزولي دي. د سرحد په صوبه کښې زمونږ جرګه او خدائي
خدمتګار هم راټول شو چه په دې خبره غور او فکر وکړي چه په دې وخت کښې مونږ له څه

کول په کار دي، کانګرس د هندوستان په هره صوبه کښې د جد و جهد د پاره یو ډیکټیټر مقرر
کړې و د غسې زه یې د دې خپلې صوبې ډکټیټر مقرر کړې وم. ما ته دې اجلاس کښې حاجي فقیرا
خان ووې چه ته خو د دې صوبې ډکټیټر مقرر شوی یې مونږ څه له د اغواړې حکم کوه مونږ به
د هغه تعمیل کوو. ما ورته ووې چه دا خبره خو ټیک ده، خو زما په طبیعت کښې ډیکټیټرۍ نشته
زه به هر یو کار د ملګرو په مشوره باندې کوم، دیو دماغ په ځای به د ډېرو دماغونو فیصله
غوره وي. په اجلاس کښې د هزارې حاجي فقیرا خان ووې چه مونږ له په کار دي چه
تاړونه پرې کړو او پلونه وران کړو. ما ورته ووې دا تشدد دی خو بیا به هم تاله اجازه درکړم
خو دومره وایم چه کوم سړی تاړ پرې کړي یا پل وران کړي نو نیغ به تانې له ورځي او د پوټ
به کوی چه دا کار ما کړې دی، ځکه چه زه د پیرنګیانو حکومت نه غواړم. د دې فایده به دا وي
چه د دې کار په وجه به د غه کلو عامو خلکو باندې تشدد نه کېږي هر څه سزا چه وي دی به برداشت
وي او که داسې ونه کړئ نو د کلو په خلکو به ډېر تشدد د وشي او د هغوی چه مونږ سره کومه
ملاوه دی دا هغه به ختمه شي نو دغه تجویز په ځای پاتې شو. بل تجویز ما وړاندې کړو چه مونږ له
ول وفدونه هر یو علاقې او هر یو دلیسې افسره لېږل په کار دي چه دوی ته ووایو چه کویټ.
ملیا قرارداد پاس شوی دی نو تاسو له په کار دي چه نوکرۍ پرېږدئ. بل دا تجویز پاس شو چه د پیرنګیانو په
عدالتونو به چپاوونه کوو او د کرسونه به یې پاڅوو او عامو خلکو ته به وایو چه خپلې فیصلې کور کښې پخپله کوئ پیرنګیانو له
به ځئ دا خو زمونږ د قوم او ملک دښمنان دي او پیرنګیان خپل حکومت په مونږ باندې هم د دې نوکرانو
په ذریعه چلوي. خو چه زمونږ وفدونو پوره نتیجه ورنه کړه نو مونږ بیا چپاوونه شروع کول.

## چپاوونه:

په پېښور، مردان، کوهاټ او بنو کښې خدائي خدمتګارو د ضلعو کچهرو باندې چپاوونه شروع شول او خدائي خدمتګار

چانه گرفتار ول بلکه په بدی دی سره به یې ووهل دا وهل به پولیس کول او د پولیس سره به د خانانو او ارباباتو ډله هم د کومک د پاره ملګری وو او څه موسندیې هم د خدایي خدمتګارو د وهلو او د سرکار د امداد د پاره راغوښتی وو، په مردان کښې هم د غه حال و مګر هلته د خانانو ډله مالره وه. د سوات باچا میاګل صاحب هم سواتیان د دوی د وهلو د پاره د سرکار په امداد کښې رالیږلی وو. دی ظالمانو به په داسې ناترسۍ وهل کول چه زه یې بیانولی نه شم د چاسر او پښه به یې نه کتل او اکثر به یې خدایي خدمتګار د غوبل د غوایانو په شان په پښو وهل. اکثر خدایي خدمتګار به زخمیان شول، د چاسر مات، د چا لاس او د چا پښې. څوک به په وهلو کښې مړه شول، د پښېنور د ډپټی کمشنر په دفتر چه خدایي خدمتګار و چاپاو وکړو نو د نورو کوتک مار و سره ډپټی کمشنر مرزا اسکندر په خپله کوتک په لاس راووتو او په خدایي خدمتګارو یې راباندې کړل. حالانکه پیرنګیانو مونږ پسې کوتک را اخستی نه دی، او نه یې خپل لاس مونږ وهلي یو، خو دی مسلمان ورور مونږ پسې کوتک را اخستو او په دی وهلو ټکولو کښې به خدایي خدمتګار هم. ایډیشنل پولیس او انتظامي پولیس دایری ماتی کړې او په کچهری به ورننوتل، او حاکم که به پیرنګی وو د ره به یې وویل چه پیرنګیه ته د او زرو میلو نه راغلی یې. دا زما ملک دی، دا مونږ ته پرېږده او ته خپل ملک ته ځه او که دیسي به وو نو ورته به یې وویل چه قوم فیصله کړې ده چه ته د پیرنګیانو نوکری پرېږده. سید اکبر خدایي خدمتګار د سکندر مرزا په ګذار به زړه، ولګید او او د غلته شهید شو. پیرنګیانو خپل لاس وهل نه کول. د دې چپاولو ګمانډر د کوچرو ګړۍ شاکر الله باچا وچه د اچپاو و نه یې دومره په ښه د رې او هوښیاراتیا منتظم کړې وو چه هغه پیرنګیان چه ده سره یې مقابله کوله پری قایله وو.

د مردان، د چپاو کماندر سالار منیرخان و او بیا عبدالعزیزخان و هغه هم ډیر په
بهادرۍ د غه چپاو ته چلوي وو. د چپاو نو زور په لویه پیمانه یا پېښور کښې و یا مردان کښې و
مردان کښې به د مړي کچرۍ په ورانډې پولیس او ایډېشنل چا پیره کوتک په لاس
ولاړ وو. خدائي خدمتګار به راغلل - نعرۀ تکبیر الله اکبر، فخر افغان زنده باد چغه به یي وهله
او د پولیس او ایډیشنل ګېره به یي ماته کړه او به کچرو به ورننوتل او دې پولیس او کوتک ملو
به یي را باندې ګوزار مات کوو به یي کړل بیا به یي لارې کښې واچول او چیرته لیرې به یي
د غورځول هلته به د دې چپاو د حالاتو معلومولو او د سلا مشورې د پاره دوره ي کولې خو
حکومت زه نه منع کولم. آخر د حکومت پالیسي بدله شوه او کوم خدائي خدمتګار چه به
چپاو ونه کول د دوی نه علاوه د هغوی نیول یي هم شروع کړل او د دې خبرې تجویز یي هم وکړه
چه زه تری څه کار ونه کړی شم. زه د کار د پاره مردان ته روان وم، د مردان نه بهر راته
پولیس ناست وو. هغوی ونیولم او را ته یي ووې چه مردان ته ستا د تلو اجازت نشته
په موټر کښې یي کښېنولم او بېرته پېښور ته یي راوستم د ښار نه یي بهر پرېښودم. بل ځل
کوهاټ ته روان شوم، سپینې تانې سره پولیس ناست وو مونږ یي د لارې نه کوز کړو
تول ورځ یي را باندې سپینه تانه کښې تېره کړه ماښام یي په لارۍ کښې پېښور ته راوستو
او هلته یي پرېښودو د وما د حکومت دا طریقه مناسبه ونه ګڼله د قوم د خبردارۍ د پاره مې د
پېښور په چوک یا د ګار کښې جلسه جوړه کړه، په دې جلسه کښې ما خلکو ته د دې خبرې ورانډې کړې:
یوه دا چه د حکومت دا زما سره کومه طریقه روانه ده، دا ما ته توقع نه وه کارې ما سره دي دا
توقع نه کوی پا دې، ما و نیسي او یا دې ما پرېږدي. بله دا چه که چیرې مونږ له خدای کته
را کړه او مونږ آزاد شو نو دا خبره زما یاده ولرئ ملک زمونږ د ټول قوم او ټولو پښتنو

سپکې خبرې وکړې زه پخپل ځان وم د دومره مې ورته ووې چه پښتانه داسې خبرې نه کوي ستا مطلب وشو پېرنګیانو ستا خبرې واورېدې ترقي به دې وشي. همدغه شان وشوه زه يې د هرېپور جېلخانې له بوتلم او چکۍ کښې يې بند کړم ډاکټران او هسپتال هم و خو هغه زما د پاره نه و قیدیان خو څوک د خدای بندګان نه ګڼي. زما به ټول وجود د درد نه کول او شپه د پر سخته تېره شوه سبا له ډاکټر وکتم هغه پرېشانه شو څه ملهم غوندې يې زما په پښتو پورې کړل چه سپرنټنډنټ راغی ما نه يې تپوس وکړو چه څنګه يې ؟! پښتانه که د پر تکلیف کښې وي چه څوک ترې تپوس وکړي نو ورته وايي چه ښه یم ما هم ورته دغسې ووې سپرنټنډنټ حکومت له خبر ورکړو چه ښه دی هغوی اخبار کښې اعلان وکړو چه هغه ښه دی هسپتال کښې يو هندو ډاکټر و هغه مشر ډاکټر ته ووې چه ذمه داري به تا ده، بدنامي به ستا وي تا له په کار دی چه حکومت خبر کړې هغه حکومت ته ولیکل چه دغه خبر غلط دی، دی جوړ نه دی حکومت سول سرجن راولیږه هغه زما معاینه وکړه بیا يې ایبټ آباد له فوجي هسپتال له بوتلم ایکسرې وشوه معلومه شوه چه زما دوه پښتۍ ماتې دي. سول سرجن پخپله زما پښتۍ وتړلې او پلاستر يې پرې ولګول، په تر لوسو زه لږ به آرام شوم، څو ورځې پس مې اخبار کښې ولیدل چه د جېلخانې سپرنټنډنټ وايي چه هغه روغ جوړ دی سبا له چه سپرنټنډنټ راغی هغه اخبار مې هغه له وښودلو نو هغه راته ووې چه تا راته ووې چه ښه یم ما ورته ووې چه دا خو د پښتنو اصطلاح ده ستا خو سترګې وې تا نه لیدم چه زه څنګه وم ؟

څه وخت چه مونږ د پېرنګیانو خلاف سول نافرماني شروع کړه هغه وخت کښې هغوی د افغانستان د حکومت په امداد د ملایانو په ذریعه کار شروع کړو، عجیبه خبرې خولې داوه

د ډېر یاد دی چه دلکه نن مید دغه تقریر کړی دی. په هغه ورځ کښې د خدائی خدمتګارو ... تقریر ... په دغه تقریر کښې د ماتکی ملا صاحب لحقله د انګریزانو دوستۍ بیان ... ملا صاحب ... تقریر ... په شنه جامه کښې



چه پیرنګیانو په ما د کفر یوه فتوه تیاره کړه او په هغه باچاګل او ماتکی ملا د واړو دستخطونه

وکړل او د دواړو د لوډ ملایانو تائید وعجیبه خبره خو داوه چه مذهبی معاملو کښې د ماتکی

ملا او هډې ملا تعلقدار چېرې متفق شوي نه دي او دیو بل مخالف وو چه یو بل به یې

د کفر فتوې کولې لیکن زما په فتوه د دواړو د لواتفاق وولی چه دا د کفر فتوه پیرنګی لګولی

ده او بله خبره یې دا وکړه چه افغانستان هم پښتانه دي، د صوبه سرحد خلک هم پښتانه دي

چه دا علاقه هم افغانستان سره شي او ددې خبرې اشتهارات یې په ملک تقسیم کړل

جلسې یې کولې او په هغو کښې به یې دا تقریرونه کول چه دا ملک دې افغانستان سره یو شي

ولی پیرنګیانو ورته هیڅ نه وې. د ریه خبره یې داوکړه چه حاجی محمد امین چه زمونږ

دی پېښور علاقې ته تللی و او په هغه کښې پیر شوی و، د افغانستان د حکومت

په مصلحت پیرنګیانو د باچاګل په ذریعه پېښور ته راوغوښت، هغه دلته ددې خبرې

کوشش وکړو چه د پښتنو سیاسی توجه د پیرنګیانو نه بل خواته واړوي نو د دوی په بازاد[16]

۱۲ باندې ده پکښتنګ ولګاوه دغه وخت خدائی خدمتګارو د پیرنګیانو په کچرو چپاوونه

کول او د خدائی خدمتګارو ټوله توجه د ملک د ازادۍ او د پیرنګیانو برخلاف وه په دې

کښې حاجی محمد امین خان راغی ملایان ورسره ملګری شول او ارباب عبدالغفور

د تهکال هم ورسره ملا و تړله او د خلکو توجه یې د پیرنګیانو نه اړوله. دا هغه محمد امین

دی چه په مسجد نبوی کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حضور کښې یې ما سره

وعده کړې وه چه زه به تا سره یو ځای د خدای د مخلوق خدمت کوم چه دوی به

پکښتنګ له ورد غلل نو دمې به راووتی او خلکو ته به یې وې چه وګورئ هلته خدائی خدمتګارو

د پیرنګیانو په کچرو پکښتنګ لګولی دی دوی راغلی دی، زمونږ په «دغه» یې پکښتنګ

کوم او دا ایپ ابا د جیل لیږی بوتلم او یوه تنګه کوټه کی کښې یې بند کړم ، دغه کوټه کې بالکل یوازی د ټول جیل نه جدا وه ، ماسره دخبرو اترو قدغن ی خوک نه و .

کله چه زه د هریپور جیل نه چالان شوم نو جیلوالاؤ په سیاسی قیدیانو توره شپه جوړه کړه . په دوی یې چای بندی کړې چاچه به ناری وهلې چکو کښې واچول . خه ورځې خو دوی چپ شغی وو هلی خو اخر یې چپ بندی کړې پنجیل کار پښیما نه شول ، د دوی مشرانو جیلوالو ته ووې چه مونږ د ی سره سوله کوو ، جیلوالو ورته ووې چه دېره سنبه ده چپ بندی کړې نو د دوی په منځ کښې سوله وشوه که د دی زما خبره منلی وای نو زه به یې هم ترې نه وی چالان کړې او دوی ته به هم دومره تکلیف نه ورسیدلی او نه به د کوزو ستړو په سوله مجبور شوی وای . مالږی دا ایپ ابا د جیل کښې یو بوړا مشقتی راکړې و . هغه به ماله دوه وی پخوله ، د ری میاشتی قید و چه دهغه به کله ملاقات راغی او دی به ملاقات الله را نو چه به راغی ما به ترې تپوس کوو چه څه کور او بال بچ دی څه حال دی ؟ نو ده به راته ووې چه زه ملاقات له لاړ شم نو ښځې او واره می د جنګلی نه اخوا ولاړ دوی ژاړی او زه د جنګلی نه دی خوژارم څه خبری ونه کړو ، دی د هغه اری و د ېر سنبه سړی و . یوه ورځ ترې ما تپوس وکړو چه زما د دی کوټې تنې ر لاندی چه دا بار کوونه دي نو چه د شپی شپی نه شپه واوړی دا قیدیان شور کوی چه دا څه کوی ؟ ما د خوبه و باسی ته ورته وو ایه که وظیفی کوی نو درو دروو دی کوی او ما دی د خوبه نه و باسی نو هغه راته ووې چه دا شور څکه دی چه دا ایپ ابا د دی دلته دا وره پریوحی د دوی یخنی کېږی ، دوی له یې دوه زړې کمبلی ورکړی دي نو دا شور به د غه وجه وي . د دی جیلخانی دا روغه عمر بیګ یې نوم و مسلمان داو په کوری چوډ باندی مشهور و هغه چه سباله ماله راغی ما ورته ووېل چه د قید یانو سره کمبلی نشته

یعنی یې کېږي) ما د خوبه و باسي مهرباني وکړه کمبلي ورکړه ده راته ووی چه کمبلي نشته
ده به د پرلمونځ نه او د سپونه هم کول چه دی بدل شو نو ده په ځای یو هند و داروغه
راغی. د هغه را اتلو سره چه قید یانو ورته شکایت وکړو نو ده دوه نوی کمبلي یې هر یو له
ورکړې. چه زه خبر شوم ما تری تپوس وکړو چه دا کمبلي دی را وغوښتې؟ نو هغه وې
نه دا خو په ګودام کښې پرتې وې. د دې ځای ډپټي کمشنر سکهه و او ډېر ښه سړی و
دی چه جیلخانې ته راغی نو ما ته یې دا خبره وکړه چه جارج کننګم به دا خبره کوله چه زه
د ډاکټر خان صاحب نه د سرحد وزارت بل چاله نه ورکوم خو څه موده پس یې مسلم لیګ
له ورکړو. او اورنګ زیب خان وزیر اعلی شو، یوه ورځ دا ډپټي کمشنر راغی ډېر خپه و
او راته یې ووې چه ګورنر خو به وې چه بغیر د ډاکټر خان صاحب نه بل سړی وزیر نه مقرروم
ده یو قسم ما سره هم کړی دی کوله. ما ورته ووېل چه زه خوشحاله یم چه ګورنر مسلم لیګ له
حکومت ورکړو. او د ډاکټر صاحب په ځای اورنګ زیب خان یې مقرر که. هغه حیران شو
او پوښتنه یې وکړه چه دا ولې؟ نو ما ورته ووې چه زه په دې خوشحاله یم چه د دې قوم خو
دا زمونږ حکومت ولید و نو دا ښه ده چه د مسلم لیګ حکومت هم ووینې او په کښې تمیز
وکړې او بله دا چه د دې حکومت اختیارات هم ډېر کم دی او زمونږ دی قوم خو حکومت
لید لی نه و او نه د دې حکومت نه خبر دی. نو یو کار دی چه هغه مونږ کولی نه شو زمونږ
د اختیار نه بهر دی. قوم وایی دا راله وکړه مونږ که ډېر ورته وایو چه مونږ یې کولی نه شو
دا زمونږ په اختیار کښې نه دی خو د ده تسلی نه کېږی او را نه خفه شی. خفه شه چه بیا
زمونږ مخالفت شروع کړي. او دویمه خبره دا ده چه مونږ دوه اني ګټلی دي او دوی
رانه روپۍ غواړي نو مونږ روپۍ د کومه راوړو؟ نو دوی زمونږ حکومت هم لید لی و

او اوس به د مسلم لیگ حکومت وويني نو په حقيقت به په ټوله شي او هله عنه شان دشوکه چيری دا حکومت مونږ. په پښتو دی نه وای نو د راتلونکی اليکشن ګټل ګران و دوی به کامياب شوی وو، خلکو وليدل چه مونږ خو په روپۍ کښنی د وه اسټيز خو ورکولو او کوم کار چه به زمونږ په اختيار کښنی وهغه به مو ورله کولو او مسلم ليګ خو ځان ته نزدی هم نه پرېښود ل او نه يې ور له څه کول يوه ورځ کرنيل سمت چه د پېښور د جېل سپرنټنډنټ و ايبټ اباد له په دوره ماله راغی نو زما ځای یی وليدو څه وخت چه بهرته ووت نو سپرنټنډنټ ته يې ووې چه تا باچاخان د کوټړو په کوټه کښې کښنی بند کړی دی؟ هغه سمت ته په ډېر ادب او غلی غوندې ځواب ورکړو چه سرحد د حکومت داحکم دی په دی کښنی زه څه کولی شم، کرنيل سمت هغه وخت د هغه ځای نه ګورنر ته ټيليفون وکړو ورته يې ووې چه سرجارج څوک يوهادر دښمن سره داسی سلوک کوی څنګه چه تا باچاخان سره کړی دی: چه په يوه وړه کوټه کښې کښنی دی يواځې اچولی دی؟ ګورنر پچېل کار شرمنده شو او خپل حکم يې واپس واخيستو او حکم يې وکړه چه ده له سنه ځای او ملګری ورکړی، کله چه سمت صاحب بيا راغی او ماته يې د ملګرو ووې چه څوک غواړې ما ورته ووی چه ستا څوک خوښ وی هغه راکړه هغه وې چه د دوی به تا سره وی که ما سره ماورته ووی چه ماسره به وی ده ووی چه بيا خو په کار دی چه ته يې خوښ کړې نو چه ستا څوک خوښ وی هغه راته ووايه نو ماورته ولی او شير دل خان ياد کړل هغه يې ماله راولېږل چه هغوی راغلل نو د هغوی نه معلومه شوه چه سالار اخترګل په ډېره ۀ - اسماعيل خان جېل کښی دی او ډېر ناجوړه دی نو ما سپرنټنډنټ ته ووی چه مونږ له ديخلی د پاره خپل سړی راکړه هغه وې چه څوک غواړې؟ ماوی اخترګل غواړم او هغه

د ډېرو په جېل کښې دغه هغه یې راوغښتو چه انځرګل جرنیل راغی نو دومره نا جوړه وچه ذکر ځېلو وهم نه ور زمونږ په پوره راختی نه شوخو د خدای فضل و ډاکټرانو یې علاج وکړو او مونږ ورله ښه خوراک په ډاکټر مقرر کړو نو ورځ په ورځ ښه کېده زما په هغه کوټنۍ کښې په مشکله دوه کته راتلل او نور ځای پکښې د ملاستې هم نه و، نو سالار صاحب په زما دکټ دلاندې ځملاستو او شیر دل خان به دولي دکټ دلاندې ځملاستو څه ورځې پس حکم راغی او ما ته چه نژدې دهسپتال کومه کمره وه هغه یې ولې دوی له ورکړه زه چېل ځای پاتې شوم او دوی دې وارډ هغې کمرې له لاړل.

مونږ جېلخانه کښې وو چه خبر شو چه بنګال کښې قحط دې او ډېر خلک دو لږې نه مره شول مونږ له چه حکومت کوم راشن راکولو نو نیم به مونږ خوړلو او نیم به مو هغه مصیبت زده خلکو له جمع کولو او چه ډېر جمع شو نو مونږ حکومت ته وویل چه دا بنګال له ولېږه خو نه حکومت هغه بنګال له ولېږه او نه مونږ ته یې واپس راکړو په دغو ورځو کښې د ولې سترګه خوږه شوه دغه یوه سترګه یې وه. هغه بله یې په ښار کښې خرابه شوې وه مونږ سره ډېر فکرو سپرنټنډنټ د فوج د سترګو ماهر راوغوښتو خو څه فایده و نه شوه مونږ دې سپرنټنډنټ ته ووې چه ته حکومت د دې حال نه خبر کړه دې غواړې چه بمبې ته لاړ شم او په هغه جېل ډاکټر علاج وکړم، سر چارج بغیر د څه شرط نه هغه رها کړو او د علاج اجازه یې ورکړه چه دې تلونو ما ورته ووې چه ولې ته یې د علاج د پاره پرېښودې نو که علاج دې وشو نو بیا به هم د حکومت برخلاف څه کار د ترهغې پورې نه کوې چه دا د قید میعاد دې پوره شوی نه وي.

زمونږ ډېر ملګرې چه د قید نه رها شو او په هر یو کښې کوم پاتې شو نو زه یې

ورځ چه مونږ یوځای شو نو دوی راته ووې چه باچاخانه ته زمونږ مشر شه او که ته نه کوی نو یو مشر راله خوښ کړه ، ما څه جواب ورنکړو او خبره می بله جوا راړوله چه بل اتوار به بیا جمع شو ، نو دوی بیا ماپسی شو چه مونږ له یو مشر مقرر کړه نو زه پاڅیدم او دوی کښی می هر سړی ته ښکته پورته وکتل چه ټولو ته می په غور وکتل نو ورته می ووې چه دوی کښی خو ماته داسی سپک او ذلیل او بی غیرته سړی ښکاره نه شو چه ستاسو مشر ئې کړم : تاسو عجیبه مخلوق یئ او ځان ته خدائی خدمتګار هم وائی ، قیدونه هم تیروئ ، نو چه کوم سړی خپل مشر مقرر کړی نو بیا هغه ته کنځل کوئ ، هغه سپکوئ ، ډېره د افسوس خبره ده ، دوی چپ شول او بیا ئې ماته د مشرۍ خبره اونه کړه . مونږ چه د هر یو سړی په جیلخانه کښی وو نو یو قیدی ماله راغی چه ای باچاخانه چه ستا دې خدائی خدمتګارو زه جیلخانی ته د دریو میاشتو د پاره راوستی وم او اوس راته ئې ووې چه بس میاشت نیمه کښی رهائی ده ، ما شپږ میاشتی تېری کړې اوس زه ورته وایم چه ما پرېږدئ چه زه لاړ شم او دوی می نه پرېږدی ماورته وې زه دی پرېږدم نیغ څه دفتر ته . ما همیشه خدائی خدمتګار دی کاره منع کړی دی ، چه په زور او چل څوک جیل ته مه راولی . دا تحریک ته د فایدی په ځای نقصان رسوی .

خلک په زور جیلخانی له په تلو مه مجبوروئ او په خوشامند و منت دوکه خلک جیلخانی ته مه بیایئ . ستاسو خو دا خیال دی چه ډېر خلک جیلخانی ته لاړشی نو زمونږ به په حکومت د رعب قایم شی لیکن د کمزورو خلکو په بوتلو تاسو سپک کېږئ او ورسره تاسو خپل تحریک بدناموئ . هُنم چه د ډېرو خلکو په تلو په حکومت روب پری وځی لیکن چه

هغوی مضبوط او با اصوله دی. ما په جیلخانه کښې چې کمان ساتلی و او هغوی له به ما په خپل لاس خوراک ورکولو، هغوی ما سره داسې اموخته شوی و چې څه به زما غېږه کښې ناست وخه به زما په اوږه وسوره بدل، یوه ورځ می اوږه کلک اخکلی و، دوی له می ورکول څوک زما په لاس، څوک زما په غېږه کښې او څوک زما په سر ناست و. کرنیل سمت جیل ته په دوره راغلی وچه ماله راتلونو دا تماشه یې ولیده نو د جیل افسران یې تول واپس کړل او زما د چکو په شا، شا راغی، زه تری خبر نه یم او دی زما شا ته ولاړ دی، تماشه یې وکړه بیا یې ماته وویل چه: (گوډ مورنینګ) (good Morning) (سحر دې بښه شه). چه ما وکتل سمت صاحب و سماته یې وویل چه دا څه کوی؟ ما ویل چه دا زه چه څه کوم په دې کښې ستاسو د پاره سبق دی. ګوره دا معلومه ده چه مونږ دوی حلالوو او خورو، خو چه زه ورسره محبت کوم او په کښلا یې مړوم نو دوی زما په غېږه کښې او څوک زما په اوږه، او څوک زما په سر ناست وی. دوی نه تاسو له سبق اخیستل په کار دی. ګوره دا حیوان دی خو چه زه ورسره مینه کوم نو زما د غېږی نه نه کوزیږی او انسان خو اشرف المخلوقات دی که د هغه سره مینه وشی نو ولی دی د سړی دوست نه شی.

کرنیل سمت یو بهادر سړی و او بهادران یې خوښ وو نو ده په خپله اقرار وکه چه ما جنګ په تاسو بایلود. بیا یې ورو ورو سته خلاف الی خلا متکار و سره ډیره مینه پیدا شوه او مینه سلوک یې و، او زما خوېږی د ومره اثر شوی و او زما یې د ومره قدر کو وچه په ۱۹۴۷ کښې چه زمونږ د سکو ډیری کښې جلسه وه، چه ګورم چه کرنیل سمت خپل زوی د لاسه نیولی ستیج له راغی، د هر کلی نه پس یې ماته وویل چه زما د دې زوی په سر لاس د اکاږه ما هغه ځان ته را نږدی که او ده ته می وویل چه ته ماله جلسی له خله راغلی ته خو سرکاری

نوکوبي اوکه پاکستان جوړشي نو تا به د نوکرۍ نه مات کړي. ده وخندل او ويې ويل چه
پاکستان په کومه ورځ جوړشي زه به دلته نه يم . دده مسلم ليګ هم بدی ايشوا و ويېنوي
په جيلخانه کښې يې بند د بولي و . څکه چه بيرسټر قيوم پرې دباو کړی وکه چېرې زمونږ
حکومت شي بيا به څه کوی ؟ رښتيا وه چه پاکستان په کومه ورځ جوړشو ، نو دی خوا
جنډی او چتيدې او توپې خلاصيدې او هغه خوا کرنيل سمت سره د خپلې کډې په
فرنټيرميل کښې انګلستان ته روان و .

په ۱۹۴۵ کښې زمونږ د لعضې ممبرانو په زړه کښې دا خيال پيدا شو چه زمونږ په
صوبه کښې وزارت بند دی که موږ وزارت واخيستو نو د نورو کارونو نه علاوه دا سياسي
قيديان چه د دوی کالونه راپه دی خوا په جيلخانه کښې پراته دی هم رهاشي ، زمونږ د
اسمبلې په ممبرانو کښې لعضی کسان د حکومت او وزارت د پرشوقيان و ، د دوی سول
نافرمانۍ کولو ته تيار نه و ، د پلو ونه يې کولی نه شول ، د دوی خپل کارونه کول او خدايي -
خدمتګار په چپاو ولو کښې څه مره ، څه قيديان او څه زخميان شول ، نو خلکو دوی ته
ښه نه کتل څکه چه دوی تخپله هم کار کولو ته تيار نه و او نوري کار ته ئه پرېښودل . تر دې چه
لعلي زما زوی يې هم چپاو کولو ته نه پرېښوده . دوی چه د وزارت جوړولو کوشش شروع
که نو د يکه توت په کيمپ کښې ساقي صاحب او کيمپ کمانډر سالار شير علي خان د دوی
مخالفت شروع کړو او ډاکټر صاحب يې هم د خان سره هم خيال کړ . دوی د اسمبلې خپل
ول ممبران د صوبې نه يکه توت کيمپ له د اجلاس د پاره را وغوښتل چه دوی د خان
سره د وزارت په جوړولو کښې متفق کړي . خو هغوی چه به راتلل نو ساقي صاحب به پوهول
غه اجلاس هم نا کامیاب شو . اخر چه ساقي صاحب تيراته لاړ نو دوی ته صحنه خالي شوه

مګر په صوبه سرحد کښې چه مونږ څه کول نو هغه مونږ یوازې دخولې په تبلیغ او تشولاسو نو کول ، ولې چه زمونږ سره هیڅ مالي مرسته نه ده کړې . اولبعضې خلکو به لا زیاتې په مونږ دا الزام هم لګولو چه دوی څه تعمیري کار نه دې کړي او د قوم روپۍ یې خوړې هوبجن کالونې په ډیلې کښې وه او سیوا کرام په وارده کښې ، واو چه څه وخت به پرا تهنا (عبادت) شروع شو ، نو د ټولو نه مخکښې به ما د قرآن شریف تلاوت وکړو ، خلکو ته به د هغه ترجمه وکړه . زمانه پس به یو جاپاني د بده مذهب پیرو کار ځیل مناجات بیان کړل او بیا به پرا تهنا شروع شوه . دګاندهي جي په زړه کښې د ټولو مذهبونو یو شان احترام وو او هغه به دا ټول مذهبونه حق ګڼل "او زما عقیده هم دغسې ده" . د قرآن شریف او ګیتا مطالعه خوما په سنه شان سره کړې ده او څه وخت چه زه په ډیره غازي خان جیل کښې سکهانو سره قید وم نو د هغوی نه مې ګرنته صاحب زیاته حصه اوریدلې وه د بده مذهب مطالعې سره زما ډیر شوق وو ولې چه مونږ خلک د اسلام نه مخکښې د بده مذهب پیرو کارو و لیکن د بده مذهب کتاب ماله په لاس رانغې . انجیل مې د طالب علمۍ په زمانه کښې په مشن های سکول کښې ویلې وو ولې چه زه د هغوی د سکول طالب علم وم تورات مې لږ ډیر جیلخانه کښې کتلې و ، د زردشت د پارسیانو د مذهب د کتابونو د کتلو مې هم ډیر شوق د ولې چه هغه خدای مونږ له رالیږلې وا و په بلخ کښې پیدا شوې دې . "خدای به په قرآن کښې وایې چه ما هر قوم ته د هغوی نه یو هادي لیږلې دې" . لیکن تر دې وخته پورې ما د هغه متعلق هیڅ لټریچر بیا نه مونده . خورشید بهن او نورو پارسي دوستانو ماته ویلې وو خو هیڅ د هغه یو کتاب ماته را و نه لیږه . "زما مذهب ریښتیا ، مینه محبت او د خدای د مخلوق خدمت دې ." مذهب همیشه دنیا ته د اخوت او محبت پیغام راوړې دې .

دکومو خلکو په زړونو کښې چه د بنی نوع انسان د پاره رواداري، مینه، محبت نه وی او د کوم سړي په زړه کښې چه نفرت، بغض، کینه وی نو داسې سړي د مذهب د پېرلیږی وي.

د الیکشن په وخت کښې مسلم لیګ په صوبه سرحد کښې د پراپیګنډې د پاره پونجابی میجر خورشید راالېږلی ؤ چه د خپلی بدعملی په وجه د فوج نه موقوف شوی وو. هغه یې د دې غرض د پاره رالېږلو چه هغه پښتنو کښې خانه جنګی پیدا کړي او داسې تقریرونه به یې کول چه د تشدد نه ډک وو، ده به ویل چه دا یو خو خدائی خدمتګار لیډران دي چه دې قوم کښې د دوی رسوخ او اثر دې، دوی قتلول غواړي او داسې خلک پیدا کړئ چه هغوی ته مونږ لس لس، شل شل زره روپۍ ورکړو چه هغوی ډالیډران مړه کړي ځکه چه د دوی د مرګ نه بغیر مونږ لا ډه ازادیدی نه شي، داسړي د دې د پاره سرحد ته راغلی وو چه پښتانه په کور کښې وجنګوی او که چرې د خدائی خدمتګارو رهنمایان قتل کړی شی نو د قوم هملا، دی خو خدائی خدمتګار و سره ده، نو د بدل اخیستلو به ضرور کوشش کوي او د مسلم لیګ لیډران به قتلوي. او په دې طریقه به پښتانه په خپل کور کښې په جنګ، جګړه اخته شي، او دوی به برباد شي، میجر خورشید یوازې زمونږ تباه کول نه غوښتل بلکه د پښتنو ټول قوم یې تباه کولو.

## زلمی پښتون:

څه وخت چه زمونږ خلک د میجر خورشید د دې ارادې او سکیم نه خبر شول نو هغوی د خدائی خدمتګارو د حفاظت د پاره نوی جماعت د غنی په مشرۍ کښې جوړ کړو چه نوم یې (زلمی پښتون) و او په دې کښې هغه ځوانان شریک شول چه د چا عقیده په عدم تشدد باندې نه وه ولې چه هغوی په دې غرض د غه جماعت

## الیکشن :

محکښی الیکشن داروان و نوما دا فیصله وکړه چه زه په الیکشن کښی په داسی حالاتو کښی حصه نه اخلم ځکه چه دا الیکشن کټه خو د وزارت جوړولو د پاره وی، زمونږ وزارت ښته خو دغه داحال دی چه ددوی برخلاف پراپیګنډه ی ددوی ماتحت خلک کوی او ددوی ورته لاس تړزنی ناست دی.

په کلکته کښی د ورکنګ کمیټئ او د پارلیمنټری بورډ شریکه جلسه وه زه هم ورته تلی وم او پکښی شریک وم، دا ټوله جلسه دالیکشن د پاره وه ما دغوی په مخکښی د صوبه سرحد حال بیان کړو او دغوی ته می ووې چه الیکشن خو د وزارت د پاره دی چه الیکشن وکټو او وزارت جوړ کړو، زمونږ وزارت ښته او پیرنګیان او دغوی ملګری زمونږ د وزارت برخلاف پراپیګنډه کوی او زمونږ د ومره اختیار نشته چه ددوی نه تپوس قدری وکړو نو زه تاسو خبر وم چه زه په دا تلونکی الیکشن کښی حصه نه اخلم. پارلیمنټری بورډ وې چه په هر طریقه چه وی چه دی په الیکشن کولو راضی کړو خو زه یی اماده او رضامند نه کړی شوم چه د ورکنګ کمیټئ اجلاس ختم شو نوما ګاندهی جی ته ووې تا چه خو زما داټوله قصه واوریده نو زه په دی الیکشن کښی حصه نه اخلم نو دغه هم ما سره اتفاق وکړو.

زه کلی ته داروان شوم کار می کولو زما خو دالیکشن سره اتفاق نه ؤ کار سره می اتفاق وکړو کښی تو ژکار نه کښینیا ستم په ملک کښی می دوره شروع کړی حکومت په زور شور زمونږ مخالفت شروع کړی وماته دا پته ولګیده چه حکومت اسلامیه کالج بند کړو او دغه شان د صوبی ټول کالجونه او سکولونه بندوي او هلکان د مسلم لیګ د پراپیګنډی

د پاره کلواو ښنارونو ته لیږلي دا راته هم معلومه شوه چه د پیرنګیانو ښنځی هم په ملک کښی

ګرځی او دخانانو، ملکانو، ښنځوته وایي چه مونږ تاسو کره راغلی یو دی نه لوبهرغواړو او

زمونږ لوبهر دووټ دی مونږ له به ووټ راکوئ او د پراپیګنډی د پاره د پیکم شهنواز لونه

او نوری له پنجاب نه ډیری ځنکی سرحد له راغلی دي. د پنجاب نه مسلم لیګیان د علیګړ مسلم

یونیورسټی هلکان او د کلکتی اسلامیه کالج طالب علمان او د هندوستان د نورو ځایونو

نه کارکن لیډران په ډیرلوی تعداد سره سرحد ته راغلی وو دوی نه علاوه حکومت او

مسلم لیګ د سرحد او پنجاب پیران د کوټونه راوښکلي وو. وي چه دا وخت د کوټونه د دی ډګی

میدان ته رشئ او مانکی صاحب (د مانکي پیر صاحب امین الحسنات) یی هم راوښکلي وا و

مونږ ته یي مقابله کښی ودرولی وو، دوی ما سره واقف و، دده د پلار فاتحی له هم زه تللی

وم، او کلونا کله چه به زه په دوره لاړم نو دده سره به مې لیدل، نو ده ماپسی یو سړی راولیږه

چه زه ستا سره ملاقات له درځم، ماورته وویل چه دی دی نه راځی زه به درشم. دی ډیرنو

په چوټي کښي او سیده، یوه بنګله ورله حکومت ورکړی وه، زه ورغلم او دی می ولید او

ډیری خبری موو شولی، ده ساله د جیب یو کاغذ راوایسته او راته یي وویل چه دامالا جناح

صاحب راکړی دی او په دی کښي یي لیکلی دي چه که پاکستان جوړشو نو په دی کښی به اسلامی

شریعت وی، ماورته وویل چه ښه یي. دي حیران شو اوراته یي وویل چه دلی؟ ماورته وویل

چه په اسلامی شریعت کښی د جناح صاحب ځای شته؟ نو تاله به یي څرنګه جوړکړی، ماورته وویل

چه ته خو بایډ چه د اسلام نه واقف یي، نو ته پخپله فکر وکړه چه که سباله دلته اسلامی شریعت

جاري شي نو چه د دی مسلم لیګ د مشرانو به څه حال وی؟ ما چه د پیرنګیانو او میمانو زمونږ

په مقابله کښی دا دومره جد وجهد او دلچسپي ولیده نو زما خیال بدل شو، الیکشن ته صرف

یوه میاشت پاتې وه نو ما کار شروع کړو دا د ۱۹۴۶ کال د متحده هندوستان اخري الیکشن و ، دې الیکشن ته مسلم لیګ داسې رخ ورکړو او خلکوته یې ویل چه دا الیکشن په هندوستان او پاکستان دی چه پاکستان غواړئ که متحده هندوستان ؟ په هندوا و مسلمان و چه کفر سره ځئ که اسلام سره ځئ ؟ په مندر او په مسجد ؟ چه جماعت له ووټ ورکوئ که د ر مسال له .

په دې الیکشن کښې مونږ میا جعفر شاه او د ګلي ګړی ارباب عبدالرحمان نه و درول ځکه چه دوی د ډاکټر صاحب او قاضي صاحب په مینځ کښې اختلافات پیدا کول او ډاکټر صاحب ته به یې زما په سره هم لمسون کولو چه باچاخان داخل تا نه وزیراعظم کوی او قاضي صاحب وزیراعظم کوي . ددوی دا ټولې خبرې دروغ وې . مونږ ډاکټر صاحب وزیراعلی کوو ، مونږ صرف دومره ویل چه ډاکټر صاحب د (لا اینډ ادډر) نه اخلی ، دا د قاضي صاحب له ورکوی ځکه چه ډاکټر صاحب له سرکاری افسران دوکه ورکولی شي او قاضي صاحب یې نه شي ورکولی ، خو ډاکټر صاحب دوې چه که جعفر شاه او ارباب عبدالرحمان نه و دروئ نو زه هم نه و درېږم مونږ د ډاکټر صاحب نه مجبوره شوا و دوی مو ودرول جعفر شاه او ارباب عبدالرحمان تش په نامه خدائي خدمتګار وو خو چه څه وخت پاکستان جوړ شو او د قیوم وزارت راغی نو دی ټولو نه اول د ګلي ګړی ارباب عبدالرحمان را ولګیدو قیوم یې جیل ځای کښې میلمه کړو ، جعفر شاه یې هم را وغوښت او دوی مسلم لیګ کښې شامل نه شول او ورته یې ویل چه مونږ به کوشش کوو چه نور خدائي خدمتګار هم په مسلم لیګ کښې شامل کړو .

د هندوستان دنورو مسلمانانو په شان پښتنانه جذباتیان نه وو مونږ به دوی

کښې د پېر کارګري وېه دوی کښې سیاسی شعور راغلی وکوسیه کور، کلی په کلي ودپیسی ګرځيدلی وو دوی موپوکړي وو او په دوی کښې پوهه او بيداري راغلی وو دا سلام نه واقف شوي وو دوی دا سلام په نوم چا دوکه کولی نه شوه، دلته خدائی خدمتګارو د پېر کار کړي وه هندوستان کښې مسلمان عزیب د اسلام نه چا خبرکړي و؟ په اسلام چا پوه کړي و؟ سیاسی شعور او پوهه پکښې چېرته وه؟ د ځوی د پوهي څوک و؟ او دا څيزونه خو په یوقوم کښې بخپله نه پيدا کېږي او دا خو چه پکښې څوک په قام او ملک او اسلام مین خلک پيدا اشی نو پکښې کاروکړي. هندوستان کښې داسې خلک تر اوسه مسلمانانو کښې نه دی پيدا شوي نو خکه د اسلام په نوم دوکه کېږي او خود غرضه خلک د اسلام په نوم تری فایدی اخلی. بله دا چه د هندوستان د مسلمانانو لیډرشپ هغه سړي وو چه د پېرنګیانو خاص الخاص وو. یا به سر وو، یا نواب، یاخان بهادر خدائی خدمتګار دوشپه او ورځ په دی یوه میاشت کښې چه کار وکړو نوسره د دی چه پېرنګیانو او مسلم لیګ د پېره موده د غړي وهلي وې، مسلم لیګ په دې الیکشن کښې شکست وخوړ او خدائی خدمتګار په یولوی اکثریت سره کامیاب شو. پنځوسو کښې یو دیرش خدائی خدمتګار وو، دوه سیټه جمعیة العلماء هند وګټل. باقي اوولس سیټه مسلم لیګ وګټل.

په صوبه سرحد کښې شپږ ضلع دي په پنځو ضلعو کښې کوهاټ، بنو، ډیره اسماعیل خان، مردان، پېښور کښې موږ کامیاب شو او په هزاره کښې هم تول پښتانه دی خوز ژبه لی پرلیږي د هلته چه په کوموعلاقو کښې چه پښتو وه نو هلته پښتانه کامیاب شو او چیا چه ژبه هېره کړي وه او هندکو لی دي هلته مسلم لیګ کامیاب شو حکومت

او د حکومت پر ژوو زمونږ بر خلاف چه څومره کار کړی ؤ د ومره مسلم لیګ نه د کړی
د حکومت دا کار مونږ ته ډیر مکروه او د ائین خلاف ښکاریده نو مونږ کبینټ استعفا
دا فیصله موو کړه چه وزارت نه اخلو او د وزارت د جوړولو نه مو انکار وکړو او وسو دیل
مونږ تر هغه وخته پوری د وزارت اخیستو ته تیار نه یو چه تر کومه پوری حکومت مونږ له
دا اجازه وانه کړی چه الیکشن کښی کوم ملازمانو زمونږ خلاف حصه اخیستی ده او
د قواعد و او ضوابطو خلاف ورزی یی کړی ده چه د هغوی بر خلاف مقدمی جوړی
کړو او مجرمانو له مناسب سزا ورکړو. زمونږ د دی فیصلی سره د ډاکټر خان صاحب اتفاق
نه ؤ. سعد الله، سردار پټیل د دی فیصلی نه خبر که سردار پټیل چه خبر شو نو هغه
مولانا ابو الکلام ازاد د دی مسئلی د حل کولو د پاره سرحد ته راولیږه او پیښور کښی
زمونږ اجلاس وشو.

مامولانا صاحب ته صافه او پاکه خبره وکړه چه کوم سرکاری ملازمانو زمونږ بر خلاف
قدم وچت کړی دی که مونږ ته دا اختیار نه وی چه مونږ هغوی له سزا ورکړی شو نو مونږ
داسی وزارت نه اخلو. مولانا صاحب واپس دیلی ته لاړو او هلته یی د وایسرائ نه یو خط
واخیستو او بیا راغی، په دی خط کښی وایسرا په څه کول مول طریقه زمونږ متوطه مسئلی د
نو مونږ وزارت خو واخیستو خو په دی شرط چه د وزارت اختیارات به یوی مرکزی
کمیټی سره وي. زما دا رایه وه چه د هری ضلعی د خدائی خدمتګارو نه دی، دوه دوه
کسان واخیستی شی او د هغوی نه دی د غه کمیټی جوړه شی خو شرط به دا وي چه
د غه کسان به د حکومت ملازمانو سره لیدل کتل نه کوي او نه به د وزارت سره تګ
راتګ کوی نه به د چا سفارشونه کوی بلکه د وی به د وزارت د پاره د کار کولو پیروګرام

مولانا آزاد د جید نکیانو نه نفرت کړو ل خوک پیچیر نګی ...
د مولانا آزاد به جیوه ستړی نه کښیتیدل-



جوړوي او وزارت به د دوی د منظورشوی پروګرام نه خلاف کار نه کوي د دی کلی د پاره مادتولی صوبی دوره وکړه او دغسی کسان می هم پیدا کړل کمیټی می تری جوړه کړه خو افسوس دی چه هغوی دغه کار ونه کړو ولی چه هغوی خپل غرضونه نه پریښوول نو دغه سکیم کامیاب نه شو. حقیقت دا دی چه مونږ کښی لا داسی خلک پیدا شوی نه دی او هغه چه مونږ وئیل چه کومو سرکاری افسرانو د قانون، اخلاقو او سړیتوب خلاف په الیکشن کښی د خدایی خدمتګارو خلاف کار کړی دی. هغوی له سزا ورکوو، هغه کار هم ونه شوو.

## د آئین ساز اسمبلی ممبران:

او س د دستور ساز (قانون ساز) اسمبلی د پاره د انتخاب مسئله راغلی شوه. د هغه په باره کښی دا فیصله وشوه چه د هری صوبی خومره ممبران په حصه کښی راسی هغه ته د صوبایی اسمبلو د ممبرانو په رووټ جوړ یږي، زمونږ د دی ممبران د سیټ ل یوزه شوم، یو مولانا ابوالکلام آزاد مقرر کړو. مسلم لیګ د هندوستان د مسلمانانو ذهنونه دومره بدل کړی وو چه د ده په شان باعمله عالم مسلمان او د قربانی مړنی سیاستدان په ټول هندوستان کښی په مسلمانانو کښی نه وخو ده له چاځای ورنکړو نو مونږ د خپلی صوبی نه منتخب کړو یو د مسلم لیګ د سیټ و نو هغه د هزاره د ضلعی نه سردار بهادر منتخب شو، دا مرکزی اسمبلی هم وه او آئین سازه اسمبلی هم وه، مسلم لیګ د دی بایکاټ وکړو مادې د مسلم لیګ مسلمانانو ممبرانو ته ډیر منت وکړو چه راځئ چه په دی کښی شریک شو مونږ به هندوانو ته و وایو چه تاسو که «سوشلست جمهوریت» جوړوئ نو مونږ در سره په کښی شریکیږو، په دي کښی د مسلمانانو ډیره فایده ده ولی چه مسلمانان

په هندوستان کښې غریبانان دي او هندوان امیران دي. په دې آئین کښې دا
داخبره شته چه څرنګه چه دا آئین جاري شو او مرکزي حکومت جوړ شو نو هر صوبه
چه په اکثریت سره فیصله وکړي چه زه د دې حکومت نه جلا کیږم نو جلا کیدی
شي. که چیرې مونږ دا خبره نه منی نو بیا زمونږ په صوبه سرحد
کښې اکثریت دی او ستاسو په پنجاب، بنګال او سنده کښې اکثریت دی زمونږ
ټولې خپلې خپلې اسمبلي به قرارداد پاس کړي چه مونږ مرکز سره نه اوسیږو، بیا به
مونږ ټول په شریکه یو حکومت جوړ کړو. که چیرې مسلم لیګ زما دا خبره منلې وی
نو نه به پنجاب تقسیم شوی وی نه بنګال. خو د مسلم لیګ مسلمانان داسې لیونی وو
چه څوک به مسلم لیګ کښې نه وو. هغه به یې د مره مسلمان نه ګنهلو.

کرپس مشن:

چه دویم جنګ عظیم شروع شو نو د امریکې سیاسي مشرانو دا وویل چه ترڅو د
هندوستان سیاسي مسئله حل شوې نه وي نو هندوستان جنګ کښې زمونږ تائید
کولی نه شي. نو هغوی د برتانیې په حکومت د باو اچول شروع کړل چه هندوستان
ته ازادي ورکړي. پرزیډنټ روزویلټ دا خبره بیا بیا مسټر چرچل ته وړاندې
کړه، نو انګریزانو هم محسوس کړه چه د امریکا نو په دې مطالبه غور وکړي. انګریزانو
د دې د پاره کرپس مشن هندوستان ته ولیږلو، خو دا مشن ناکام شو. د جنګ حالت
ورځ تر ورځ خرابیدو او امریکا نو بیا پرې ټینګار او زور راوړلو. نو لارډ ویول لندن
ته لاړ او د وزیر هند سره یې مشوره وکړه چه د هندوستان د سیاسي مسئلې د حل
د پاره یو ګول میز کنفرانس راوبلي. په دې ګول میز کنفرانس کښې مسټر جناح، ولی

د مسلمانانو نمایندګان به صرف مسلم لیګ مقرروي او د هندوانو نمایندګان به کانګرس. مولانا ازاد چه د کانګرس صدر وُ د دې سره اتفاق نه کولو، هغه به ویل چه کانګرس به د هندوستاني قومیت په حیثیت کنفرانس کښې شاملیږي. په دې اختلاف دا کنفرانس هم فیل شو. دا ډېره د تعجب خبره ده چه پیرنګي په دې خبره ټینګ ولاړ وو، چه کانګرس دې مسلم لیګ د ټول هندوستان د ټولو مسلمانانو واحد نمائنده جماعت تسلیم کړي، ولې حقیقت دا وو چه کله په ۱۹۳۷ع کښې هم د پیرنګي په هندوستان کښې انتخابات وکړل، نو هغې کښې د یوولسو صوبو نه په اتو کښې قطعي اکثریت کانګرس حاصل کړو، باقي د مسلمانانو د دری اکثریتي صوبې وې چه هغه مقامي پارټو سره وې او مسلم لیګ سره یوه صوبه هم نه وه، سنده کښې د الهي بخش سومرو حکومت وو چه هغه یو قوم پرست سړې وو او د کانګرس د ممبرانو حمایت هغه ته حاصل وو پنجاب کښې د یونینسټو حکومت وو چه هغې وزارت کښې د مسلمانانو سره هندوان او سکهان هم شامل وو، هم داشان بنګال کښې حکومت د مولوی فضل الحق وو چه هغه هم د غیر مسلمو په مرسته خپل حکومت چلولو، مګر د دې هر څه باوجود پیرنګي سترګې پټې کړې وې او په دې نښتې وو چه کانګرس دې مسلم لیګ د مسلمانانو واحد نمائنده جماعت ومني او تر دې حده پورې لاړ چه پوره شمله کنفرانس یې هم په دې یوه مسئله باندې ناکامیابه اوختم کړو. د دلچسپۍ خبره دا ده چه که دا موجوده پاکستان مونږ واخلو او د ۱۹۳۷ع د انتخاباتو نتیجې وړاندې کېږدو، نو د پیرنګي او د مسلم لیګ حقیقت به معلوم شي، په دغه انتخاباتو کښې د سنده او سرحد نه یو ممبر هم د مسلم لیګ نه وو منتخب شوی او د پنجاب د ټولې صوبې په مسلمانانو کښې صرف یو ممبر د مسلم لیګ وو، یعني د دې درې واړو صوبو

دمسلمانانو دیوسل ویشتہ پنځوس ممبرانو نه دمسلم لیګ طرف یو ممبر واود غه یې دعوه وه .

## شمله کنفرانس :

برتانوی حکومت په دغه وخت کښې مجبور و چه هندوستان ته خپل حق ورکوي ـ
دی دپاره یې دخپلې کابینې یو خوزمه وارکسان هندوستان ته راولیږل چه هغوی هم
دد غه کال د مارچ په ۲۳ نېټه راورسیدل .
دې مشن د آل انډیا کانګرس او مسلم لیګ جماعتونو سره خبرې اترې شروع
کړې ، د دې مقصد دپاره یې خلور خلور تنه نمائندګان د هر جماعت نه وغوښتل ، دا خبرې
اترې په ۲ مئ ۱۹۴۶ په شمله کښې شروع شوې دکانګرس له خوانه داکسان مقرر شول :

۱- مولانا ابوالکلام ازاد دکانګرس صدر و .

۲- جواهرلال نهرو .

۳- سردار پټیل .

۴- زه ( عبد الغفار خان ) .

دمسلم لیګ له خوانه داکسان راغلل :

۱- محمد علی جناح چه دمسلم لیګ صدر و .

۲- لیاقت علی خان . جنرل سکرټری

۳- راجه محمود آباد .

۴- عبد الرب نشتر .

دبرتانیې دلیبر حکومت نه داوزیران راغلي وو :

۱- لارډ پیتیک لارنس وزیر هند .

۲- سر ستیفرد کرپس.

۳- مستر الکلزانډر.

۴- لارډ ویول د هند وایسرای.

د پورته ذکر شوو نمایندګانو ترمنځ خبری شروع شوې. په اول ملاقات کښی چه څه خبری وشوی د هغی نه پس مونږ د کانګرس څلور واړه ملګري مهاتما ګاندهي ته لاړو هغه مونږ ته وویل انګریزان ډېر چالاک او هوښیار دي تاسو په خبرو اخته کړي او په هغه او دغه به مو تېر باسي. تاسو هرڅه نه مخکښی دوی نه پوښتنه وکړئ چه ایا دوی هندوستان پرېږدي او که نه؟ بله دا ورته ووایئ چه تاسو د انګریزی فوځ د دې ملک نه وباسئ او که نه؟ په سبا چه مونږ جرګی ته لاړو نو جواهر لال نهرو دوی ته دا خبره وکړه چه تاسو هندوستان پرېږدئ او که نه؟ او تاسو دا انګریزی فوځونه ددې خاوری نه وباسئ او که نه؟

لارډ ویول ورته په ځواب کښی ووې چا ته یی پرېږدو؟ تاسو (کانګرس او مسلم لیګ) جوړېږئ نه کوئ نو مونږ به دا ملک چا ته پرېږدو؟ جواهر لال نهرو ورته وویل، که مونږ ته یی نه پرېږدئ نو دوی (مسلم لیګ) ته یی پرېږدئ خو تاسو ووځئ.

ددې خبری په جناح صاحب ښه اثر وشو او هغه وویل چه مونږ جوړه کوو. ددې نه پس مونږ ټول راووتو او جناح صاحب او جواهر لال نهرو یوی بلی کوټی ته ننوتل او لږ ساعت پس راووتل او بیا ټول د جرګی په ځای سر کښېناستو او فیصله دا سی وشوه: یو وفاقی مقرر شی چه یو تن د کانګرس او یو تن د مسلم لیګ نمائنده پکښی وی او دریم سرپنچ به بیا داسی څوک وی چه د دواړو جماعتونو په اتفاق انتخاب شی کومی خبری چه

په جناح صیب د څه نه خبرتیا چیرتګې په خبره د کانګرس د لیډرانو نه
شوی وو - او د جناح صاحب په سر به یې توجه ګټه ګول نه شو او ګوري
هرڅه زه حیه ور کوول د جناح پیلامه ۷۰۰ به یې ور کول

د کانګرس او مسلم لیګ له خوا فیصله شي هغه به ومنلی شي او کومې چې په هغې کښې اختلاف او لانجه وي هغه به د غه وفد فیصله کوي.

لارډ پیتیګ لارنس مونږ نمایندګانو ته ووېل چه تاسو به په دې لیوو د خو کسیتي دننه دننه د غه دري کسیز وفد انتخابوئ او مونږ ته به یې نومونه د الیږئ. مونږ لارډ او ګاندهي جي ته مو دا خبره وکړه مونږ چه دري ورځې پس اجلاس ته راتلو نو ګاندهي جي مونږ ته ووېل چه "مسلم لیګ څه غواړي" هغه ورته ورکړئ خو چه خبره ورانه نه شي!

چه مونږ راغلو او کښېناستلو نو لارډ پیتیګ لارنس د جناح صاحب نه پوښتنه وکړه چه هغه قصه مو څنګه کړه؟ جناح صاحب ورته ووېل د څه قصه؟ ما چه د جناح صاحب دا الفاظونه واورېدل نو عبدالرب نشتر صاحب ته مې اشاره وکړه چه دلته راشه: هغه ما ته راغی نو ما ورته ووېل ای هلکه وا نوئ یې مه! مونږ چه نن اجلاس ته راتلو نو ګاندهي جي مونږ ته ووېل چه مسلم لیګ چه څه غواړي هغه ورته ورکوئ نو تاسو چه څه غواړئ هغه یې درکوي، ددې خبرې ضمانت زه کوم. نشتر صاحب لاړ او د جناح صاحب شا ته ودرېدو. ډېره وخته پورې ولاړ و خو هغه ورته هیڅ توجه ونه کړه نو بیا لارډ پتیل خای کښېناست او خبره ورانه شوه پیتیګ لارنس ورته ووېل چه: ای جناح صاحب تاخو وعده کړې وه؟ مګر هغه هیڅ ونه ویل او جرګه ناکامه او خوره شوه.

## کیبنټ مشن:

څه وخت چه د شملې کنفرانس ناکام شو او له هغه نه وروسته په انګلستان کښې نوي انتخابات وشو او لیبر پارټي کامیابه شوه نو اعلان یې وکړه چه د هندوستان په باره کښې موږ چه څه اول ویلي وو هغه به سرته رسوو او عمل به پرې کوو.

د وروسته واقعاتو نه دا خبره ثابته شوه چه د هغوی خبری د زړه د اخلاصه وې. البته د کرپس مشن د ناکامی نه وروسته د چرچل حکومت دا فیصله کړې وه چه د جنګ تر ختمیدو پورې دې د هندوستان مسئله تاخ کښې کېښودلی شي.

کله چه مونږ پوه شو چه پیرنګیان هندوستان ته ازادی ورکولو باندې مجبور شول نو ما ګاندهي جي ته ووئیل چه داخل حکومت داسې نو تاته پخپله اخیستل په کار دی ځکه چه تا خو ولیدل چه د اسمبلۍ بې اختیاره حکومت د اغلی ژنو وزیرانو به د چا نه منل، اوس خو پوره اختیارات د اروالان دي نو به په کار دی چه دا حکومت ته پخپل لاس کښې واخلې. که چیری ته يې وانه خلې نو دا درته وایم چه که دا خپل ځوی دیوی داس پرې کښېنوې نو دا حکومت داسې یو څیز دی چه د انسان دماغ بدل کړی، نو دی به هم بیا ستا خبره نه مني. ښه به داوي چه ته لکه د لیتن په شان حکومت پخپله واخلې. که ګاندهي جي حکومت اخیستی وی مکمل کړی یې وي که بیا یې خوښه نه ؤ نو د ما ؤ په شان به یې پرېښی وی.

خو نه پوهېږم چه هغه زما د دی خبری سره په څه وجه اتفاق ونه کړو، که چیری ده حکومت اخیستی وی نو د هندوستان به دومره تباهي او بربادي شوې نه وه. د لیبر حکومت د اختیار د حاصلولو نه پس ډېر زر یو پارلماني هیئت هندوستان ته راو لیږه.

د فروری په ۷-۱۹۴۶ع لارډ پیتیک لارنس وزیر هند په پارلیمنټ کښې دا اعلان وکړ چه برتانوي حکومت هندوستان ته یو کیبنټ مشن لیږي، چه د هندوستان د نمایندګانو سره د ملک د ازادی په باره کښې خبری وکړی.

دغه وفد د ۱۹۴۵ - ۴۶ په ژمي کښې هندوستان ته راغی او معلومه شوه چه دا مشن به په لارډ پیتیک لارنس وزیر هند، د تجارتي بورډ پریزیډنټ سر سټیفورډ

کرپس او د بحری محکمې اول لارډ اې . وی الکزنډر باندې مشتمل وی . دکیبنټ
مشن د پلان مطابق به صرف دری محکمې د مرکزی حکومت تر اختیار لاندې وی، دا دری
محکمې د دفاع، امور خارجه او مواصلاتو محکمې وې . مګر دې مشن بچپل پلان کښې یو نوی
تجویز وړاندې کړ چه هندوستان دې په دری حصو تقسیم کړی شي (A . B . C) ددې دپاره
چه د مشن د ممبرانو دا خیال وه چه د اقلیتونو په زړونو کښې به اطمینان پیدا شي . په B برخه
کښې پنجاب سنده، صوبه سرحد او برتانوی بلوچستان چه دا د مسلم اکثریت علاقې
وې، په C برخه کښې بنګال او اسام شامل وو . په C برخه کښې د مسلمانانو برلوړ اکثریت
و او په A برخه کښې د پورته ذکر شوو نه علاوه د هندوستان نورې ټول صوبې شاملې وې . په دې
دوړ د مسلم اکثریت صوبو ته تقریباً پوره خودمختاری حاصله وه . په دې لحاظ په B او
C برخو کښې د مسلمانانو اکثریت یقیني و او هغوی ته دا حق ورکړی شوی وه چه خپل ټول اختیارات
ترلاسه کړی، تر کوم حایه پورې چه د مرکز سوال و د هغه سره صرف هماغه دری محکمې وې .
په دې پلان کښې دا هم وه چه په یو زون کښې کومه صوبه اوسیدل نه غواړی او په اکثریت
سره فیصله وکړی نو د هغې زون نه وتلی شي . دکیبنټ مشن پلان کانګرس او مسلم لیګ دوارو
ومانه . په اول سر کښې جناح صاحب د دې سکیم مخالف و خو څه وخت چه مشن په صفا الفاظو
کښې ووئیل چه نه مونږ د ملک تقسیم منو او نه د ازاد ریاست سفارش کوو نو بیا جناح صاحب د
مشن سکیم ومانه او پکښې شریک شو . په اخری ورځ جناح صاحب دا خبره تسلیم کړه چه د
اقلیتونو د مسئلې د حل دپاره چه دکیبنټ مشن پلان کوم حل پیش کړی دی، د دې نه زیات
کومه بله منصفانه فیصله نه شي کیدلی، په هر حال هغه د دې نه زیات مشن باندې نور شرطونه
نه شو منلی هغه کونسل ته ووئیل چه کیبنټ مشن چه کوم سکیم وړاندې کړی، د هغه د زیات نه

زیات ددی . په دې وجه هغه مسلم لیک نه مشوره ورکړه چه دا سکیم ومنی او کونسل په اتفاق سره دا دې په حق کښی رایه ورکړه .

د کانګرس او مسلم لیګ له طرفه ددی پلان منل د هندوستان د تاریخ یوه روښانه واقعه وه له دی نه دا ثابتیږه چه د هندوستان دازادی سخته معامله د خبرو او مفاهمت له لاری فیصله شوه نه د تشدد او جنګ له لارې .

## د کانګرس صدارت :

تر دغه وخته مولانا ابوالکلام ازاد د ۱۹۳۹ عیسوی کال نه مسلسل صدر راغلی وځکه چه د دوهم عالمی جنګ او ملک کښی د هغه په نتیجه کښی د جد وجهد په وجه د نوی صدر انتخاب نه شو کیدی . هر کله چه جنګ ختم شو نو د کانګرس د نوی صدر د انتخاب سوال پیدا شو په دغه وخت کښی عام خیال دا وو چه مولانا ابوالکلام ازاد دې صدر پاتی شی ځکه چه دده په صدارت کښی د برتانیی لیبر حکومت او د هندوستان د مشرانو خبری اترې شوی وی او هم دده د صدارت په وخت کښی د شملی کنفرانس وشو، رایه داوه چه ښه به داوی د نوموړی په صدارت کښی د هندوستان دازادی کار تر سره شی ولی د صدارت په مسئله د کانګرس په مشرانو کښی اختلاف و د سردار پټیل او د هغه د طرفدار و دا خواهش وچه دی ( پټیل ) دې صدر شی .

مولانا ابوالکلام ازاد ته دا تولی خبری معلومی وې هغه ددی په ځنا کښی د صدارت نه د استعفا ورکولو اوا ینده صدارت نه کولو فیصله وکړه خو د هغه دا خیال وچه د هغه نه پس دې یو داسی سړی صدر شی چه په هغو نازکو او اهمو حالاتو کښی د مولانا صاحب د نقطه نظر مطابق کار وچلولی شی . . ددې د پاره هغه ته جواهر لال نهرو موزون سړی ښکاریده او هغه چنله رایه

دجواهرلال نهرو دصدارت په حق کښې په یو اخباری بیان کښې څرګنده کړه ، بکاندهی جی هم د سردار پټیل په صدارت خوشحاله وخو دمولانا صاحب ددې بیان نه پس هغه خه ونه ویل او جواهرلال نهرو صدر شو .

## دجواهرلال بیان :

د « کیبنټ مشن پلان » دقبلولو نه پس په هندوستان کښې د ډېره ښه فضا پیدا شوه خو ددې نه وروسته جواهرلال نهرو په بمبئ کښې په یو پریس کنفرانس کښې « داسې بیان ورکړو چه دا فضا یې ګډه وډه کړه .

د ۱۹۴۶ کال دجنورۍ په لسمه نیټه جواهرلال نهرو نه په بمبئ کښې په دغه پریس کنفرانس کښې دا پوښتنه وشوه چه ایا آل انډیا کانګرس چه دغه تجویز منظور کړو نو ددې دا معنا شوه چه کانګرس دغه پلان په پوره ډول تسلیم کړو ؟ نو ددې په ځواب کښې ده وویل « کانګرس چه په دستورساز اسمبلی کښې ګډون کوي نو ځان به ددې معاهدو پابند نه ګڼي او هغه وخت چه څنګه حالات پیدا کیږي دهغو مطابق به په ازادۍ سره فیصلې کوي . » ددې وضاحت نه پس دپریس نمایندګانو تپوس وکړو چه ایا ددې مطلب دا شو چه کیبنټ مشن پلان کښې ترمیم کېدی شي . جواهرلال نهرو ددې جواب کښې او وویل چه کانګرس صرف په دستور ساز اسمبلی کښې دشاملیدو وعده کړې ده او هغه ځان په کیبنټ مشن پلان کښې د بدلون او کمی زیاتی کولو مجاز ګڼي .

دمولانا ابوالکلام ازاد دا رایه وه چه دا یو غلط کار وو شو هغه پخپل کتاب کښې وایي : زه په وضاحت سره ددې لیکلو ضرورت محسوسوم چه دجواهرلال نهرو بیان غلط و « دا وینا صحیح نه وه چه کانګرس دخپلې مرضی مطابق به پلان کښې څنګه چه وغواړي ترمیم کولی شي

اصل خبر داوه چه مونږ دا منلي وو چه مرکز کښي به وفاقي حکومت وي او د مرکز سره به صرف د درې محکمو د پاره تعلق وي او دغو په اختيار کښي به وي مونږ دا هم منلي وو چه صوبې به په درې ګروپونو A، B، C کښي ويشلې کېږي په دې شرطونو کښي کانګرس د خپله طرفه د معاهدې د نورو جماعتونو (فريقينو) د رضا نه بغير د هيڅ تبديلۍ کولو حق نه لري.

دجواهرلال په بيان عکس العمل:

په مسټر جناح د جواهرلال نهرو د دغه بيان ډېر خراب تاثير وکړو. دغه بيان دا سې و چه په همرچاپې سره اثر نه شو کولی. جناح صاحب دا موقف اختيار کړو چه د جواهرلال نهرو بيان د د کانګرس د ذهن ترجمانی کوی. د ده دليل دا وو چه که کانګرس د ومره زر خپله رايه بدلوی او حال دا دی چه انګريز لا د لته موجود دی او ده (کانګرس) لا سو ته اختيار نه دی راغلی نو اقليتونه په کوم اعتماد يقين کولی شی چه د انګريزانو د تلو نه پس به کانګرس بدل نه شی او د کانګرس نظر به دغه شان نه شی دا کوم څه چه د جواهرلال په بيان کښي سنکاره شوی دی. د دې سره سمه سمې مسټر جناح يو اخباری بيان جاری کړو په هغه وخت کښي بې دا ويل: «د کانګرس د صدر د دې بيان سره هرڅه بدل شول او اوس په هرڅه د نوی سره د غور کولو ضرورت پيدا شو.»

جناح صاحب لياقت علي خان ته وويل چه د مسلم ليګ د کونسل اجلاس را وبلې. خوا لې بيا ان ورکړو چه مسلم ليګ کونسل به د يلي کښي د کېبنټ مشن پلان څکه منلي وو چه مونږ ته يقين راکړې شوی وو چه کانګرس دا سکيم منلی دی او د هندوستان د پاره چه به کوم دستور جوړيږي دا سکيم به د هغي بنيادوی هرکله چه اوس د کانګرس صدر اعلان کړي دی

ه دوه اتراټي هند بو دي چار ز کښ باچا خان رحمة الله علیه دخپل فراست
تجربه په رڼا کښ تلل پسند نه کړه ځکه چه د دشمن پراپیګنډه ئے له موقع
بووله. باچا خان سره د بیا په پوره کښ د دهلي حرص په ټکټ
زووکړه . د دشمن د دغه نقشه نخپل پاڅ بدل اوته نه ګووله .



چه کانګرس په دستور سازه اسمبلی کښې دخپل اکثریت په زور په دغه پلان کښې بدلون راوستی شي ددی دا معنا شوه چه اقلیتونه به داکثریت رحم وکرم ته پاتي وي. جناح صاحب، په دغه بیان کښې ووېل چه دجواهرلال ددی بیان مطلب دادی چه کانګرس دکیبنټ مشن پلان مسترد کړی دی نو خلکه وا ئیسرای ته په کار دی چه مسلم لیګ دغه پلان منلی دی نو ده ته دی دوزارت جوړولو دعوت ورکړي.

## انترم حکومت :

دغه شان په ستمبر ۱۹۴۶ کښې عبوري حکومت جوړ شو. جناح صاحب، اول ددی نه انکار وکړ خو بیا وروسته دلارډ ویول سره دخبرواترو نه پس، ی په ۱۵ اکتوبر ۱۹۴۶ کښې عبوری حکومت ومانه او په هغې کښې شریک شو. لارډ ویول غوښتل چه زر تر زره انترم حکومت جوړ شي .

په دې وخت کښې زه ناجوړه وم نو ګاندهي جي ووېل چه تر څو چه دی داغلی نه وي او ده رائے پیو معلومه کړې نه وي مونږ عبوري حکومت نه جوړوو. لارډ ویول زمونږ دصوبې چیف منسټر ډاکټر خانصاحب ته ټیلفون وکړ چه زه خپل هوائي جهاز درلیږم، باچا خان په دې کښې دهلي ته راولیږه . زه ناجوړه وم نو ما ورته ووېل زه په هوائي جهاز کښې نه ځم او بیا په ریل ګاډی کښې دهلي ته لاړم.

هلته په کانګرس کښې په دوو مسئلو بحث ؤ. یوه داوه چه جواهرلال نهرو ووېل چه زه سردار عبدالرب نشتر په کابینه کښې نه اخلم ځکه چه دی په انتخاباتو کښې په خپله صوبه کښې ناکام شوی دی او دی دقوم نماینده نه دی، دجواهرلال دا اعتراض معقول ؤ، ځکه چه کوم یو سړی په خپله کورنی حلقه کښې د صوبې انتخاب نه شي ګټلی نو هغه دټول هندوستان

په مرکزي حکومت کښې د کومې جمهوري نمايندګۍ حق لرلې شي.

کانګرس دا خبره هم وايسرای ته کړې وه چه په داسې حالاتو کښې که باچاخان وغواړي نو دا سردار عبدالرب نشتر عبوري حکومت کښې اخيستی شي ګنې نو نه، بله دا خبره وه چه کانګرس وې چه د مسلمانانو کوم حق چه هغه مسلم ليګ ته ورکړ شو او کانګرس د هندوانو حق دی او د هغوی دا رايه وه چه مونږ د کانګرس د برخې نه مسلمان ته حصه نه ورکوو. ما ورته ووئيل چه زمونږ په عبدالرب نشتر هيڅ اعتراض نشته، زما خيال دا دې چه دې خوئيو پښتونو ان دي که دې والا نه شي نو بل پښتون ته خو دا موقع نشته، ما وې اخر پښتون خو دی، دې به داسې لوبه و نه کړي لکه چه يې وکړه. د ده په باره کښې جواهرلال نهرو ماته دا ګيله وکړه چه دا سړی مونږ مستا په خوله مقرر کړی دی خو دا سړی ښه سړی نه دی. ما دا هم وې چه مسلمانانو په کانګرس کښې ډېرې قربانۍ ورکړې دي او دا به ښه وي چه دوی ته د کانګرس له خوا يو وه برخه ورکړې شي. د دې به په مسلمانانو ښه اثر وي. زما دا دواړه خبرې کانګرس ومنلې. لارډ ويول ووئيل چه مسلم ليګ ته داخله وزارت ورکړي. خو سردار پټيل په دې ټينګ وو چه دا بل چا ته نه ورکوم، نو بيا جناح صاحب ووئيل چه ماله يو بل داسې د ذمه وارۍ وزارت راکړي، نو کانګرس ورله فينانس منسټري ورکړه. سردار پټيل دا تجويز غنيمت وګڼله او هغه لې ډېره زيات تائيد وکه. نو کانګرس لارډ ويول ته ووئيل چه ليګ له فينانس منسټري ورکړه لارډ ويول جناح صاحب ته ووئيل چه وزارت ماليه واخله، هغه ورته ووئيل چه دده درځې پس به جواب درکوم. غلام محمد چه (وروستو بيا د پاکستان ګورنر جنرل شو) محمد علي چودري او نورو مسلمانانو چه دې محکمې کښې کارکولو مسلم ليګ ته راغلل ډېره خوشحالي وکړه او ورته يې ووئيل چه دا ډېره اهمه محکمه ده په دې تاسو ته مبارکباد درکوو. او لياقت علي خان ته يې ووئيل

چه ته هیڅ فکر مه کوه موږ به په دې کښې تا سره د پرامداد وکړو، پیه دې خبره جناح صاحب وزارت اخیستلو ته تیار شو او لیاقت علي خان د مالیې وزیر شو.

اخر کانګرس عبوري حکومت جوړ کړو او چه څه وخت دا حکومت جوړ شو نو پیږنګیانو د کانګرس د حکومت د بد نامولو د پاره په وزیرستان بمبارۍ وکړې چه زه خبر شوم نو زه لاړم او جواهرلال می د دې قصې نه خبر کړه چه ته وزیراعظم یې او د استاد وزارت د قلمدان کار دې او ته ترې خبر نه یې او نه ترې چا خبر کړې یې د دې نه قبایلو ته ستاسو د حکومت متعلق ډېرې غلط فهمې پیدا کیږي بلکه دا چه په سرحدي قبایلو د حکومت په کرور روپو روپۍ لګي او هغه روپۍ پولټیکل او د قبایلو ملکان اخلي او خوا دې خوا خرڅ شي او قبایلو له څوک هیڅ نه ور کوي او باوجود د دومره خرڅ هغو خلکو ته هیڅ فایده نه ده رسیدلې او اوس چه د هغه اختیارات ستا په لاس کښې دا غلل تا له په کار دي او ستا فرض دې چه د دغې علاقې خلک پخپله ووینې او هغو خلکو سره یو ځای شې، د دغه خلک ډېر سپنه خلک دي او ډېر عاجزان او مظلومان دي او د هغوی اکثر ملک غروبه دي او که د غو خلکو سره لږ احسان وشي او د هغوی د قوت لایموت د پاره څه ذریعه پیدا شي نو د اګریز چه کله کله پیدا کیږي دا به هم ختم شي ماجواهرلال په دې خبره رضا کړو او هغه ما سره وعده وکړه هغه به ضرور د دغې علاقې دوره کوي او د دغه علاقه او خلک به ګوري، او دا یې هم ووې چه څو مره زمانه کیږي شو نو زه به یې د دغو خلکو د پاره کوم.

لیکن چه څه وخت جواهرلال سرحد ته د تلو اراده وکړه نو چه د صوبه سرحد ګورنر لفکیرو خبر شو نو هغه ډیلي ته لاړ او لې جواهرلال په خپله ولید و ورته یې وویل چه سرحد ته مه راځه، او چه هغه ونه منله نو بیا یې وایسرای خبر کړو چه پنډت نهرو د یا ید صوبه سرحد ته

رانه شي. والیسرای نهرو ته وویل چه ته سرحد ته مه ځه. نوهغه ورته وویل چه ضرور قبایلو ته ځم اوسرحد ته راځي. چه څه وخت کیرو د ډیلي نه واپس پېښور ته راغی نو ټول پولټیکل ایجنټانو لي راوغوښتل او هغوی لي دهغه ددورې مخالفت ته تیار کړل او دپولټیکل ایجنټانو نه علاوه مسلم لیګ لي هم په شاو تیاوه. جواهرلال چه پېښور له هوایي جهاز کښي راغی او بیا چه دډاکټر صاحب چه دصوبه سرحد وزیراعلی و و بنګلې ته تلو نو په چوڼي کښي مسلم لیګ چیغي ووهلي حال آنکه په چوڼي کښي سیاسي سرګرمي بندی وې چاجلوس ویستی نه شو او نه چا چیغي وهلي شوې. تاسو لږ فکروکړئ چه ډاکټر صاحب دصوبې وزیراعلی ؤ او جواهرلال دهندوستان وزیراعظم او په سرکاري دوره راغلی وو دا ټول دکیروشرارت ؤ. اوافسرانو او پولیس او مسلم لیګ چه څه کړي دي نو دده په داوېلی کړي دي. دا ټول مشکلات چه زمونږ په لاره کښي حایل و دا ټول کورنر کیرو پیداکړي وو.

## قبایلي علاقې او جواهرلال:

مونږ اول دوره دوزیرستان نه شروع کړه او چه په دوره روانېدو نو کیرو په جواهرلال ډېر زوراچولو چه باچاخان سره مه بیایه چه ډاکټر صاحب راسره دی نو دده څه ضرورت دی، خو جواهرلال راضي نه شو، او زه لي هم ځان سره روان کړم. د وزیرستان پولټیکل ایجنټان انګریزان وو هغوی زمونږ مقابله په شریفانه توګه وکړه مونږ اول میرانشاه له لاړو دقبایلو جرګه دمخکښي نه راغونډه وه او په محکمه ناست وو او دپولیتیکل او زمونږ دپاره کرسي وې زه جرګې سره په محکمه کښېناستم څنګه چه دوی پولیتیکل پوه کړي وو، څه وخت چه جواهرلال جرګې ته تقریر شروع کړو نو داخلک ټول

پاڅېدل او دا یې ووې چې موږ د هندوانو حکومت نه منو. دا زموږ قبایل و د ډېره عجیبه خلک دي، جواهر لال خو د دوی د خیر د پاره راغلی ؤ او تقریر کښې هم ورته دا خبره وکړه چې زه خو ستاسو د خیر د پاره راغلی یم د دې ځای نه بیا موږ رزمک ته لاړو د په رزمک کښې هم دغه ډول پېښه وشوه خو دومره زیاته وه چې یو ملک جهانګیر چې د اکثر صاحب ورله لاس ورکولو نو هغه لاس ورنه کړو او ویې ویل چې ته د هندوانو ملګری یې، تا له لاس نه درکوم. د رزمک نه چې روانېدو نو زموږ سره د حفاظت د پاره چې کوم فوځ ؤ هغه د هندوانو ؤ. دوی جواهر لال ته وویل چې موږ ته یو تقریر وکړه نو جواهر لال ورته تقریر وکړو او هغې نه پس هغوی د ګاندهي جي زنده باد او جواهر لال زنده باد او پاچاخان زنده باد ناري ووهلې. چونکه په وزیرستان کښې زموږ د دورې انتظام د فوځ په لاس کښې ؤ او هغه هندوان وو، نو دلته هیڅ قسم ګړبړې ونه شو.

موږ چې بېرته میرانشاه ته راغلو نو د اتول پولیټیکل ایجنټان او ریزیډنټ موجود وو، نو جواهر لال ترې دا تپوس وکړو چې دا په کوو رونو دوی چې په قبایلو باندې انګرېزي نو تاسو دې خلکو د پاره څه کړي دي؟ هغوی سره د دې خبرې ځواب نه ؤ ولې چې هغوی د خلکو د پاره څه کړي نه وو. نو ما پکښې مداخلت وکړه چې دوی خو د پښتنو د پاره ډېر څه کړي دي. انګرېزان زما په خبره خوشحاله شول خو چې ما ورپسې دا خبره وکړه چې دوی په دې پېسو په پښتنو کښې داسې بد عادتونه او د پېسې محبت پیدا کړې دې چې پیسې ورته ونیسې نو بیا هر څه کوي او جایز ناجایز نه ګوري. په دې خبره پېرنګیان خپه شول.

بیا موږ له میرانشاه نه واپسی ته لاړو چې دا هم وزیرستان ؤ دلته پولیټیکل ایجنټ

هندوړ، دهغه نوم دیوان شیوسرن لال ؤ، دلته زمونږ ډیرلوی استقبال وشو. زمونږ دمیلمستیا دپاره قبائیلو الګډان راوستلي وو. دجواهرلال نهرو تقریر دلته خلکو په ډیر ښه شان واوریدو او دهغه تائید یې وکړ.

## تورخم :

د دغه ځای نه واپس پیښور ته راغلو په سبا له مو د تورخم دوره شروع کړه د خیبر پولیټیکل ایجنټ، مسلمان و، صاحبزاده خورشید یې نوم و چه جمرود ته ورسیدو نو سړک نه په لږه فاصله باندې افریدې ناست وو او چه مونږ یې ولیدو نو په لاسونو کښې یې جیټرې وې هغه یې مونږ ته وخوځولې او مونږ نیغ تورخم ته لاړو دغه د افغانستان او هندوستان سرحد و. او څه وخت چه مونږ دغلته چای څکله، یو زلمی افریدې راغی او پولیټیکل ایجنټ ته یې ووې چه دوی خو زمونږ میلمانه دي، دوی سره دا سې سلوک په کار نه دې چه مونږ دا روان شو او لنډې کوتل ته رانږدې شو نو پولیټیکل تحصیلدار په منډه منډه راغی او ورته یې ووېل چه دلته خوشنوادې راجمع شوي دي، مونږ چه هلته ورسیدو نو هغو خلکو په مونږ کاڼي راوورول، پولیټیکل ایجنټ زمونږ نه مخکښې وهغه کوزشو، هغه په هغو سپایانو دوه غوې ته یې ووې چه په دوی ډزې وکړې نو هغه خلک چه یو څو ډزې پرې وشوې وتښتیده. زمونږ د موټر شیشې ماتې شوې خو مونږ بچ شوو او په کاڼو نه لګیدو صاحبزاده صاحب یو شریف سړې و زمونږ دحفاظت دپاره به زمونږ نه مخکښې و. ددوی دې انتظام صاحبزاده صاحب زمونږ دپاره کړی و. مونږ ډیر ډیره وخوږ هلته څه خلک هم موجود وو هغوی سره مو خبرې اترې وشوې او واپس پیښور ته راغلو.

## د ملکنډ ایجنسی :

بله ورځ زمونږ دوره د ملکنډ ایجنسی وه دغلته هم

یو پښتون چه د انګریزو نوادارښی - لو پښتو عزت او ایما ښدارې تریښه
رنګی نو اخلی - اود اکبر لکه ښلجرانښی - ناریښه ته وائی - چه ځه ښتا ښو
- رو رُنان ته وائی - چه ښتا ښویم -



پولیټیکل ایجنټ مسلمان ؤ شیخ محبوب علي یې نوم و، دی د شیخانو د کلي و ډېر
خراب انسان ؤ، د خیبر په دوره کښې چه مونږ تلونو د دوړې انتظام د پولیس په
ذریعه و ډاکټر صاحب ته ماووې چه د ملکنو د دوړې انتظام د فوځ په ذریعه کول
په کار دی لکه څنګه چه په وزیرستان کښې شوې و او که ته د فوځ انتظام نه شې کولی
نو بیا به مونږ د خدایي خدمتګارو په ذریعه د خپل حفاظت انتظام وکړو. ولې چه هلته
پولیټیکل ایجنټ شیخ محبوب علی دی. مونږ خبر شو چه شیخ محبوب علي د راغلی دی او
ګوډنو کیرو سره یې ملاقات کړې دی. دا سړې د انګریزانو ډېر وفادار او بې ضمیره
ایجنټ و، دې ډېر کمینه سړې ؤ او دده د لاسه د پښتون قوم ډېر تباه شوی ؤ. په
په افغانستان کښې د برتانوی سفیر همفرې په چاکرۍ کښې د امان الله خان
حکومت تخته دده په ذریعه اوړېدلې وه او (بچه سقاو) یې د کابل په تخت کېښنولی و
په ډېره اسماعیل خان کښې د هندوانو خلاف فسا د هم ده کړې ؤ ولې چه دې دغه
وخت کښې هلته اسسټنټ کمشنر ؤ، لیکن ډاکټر صاحب یو عجیبه سړې و چه مونږ د
هوایي جهاز نه په رسالپور کښې کوز شو، نو زمونږ د انتظام د پاره صرف پولیس ووځ لاړ
وو. زه ډېر خفه شوم، نو ما ووې چه زه دې دوره کښې دوی سره هلته ځم نه ولې
جواهر لال مې یوازې پرېښودی نه شو، مونږ د رسالپور نه په موټرونو کښې روان
شو چه مونږ سخاکوټ ته ورسېدو، نو راحت خان دوی زمونږ استقبال ته راغلي وو
نو مونږ ورته کوز شو او هغوی سره کښېناستو چه په دې کښې شیخ محبوب علي هم
راغی. یو ساعت پس له دې نه رخصت شو، شیخ زمونږ خلاف انتظام کړې وو لیکن
چه ده کوم وخت مقرر کړې ؤ مونږ د هغه وخت نه مخکښې ورسېدو، مونږ دده په

بنگله کښې نااست وو او چای موڅکلې چه په دې کښې مو د خلکو چغې واورېدې د
شپې یې د. ډاکټر صاحب ډېرې خوشامندې کولې، زمونږ نه هم چاپېر ګرځېدو
ډېر خوشامندګو سړی و. دده بنګلې سره جوخته، دوه کمرې وې معلومېږی داسې
چه هغه د میلمنو د پاره وی. زه او جواهرلال هغه کښې ځلاستوو او ډاکټر صاحب یې
ځان سره چخېله بنګله کښې او ده کړو. ده مونږ له د جرګې دا غونډ ولوخه انتظام نه
وکړے، زمونږ د سخاکوټ راحت خان خدايي خدمتګار راغی. نو مونږ ورته ووې
چه د دې علاقې خلک خبر کړه چه سحر له مونږ له راشي چه شیخ خبر شو نو موټر یې ورله مات
کړو. او هغه خپل خلک خبر نه کړی شول او که څوک خبر شو هغه چا مونږ له را پرې نه ښودل
سحر وختي رراحت خان راغی او مونږ یې خبر کړو چه شیخ محبوب علي ډېر خلک را
غونډ کړي دي. تا سو خپل د جلې او انتظام وکړئ. مونږ سره دوه لارې وې چه هغه کښې
پولیس وو او په هره لاره کښې پولیس سره یو یو پېرنګی و. مونږ خبر شو چه هغوی شپې
تېر ولو ته ددې ځای نه د رګي له تلي دي. چه راحت خان زه ددې قصې نه خبر کړم نو
ما ډاکټر صاحب پېل کړو او ورته می ووې چه دې شیخ داسې قصه جوړه کړه. شیخ مونږ
نه مخ خاخ ولاړو. او ما چه ډاکټر صاحب سره خبرې کولې نو شیخ مونږ ته غوږ اېښې و
زمونږ خبرې یې واورېدې نو ډاکټر صاحب له راغی او مونږ ته یې ووې چه زه به داسې
حرامی یم؟ اا وولې پښتون نه یم؟ او ته خو زما پلار یې نو زه به د خپل پلار لحاظ هم نه کوم؟
ډاکټر صاحب کښې دا کمزوری وه چه هغه به د خوشامندو نه ډېر متاثره کېدو ما ورته
ووې، چه ته کومه پوری زمونږ کار د راغلی نه دی مونږ نه خو زمونږ د پولیس کار د او
دده یوه مشوره وه او هغه څه کښه د شپې د پاره دلته نه و پاتې شوی او ددغه وخته پورې

راغلی نه وو. خو ده ډاکټر صاحب ته ووې چه راځئ چه ځو! که مونږ شو او که ډاکټر صاحب شو خو روان شوو، د شیخ موټر مخکښې و او زمونږ موټر ورپسې ؤ. چه قلا له راورسیدو نو دهغې نه یو څو انګریزان راوتی وو مونږ ته ولاړ وو. ده موټر ودرولو مونږ هم ودرېدو مونږ د موټر نه کوز شو او دهغه انګریزانو سره قلا ته ننوتلو، شیخ صاحب لاړ، مونږ یې یو ځای پرېښو، څه ساعت پس مونږ د قلا نه راووتلو، مونږ چه لږ مخکښې شونو په سړک یو لاری ولاړه وه، سړک یې بند کړی ؤ او ډېر خلک دغرو دپاسه ولاړ وو، د مرده باد د چغو سره یې په مونږ کاڼی راوورول شروع کړل. ډاکټر صاحب موټر کښې مخکښې ناست ؤ او زه او جواهر لال ورودسته ناست وو. زه خو په یو کاڼی ولګیدم سترګی را باندی توری شوې په جواهر لال ورپریوتم. دی په ما راپریوتو، ډاکټر صاحب سره مخکښې د شیخ یو سړی ناست وو هغه هم دکاڼونه سر ټیټ کړی ؤ دهغه په ملا تماچه وه هغه ډاکټر صاحب ولیدله هغه یې دهغه دقاش نه را وایسته او د موټر نه یې لاس راوښکو او خلکو ته یې ووې چه لیری شئ که نه ګولی درغله خلک وروسته شو او لاړی ده والا ته یې هم ووې چه لیری شه ګنی ګولی درغله لاړی هم لیری شوه دا هر څه دقلا خواکښې وشو او قلا د سړک په خواکښې وه او دا دهندوستان وزیر اعظم ؤ خو زمونږ مل دله نه هغه پیرنګیان او نه څوک سرکاری ملک راغلل.

مونږ چه د ملکنډ دغاښی نه راکوز شو نو زمونږ هغه پولیس کارډ او هغه دوه پیرنګیان مخې له راغلل بیا چه مونږ هلته کوز شو تول کنډ وکیږ وو دغو پیرنګیانو ته مې ووې چه تاسو زمونږ سنبه کارډ یئ وګورئ مونږ په څه حال یو؟ زما خیال ؤ چه محبوب علی به مخکښې هم مونږ ته د مظاهرو دپاره خلک کښېنولی وی. نو تاسو خو زمونږ

د حفاظت دپاره یې چه څه وشو هغه خو وشو خو اوس د ومره مهربانی وکړې چه تاسو دا یوه لاره هم زمونږ د موټرو نه مخکښې کړې او یوه وروسته کړې او چه په لاره سړک سره نژدې خلک وویستې نو لاړې ورسره دي او دا د مخکښې لارې . خلک دې لاره نه کوز شي هغه خلکو ته دې وواېي چه لیرې شې . که نه لیرې کېدل نو بیا دې پرې لاتهي چارج وکړې . که په لاتهي چارج لیرې نه شو نو بیا دې پرې ډز ورو ستو لارې خلک هوایي ډزې وکړې بیا مونږ روان شو چه ډېر کې ته را ورسېدو . د غلته ډېر خلک جمع وو . شیخ محبوب علي هم ولاړ وو او بیا په مونږ د کانو باران شروع شو یو سړي خو په جواهر لال یوه کټه راخلاص کړه خو ما ورته لاس مخکښې کړو . زما لاس مات شو خو جواهر لال مې بچ کړو یو بل سړي ؤ چه د غو لو کښتو را اخیستي وه او چه هغه یې په مونږ راخلاصه کړه نو زه او جواهر لال خو بچ شو خو د ډاکټر صاحب مغ سر او ټول وجود په غولو ګنده شو . دلته شیخ محبوب علي پولیټیکل ایجنټ ولاړ و او مونږ ته یې ووې چه په دې پوخ سړک مه ځئ چه کوم ځای تاسو له کچه سړک مخې له راشي . هغه نیغ چارسدې ته وتې دی په هغه لار شئ مخکښې تاسو ته ډېر خلک ولاړ دي او سړک یې بند کړې دی هسې نه چه لوی فساد وشي زه خو دې مخالف وم ماوې هم په دې پوخ سړک ځو خو زمونږ هغه کار د نه تلو نو په هغه کچه سړک دا روان شو او پېښور ته را ورسېدو .

## سر دریاب :

سبا له زمونږ دوره د خدائي خدمتګارو مرکز عالیه سر دریاب ته وه . ما ډاکټر صاحب ته ووې چه ستا پولیس او ستا پوځ هیڅوک مونږ سره نه بیایو ستا انتظام مو په کار نه دی مونږ خپل انتظام بچپله کوو . مونږ د تلو د پاره داسې انتظام کړو

چه د پېښور نه تر سرداریاب پورې د سړک په دواړو غاړو خدائي خدمتګار په وردۍ
کښې قطار ولاړ وو او د دواړه غاړې محفوظې شوې. زمونږ نظریه خو د عدم تشدد وه خو چه
خلک زمونږ د ملکنو د واقعې نه خبر شوی وو نو هغوی د خپلو خدائي خدمتګارو د مدد او
حفاظت د پاره سره د وسلې راغلل او د خدائي خدمتګارو شا ته به د ډېرګڼ تعداد کښې په
دې توله لاړه ولاړ وو. کیرو مانکې صاحب ته ویلې وو چه د مترې سړک چه کوم ځای کښې د
چارسدې پوخ سړک سره یو ځای شوې دی د غلته دیکو ملاګور و شیخان تیار کړې
چه د دوی په موټرونو حمله وکړي. خو چه هغوی د غلته د خدائي خدمتګارو زور ولیده نو د
حملې جرئت یې و نه کړې شو. دغه شیخان د خلیلو سره په پوله د خیبر په ایجنسۍ کښې اوسېږي
د سرداریاب مرکز عالیه ته نږدې کل بیلې سره هم مسلم لیګیان په ګڼ تعداد کښې را
جمع شوی و، خو دوی هم جرئت و نه کړې شو. د هشتنغر پښتانه سره د لویو لویو ډلو باوسله
زمونږ د امداد د پاره مرکز عالیه ته راغلل او لیګیانو چه د دې خلکو زور او طاقت ولید و نو
وتښتېدل.

سحر چه مونږ مرکز له د تللو انتظام کولو زه د کمرې نه بهر راووتم نو څه ګورم چه
د پېر پېرنګیان په اتکن کښې ناست دي او فوځ هم په سړک کښې ولاړ دی ما هغو پېرنګیانو
ته ووې چه تاسو تکلیف مه کوئ مونږ به خپل انتظام پخپله کړو دې سره به داوی چه تاسو
لاړ شئ او خپل فوځ هم بوځئ او مونږ پسې را نه شئ.

مونږ مرکز ته روان شو، د خدائي خدمتګارو نه علاوه دومره هجوم جمع شوی
و چه دې ته یې بیان کولی نه شم مونږ په خیریت سره مرکز ته ورسېدو، مرکز کښې ډېر
مخلوق راجمع شوي وو. جلسه شروع شوه، نظمونه وویلې شول، جواهر لال د پېرېنګلي

تقریر وکړو او ده ووی چه زه نن ډیر خوشحاله یم چه د پښتنو په مخکه زما د بدن پوخو ښاخکلې وینه توی شوه او زه امید کوم چه دا د مکر فریب او ظلم نه ډک نظام به ډیر زر بدل شي .. د جواهر لال نهرو صاحب د تقریر نه پس ما هم خپلو پښتنو ورونو سره یو څو خبری وکړی او دا می ورته ووی چه دنیا کښی مشهوره ده چه پښتانه ډیر مهمان نوازدي خو د کورنټ کیږد په لمسون هغه روایات پاتی نه شول دلته دوی خپل میلمه سره د ومره سپک سلوک وکړو چه د دنیا به تری پوزه پټه کړي . دا هرڅه کیږد د یو پښتون شیخ محبوب علی په ذریعه وکړل شیخ ټول پښتانه په دنیا کښی بد نام کړل د جواهر لال ګناه دا وه چه ده وی چه زه د پښتنو قبایلو د خیر د پاره په دوره ورځم او کیږد ورته دي چه مه راځه زمونږ پولیټیکل نظام کښی د دخل مه کوه نو ده ورته ووی چه زه به خامخا درځم ، زه د دی ذمه واریم دا زما مخکه ده او د دی صوبه سره چل ته زمونږ د پښتنو دا با دی ، ترقی او د خیر د پاره راغلی و . په سبا پنډت جواهر لال نهرو زمونږ نه ډیلی ته رخصت شو .

مولانا صاحب په خپل کتاب کښی دا لیکلی دی : چه په پښتنو کښی مهمان نوازی لوی اخلاقی صفت دی و لی دوی کښی دا صفت نه ؤ او دوی بخل کولو ، په دې تربنه پښتانه بیزار ووو - دی وایي چه یو ځل د دوی ملګری زما میلمانه وو چه ماورته چا یو سره بسکټ وراول نو هغوی ډیر خوشحاله شول او ما ته یي وویل چه د دې څه نوم دی ؟ دا خو د ډاکټر صاحب بنګله کښی مونږ لیدلی وو خو هغه مونږ ته نه وو راکړی .

مولانا صاحب د دې خبری تحقیق نه دی کړې او دا یي لیکلی ده . زمونږ خو دا تهذیب نه دی ، چه یو یي خوری او بل له یي نه ورکوی ، مونږ خو دا سی یو چه اوس هم څه مونږ خورو هغه خپلو میلمنو او نوکرانو ته هم ورکوو او ورسره یو ځای یي خورو .

دفير ملي په دوره حکومت کښې موقع الحروف ذکر کړ تر ... صاحب ... مېلګې ...
... د وخت ... د وه - ۳۲ وجه ... - مېګې شاه محمد الرحمن ...
... پخو وله - مېګې مرحوم د منډوتې په ... او وغل ... مولانا صاحب ... الحره ...
... مره ... - موکک خوږه ۷۱۸ د ... ډېره ... - باچا ... او ...

زمونږ. مرکز کښې هم زمونږ. دا قاعده وه چه دوی ته به کښېناستو او مونږ به الیسبو کښیناستو خوراک پخ کړې ؤ، د پاسه به شل نور راغلل نو مونږ به کښېناستو هغه به موتوو کړ نو کړه خپلو کښې تقسیم کړه او په شریکه به مو وخوړه او اوس هم دغه شان کوو.

زه حیران یم چه مولانا صاحب دا خبره د ډاکټر صاحب په هکله کوی، د هغه خو دومره مهمان نواز ؤ چه دا قصه لې افراط ته رسولې وه. زه په دې نه پوهېږم چه دمولانا صاحب ته کلکتې ته کوم کسان ورغلی وو ؟

دغه شان دی دا خبره هم لیکې چه د انتخاباتو وخت کښې کانګرس دوی ته ډېر رقم ورکړې ؤ خو دوی ډېر لږ خرچ کړو نو ځکه ډېر امیدواران د خرچ د کمې په وجه فیل شول. مونږ خدائي خدمتګارو خو هیچېرې د کانګرس نه یوه پیسه هم اخیستې نه ده.

بلکه په دې خبره خو اهرلال زمانه خفه شوی ؤ او ډاکټر انصاری صاحب لې شکایت کړې ؤ چه دی ډېر مغرور دی. زه چه به د کانګرس د ورکنګ کمیټې اجلاس له تلم. نو نورو ممبرانو به چه د ریل د سیکنډ کلاس کوم خرچ اخیستو، ما هیڅکله هغه هم اخیستې نه ؤ.

البته که پارلیمنټري بورډ له دوی نه څه اخیستې وی نو هغه به پارلیمنټري بورډ اخیستې وی. هغه تول په ځای خرچ شوی دی او څومره کسان چه دوی ودرولی وو، هغه ټول کامیاب شوی دی او په لوی اکثریت مونږ الیکشن ګټلی دی. نو بیا دا سوال څنګه پیدا کیږی ؟ د حیرانتیا خبره داده چه مولانا صاحب دا اعتراض کوی چه د صوبه سرحد والو په انتخاباتو پیسې کمې ولګولې. عام عقل خو دا وائي چه که صوبه سرحد کښې خدائي خدمتګارو مکمله کامیابي حاصله کړې او رقم یې هم کم ولګولو، نو دا د هغوی یوه سیاسی کامیابي وه. مولانا صاحب په دې هم اعتراض ضروری وګڼلو.

## بجټ پیش کول:

مونږ ته یو نوی مشکل هغه وخت پیدا شو چه لیاقت علی خان د نوی کال بجټ پیش کړو. دا ښکاره د کانګرس پالیسی وه چه معاشی ښکته پورته والی ختم کړی او وړو وړو د سرمایه دارانه نظام په ځای سوشلسټ نظام قایم کړی. د کانګرس د الیکشن په منشور کښی هم دا رنګ ویل شوی وو. د جنګ دوران کښی چه مختلف قسم سرمایه دارانو کومه ګټه کړې وه، د هغې په هکله جواهر لال بیانات جاری کړی وو. دا خبره عامو خلکو ته معلومه وه چه ددې رقم ډیره زیاته حصه پټه کړې شوې وه او په هغې انکم ټکس نه دی ادا شوی، د هغې مطلب دا ؤ چه حکومت د دې غټ رقم نه محروم شوی دی. زمونږ خیال دا ؤ چه د هندوستان حکومت ته د دې ټکس د حاصلولو د پاره سخته کاروائی پکار ده، ولی چه دا ټکس (مالیه) واجب ؤ خو ادا شوی نه ؤ. لیاقت علی خان یو داسی بجټ جوړ کړی وو چه په ظاهره د کانګرس د اعلاناتو مطابق وو لیکن د اصل د هغې مطلب د کانګرس بدنامول وو.. داسی چه د کانګرس مطالبی په ناقابل عمل شکل کښی پیش شوی وې. د هغه د ټکس تجویزونو د ملک د دولت منی طبقی نه مفلس جوړول او صنعت او حرفت ته نقصان رسول وو. ورسره هغه دا تجویز هم کړې ؤ چه یو کمیشن دی مقرر شی چه د هغه ټکسونو په هکله چه ادا شوی نه دی، تحقیقات وکړی او د هغو د حاصلولو انتظام وکړی. دا خو مونږ ټولو غوښتل چه د دولت تقسیم کښی زیات نه زیات مساوات پیدا کړې شی او د هغه خلکو سره محاسبه وشی، چا چه ټکس نه دی ادا کړی. د دې د پاره مونږ اصولی ډول د لیاقت علی خان د بجټ مخالف نه وو. د کابینې مجلس کښی لیاقت علی خان وویل چه د هغه تجویز د کانګرس د ذمه وارو لیډرانو په بیاناتو مبنی دی. هغه دی خبری

اعتراف وکړوچه کهٔ جواهرلال بیانات نهٔ وی ورکړی نو دهغه ذهن نیهٔ دی الوړی نه نهٔ وو تللی. دبجټ په هکله قاعده داده چه وزیرخزانه تول بجټ دخپلی کابینې د ملکرو وزیرانو په رأی او مشوره جوړوی. ولی دلته نوابزاده لیاقت علی خان خپلو ملګرو ته صرف هغه یوه سرسری جایزه پیش کړه او دمفصل بجټ دپاره یې معنوی په اعتماد کښی وانه خیستل.

تر کومه چه دعا موا مورو تعلق ؤ. کابینې ورسره اتفاق وکړو. دغه شان یې دکابینې نه منظوری حاصله کړه او بیا یې بجټ داسی جوړ کړو چه صرف انتها پسندانو نه وه بلکه دقوم معاشی نظام ته دنقصان رسولو نیت هم ؤ. مونږ په دې پوهه وو چه دا بجټ اصولی طور دکانګرس دسیاست او پالیسی مطابق ؤ. کانګرس تول عوامو ویلی وو چه مونږ به سرمایه دارانه نظام مخالفت کوو او غیبوله به دملک په دولت کښی خپله برخه ورکوو، نو ددې وجهی نه اصولی طور مونږ ددې بجټ مخالفت نه شو کولی.

## دمونټ بیټن مشن:

لارډ مونټ بیټن دلارډ ویول دبرطرفی نه وروسته دهندوستان ګورنر جنرل مقرر شو. دهندوستان د راتلو نه مخکښی دلیبر وزارت دی دخپلو تولو مسائلو نه اد خواهشاتو نه خبر کړی وه. مستراتلی هغه ته هدایت ورکړی وچه د ۳۰ جون ۱۹۴۸ نه مخکښی باید هندوستان ته اقتدار ورکړی شی.

دمارچ په ۲۲ باندی ډیلی ته راورسید او دمارچ په ۲۴ یې دوائیسرائی او دګورنر جنرل په حیث سوګند وکړه. دسوګند نه وروسته هغه یو لنډ تقریر واکړو، په دې تقریر کښی هغه په دې ضرورت زور واچوه چه خو میاشتو کښی دننه به دمسائلو دحل دپاره

راووویستلی شی . دغه وخت دکانګرس او مسلم لیګ اختلافات داسی ځای ته رسیدلی وو چه ددې یو ګړی دوساطت نه بغیرلي جوړه ناممکنه وه . په دی وخت کښی حالات خرابیدل د ملکګتی د فسادونو نه وروسته بهار او نوا کلی کښی فرقه دارانه فسادونه شروع شوی وو بیا وروستنه په بمبئی کښی ګړبړ وشو . پنجاب تر دغه وخته پورې خاموش و . لیکن مغلته هم د ناارامۍ اوګړوړۍ اثار ښکاره کیدل . ملک خضر حیات خان د مارچ په دویم د پنجاب د چیف منسټری نه استعفا ورکړی وه . د مارچ د ۴ تاریخ په مظاهرو کښی ۱۳ کسان مړه شو او ډیر زخمیان شو او ددې فرقه دارانه فسادونو اور د صوبې په نورو و برخو کښی هم خور شو . امرتسر ، راولپنډۍ او ټکسیلا کښی په لویه پیمانه فسادونه وشول . یو طرفته فرقه دارانه جذبات زیاتیدل او بل طرف ته د حکومت انتظام سست کیدو . مرکزی کابینه کښی د کانګرس او لیګ په مینځ کښی د عدم تعاون په وجه حالات نور هم خرابیده ، د مرکزی حکومت ارکان هر وخت دیو بل مقابلی ته ولاړ وو . دا حکومت بالکل معطل شوی و د مسلم لیګ سره د مالیاتو محکمه وه چه هغه د حکومت بنیاد ګڼلی شی یا د دولړ چه ددې ټوله ذمه واری د سردار پټیل په سر باندی ده چه هغه وزارت داخله د ځان سره د ساتلو په فکر کښی ، د مالیاتو محکمه لیګ ته ورکړی وه . په مالیاتو کښی ډیر داسی قابل افسران مسلمانان وو چه د لیاقت علی خان سره په هر ممکنه طریقه مرسته کوله .

د پیرنګیانو زړه لوبه کامیابه شوه ، هغوی په ملک کښی د داسی حالاتو پیدا کولو کښی کامیاب شول چه کانګرس او مسلم لیګ په کور کښی سره پرې نه شو جوړیدی ، او اخر هغوی پیرنګی ته کښیناستل چه هغه اوس ددې لانجی څه حل راوباسی چنانچه موټن بیټن د پیرنګیانو د طرفه خپله د تقسیم هند منصوبه وړو وړو د کانګرس مشرانو ته وړاندی کوله

او داتاثري ورکوو چه اوس په موجوده حالاتو کښې بې د دې نه بل هيڅ علاج نشته.

مونټ بيټن ډېر ذهين او ځيرک سړی ؤ، هغه به د خپلو ټولو هندوستاني مشکرو د زړونو حال معلومولو. هغه چه وليدل چه سردار پټيل د ده د نظرئي منلو ته تيار دی نو ده د په لاس راوړلو د پاره يي د خپل شخصيت او دلفريبئ ټول طاقت په کار راچولو. په خپلو خبرو کښې به هغه سردار پټيل د غوز سره مشابه کولو چه د هغه پوټکي کلک دی خو چه مات يي کړې نو د منځه يي چغزې راوځي. د سردار پټيل د تسخيرنه وروسته د هغه جواهرلال ته متوجه شو. اول کښې جواهرلال د تقسيم خبره نه اوريدله او عکس العمل به يي ډېر سخت و. ليکن مونټ بيټن ورپسې ؤ تردې چه ورو ورو د جواهرلال د مخالفت قوت هم مات شو، ځکه چه دا حالت معلوميدل چه د سردار پټيل سره جواهرلال نهرو هم د مونټ بيټن دوی منصوبي سره منی. نوزه ډېر زهير شوم، ولې چه مونږ دا د هند تقسيم نه بلکه د مسلمان تقسيم کڼلو. زما د نخوانه هم دا فکرو او اوس هم دا فکر دی چه د کيبنټ مشن پلان په هر لحاظ زمونږ د مسايلو د حل ډېره ښه لاره ده. د دې نه د هندوستان يو والې او هرې فرقې ته د ازادا او باعزته ژوند موقع په لاس ورتلله، صرف د مسلمان د مفاد و خيال چه يي په نظر کښې وساتو نو د دې نه د بل بهتر صورت اميد نه شو کيدې. په کومو صوبو کښې چه د دوی اکثريت ؤ، هلته دوی ته په داخلي چارو کښې پوره واک اختيار د په لاس ورته. که د وفاقي هندوستان صوبو ته نظر وکړو نو که مونږ بلوچستان له يو صوبائي حيثيت ورکړو نو بيا د به په مرکزي حکومت کښې هم د صوبو په تناسب مسلمانان د غير مسلمو سره قريباً مساوي حيثيت حاصل کړي.

مولانا ازاد وايي چه "ما په دې ټولو مسئلو ډېر غور وکه. ما سوچ وکړو چه کانگرس هم

دومره «زه خپله رأیه څنګه بد له کړم. زما خیال دی چه دا د سردار پټیل دا اثر نتیجه ده چه پټیل
په بنګال کارډ ویل چه بی د تقسیم نه بله چاره نشته. د تجربی نه ثابته شوه چه د مسلم لیګ سره
یو ځای» کارکوال ممکن نه دی. کیدیشی سردار پټیل یوی بلی خبری ته هم اهمیت ورکړی وی
چه لاډ رډ لوېی» مونټ بیټن ویل چه کانګرس د مرکزی حکومت په کمزورو ساتلو رضا د مسلم لیګ
د اعتراض د جواب ورکولو د پاره راضی شوی و او ددې په وجه صوبو ته د پوره داخلی خود مختاری
حق ورکول شوی و. مګر په یو داسی ملک کښی چه هلته د ژبې، مذهب او تهذیب دومره
اختلاف وی، د مرکز کمزوری اتحاد د ښمنو نظریو ته قوت ورکوی. دلیګ نه چه ځان جدا
کړی شی نو بیا د یو مضبوط مرکزی حکومت انتظام کیدی شی او داسی قانون جوړیدی شی
چه د هندوستان د متحد ساتلو د پاره به فایده من وی. مونټ بیټن دا مشوره ورکړه
چه په شمال مشرق او شمال مغرب کښی چه یو خو وړی توکړې مسلم لیګ له ورکړی شی نو د باقی
هندوستان یو مضبوط او مستحکم ریاست جوړ کړی شی. په سردار پټیل باندې ددې
دلیل زیات اثر وشو چه د مسلم لیګ سره د اتحاد په وجه به د هندوستان اتحاد او استحکام
په خطر کښی پریوځی. زما خیال دا دی چه یوازی سردار پټیل نه بلکه په جواهر لال نهرو هم
ددی دلیل اثر شوی وو. دغه دلیلونه چه سردار پټیل او مونټ بیټن د دباره وویل نو د تقسیم
په مخالفت کښی د ګاندهي جی په نظریه کښی هم کمزوری راغله. څنګه چه دوی ولیدل چه خلک
د کیبنټ پلان سخت مخالف دی نو دغه په ځای یی د تقسیم د پلان د پیش کولو چه دده
د خیال سره برابر و تیاری وکړه. هرکله چه د تقسیم مسئله په بنګاره د ول منځ ته راغله، نو
د پنجاب، او بنګال مسئلی لوی اهمیت پیدا کړ. مونټ بیټن دا ویل ځکه چه د تقسیم بنیاد د مسلمانانو
د اکثریت علاقی وی او د پنجاب او بنګال په څینو برخو کښی د مسلمانانو اکثریت دی، په دې چه

په دې دواړو صوبو کښې هم تقسیم کول په کار دی. خو د کانګرس لیډرانو ترې مشوره وغوښته چه دغه سوال اوس مه پورته کوئ او دوی ترې یقین ورکړ چه په یو راتلونکي مناسب وخت کښې به زه په خپله دغه سوال پورته کړم. په دې وخت کښې مونټ بیټن د تقسیم په باره کښې خپل تجویز تیار کړې ؤ نو د برتانوی حکومت سره د خبرو اترو او د تجویز د منظورۍ د حاصلولو د پاره ئې د لندن د تلو فیصله وکړه. ما دمې په ۱۴ د مونټ بیټن سره په شمله کښې ولیدل، یو ساعت مې ورسره خبرې وکړې، بیا مې ورته اییل وکړ چه د کیبنټ مشن پلان په خاوره کښېنی مه ښنخوئ. مونږ باید د صبر نه کار واخلو ولې چه د دې پلان د کامیابۍ امید اوس هم شته دی. که مونږ تقسیم په تلوار ومنلو نو هندوستان ته به ډیر نقصان ورسیږي. ما بیټن ته دا هم ووئیل چه تا له د تقسیم ممکنه نتایج هم په ذهن کښې ساتل په کار دی. د تقسیم نه مخکښې هم په کلکته، نواکالی، بهار او بمبئی او پنجاب کښې فسادونه وشول. هندوانو په مسلمانانو او مسلمانانو په هندوانو حملې وکړې، په داسې حال کښې که ملک تقسیم شي نو د دوینو الښتی به وبهیږي او د دې خونریزۍ ذمه واری به د انګریزانو په غاړه وي. خو مونټ بیټن راته فوری جواب راکړ چه زه تاته پوره یقین درکوم چه زه به هیڅ ګوک فساد او وینو بهیولو ته پرې نږدم. یو وار چه تقسیم اصولاً ومنل شي نو بیا به زه حکمونه جاری کړم چه په ملک کښې د هیڅ ګوک فرقه دارانه فسادونه کړې شي. خو بیا ټولې دنیا ته معلومه شوه چه د تقسیم د اعلان نه وروسته د ملک په ټولو برخو کښې د وینو لښتی وبهیدل او بیګناه ښځې او ماشومان قتل شول او د مسلمانانو او هندوانو د قتل عام د مخنیوی د پاره هیڅ سودمند تدبیر ونه کړې شو.»

## د ایرکټ اکشن او مساوات:

پنجاب کښې د هندوا و مسلمان جګړه شروع شوې وه، د اخبرونه چه ببه لیکه جبارونو

کښې دارالتلل نو ددی په وجه به د هندو او مسلمان نفرت او کشیدګی زیاتېده لیکن چه په ۱۹۴۶ کال کښې په هندوستان کښې کوم فسادونه شروع دو نو په کلکته کښې چه د مسلم لیګ له طرفه دایرکټ اکشن وشو نو دغه اورته یې د تیلو کار ورکړو. د کلکتې په ښار کښې خو د مسلم لیګ دلاسه ډېر لږ هندوان مړه او تالا شو، خو هندوانو ددې بدله په بهار کښې واخیسته مسلمانان منظم نه دي او هندوان منظم دي، دوی په کلکته کښې دومره خلک مړه او لوټ کړه چه خومره په بهار کښې مړه کړل، لوټ یې کړل او یو ه لویه تباهي یې وکړه.. زه پخپله دغلته د مسلمانانو د امداد پاره تللی وم، مونږ به کله ناکله سهروردي صاحب ته ویلي چه دا به په بهار کښې چه د مسلمانانو دومره بربادي وشوه، د مسلم لیګ د دایرکټ اکشن په وجه وشوه او تاو کړه نو هغه به وې چه ما سرع لیکلي خط شته کسه د ښینیاو او ورخت راغی نو هغه به ښکاره کړم. د کلکتې په ښار کښې د بهار خلک مړه شوي وو، بیا د بهار د بدل داخیستو په بانه په ټولو کلي کښې په هندوانو ډېر زور او ظلم وشو ډېر انګریزانو دا پالیسي کامیابه شوه چه: (لوټ ړالوا او حکومت کړو.) انګریزان د مسلم لیګ په دغه کار ډېر ډېر خوشحاله وو ځکه چه د هندوستان په دې خرمستو باندې انګریز د نوکر شاهي د انګلستان د مزدور پارټۍ حکومت باندې داوا ضحه کول او ثابتول غوښتل چه د هندوستان، خلک د ځناورو په شان دي یو بل وینو ځکلو ته تږي ناست دي او دیو بل غوښو خوړلو او څرمن و ښکلو پسي دي او دا چه د بنیاد مو په شان داو سپل و شعور خو په دوی کښې وورک دی ددی د پاره په دوی کښې د انګریزانو حکومت ضروري دی، او دوی له خپل ځ حکومت، مه ورکوئ اوکه دا سې ونه شوه نو ددی به پخپلو کښې یو بل تباه او برباد کړي.

**نو ه بهار کښې**: مسلم لیګ د انګریزانو پیدا وار دو، ددې د پاره هغوی د صورت

حال نه ناجایزه فایده اخیستل خوښ کړل او د امن او سلامتۍ د خرابولو د پاره د مسلم لیګ او پیرنګیان په یوه سلا وو.

د دوی په دومره تباهی د مسلم لیګ زړه یخ شوی نه و هغوی په فرقه دارانه ماز شونو کښې لګیا وو د هغو فساد ز پلو مظلومانو نه یې سیاسی فایدې او چټولې اوغوښتې او هغوی
لره یې دا ترغیب ورکولو چه بنګال ته هجرت وکړي. زه ددې مظلومانو په فکر کښې پروت
وم چه دوی به بیا څنګه پخپلو کلوا و کورونو کښې اباد کړم، لیکن هغوی مسلم لیګ ددا سې تاثر
باندې خبر ولې وو چه زما خبرې په هغوی ښې نه لګیدې، ددې د پاره زه د مسلم لیګ
لیډرانو له ورغلم دا خلک د محمد یونس بیرسټر په یو عالیشان مکان کښې دیره وو
چه کله زه هغوی له ورغلې یم نو دوی په خوړلو او څکلو کښې اخته وو او ما ته به یې او ویل چه
مونږ تاسره خبرې نه کوو او چه بیا ناظم الدین ورته و ویل چه مونږ له به کار دی چه ورسره
خبرې وکړو نو دوی زما خبرو او ریدو ته تیار شول ما هغوی ته دوې چه تاسو له دا غلی
یم او تاسو ته دا عرض کوم چه ددې خلکو ډیره تباهی شوې ده او اوس به سنبه دا اوی چه
دوی معاف کړې نور یې مه تباه کوئ او دا څو مره تباهی چه ددوی وشوه دا الله ده
شه؟ دا تاسو چه دوی ته د بنګال د هجرت مشوره او ترغیب ورکوئ نو که په حقیقی معنو
کښې دوی هلته اباد وی نو زما په دې هیڅ اعتراض نشته او که دوی د خپلو سیاسی
غرضونو سنبکار کول غواړئ او که دوی نه سیاسی فایده او چټول غواړئ نو دا مناسب
نه دی دوی ډیر تباه او برباد شوی دی. لیکن ددې مسلم لیګو په زړه کښې رحم نه و
ماځیل زور مهربان فیروز خان نون هم دلته شپاړس کاله پس ولیدو. ما ترې نه
پوښتنه وکړه چه تا خوی چه مونږ به مشوره وکړو، نو ماله به ځواب ورکړو نو تر او سه

پوری خوښي ماله هغه ځواب نه دی راکړی ؟ دی حیاناک سړی و . سترګی یې ښکته کړی او څه ځولوار بیلي راتلګرو ، حال دادی چه د شملې په دعوت کښی د ه زمانه هکایت کړی وچه تا سیو کانګرس سره شوئ ، ماورته ویلی وو . مونږ خو تاسو ته درغلی وو ، خو تاسو زمونږ امداد ونکړو ، او مونږ خو په یولوی مصیبت کښی وو . نو ځکه کانګرس ته لاړلو . که تاسو پنجاب اوس هم مونږ سره ملګری کیږئ نو زه اوس کانګرس نه استعفا ورکوم ، د ه دوی چه مونږ مشوره وکړو نو ځواب به درکړم .

د مسلم لیګیان دیونس بیر ستړو په بنګله کښی ناست وو ، خوړل ، څکل یې کول او د پتنی دښارنه زرهسروتی نه شول او د هماد مسلمانان چه کلونه راتښتیدلي وو او په کیمپونو کښی وو داکثرو نه زخپیل مال پخپلو کورونو کښی ښخ پاتی شوی وو ، هغوی غوښتل چه مونږ سره ځوک لاړ شی او د دوی د غنه مال راو ښکلو کښی مونږ سره مدد وکړي ، خو مسلم لیک خو دویرې نه د ښار د وتی نه شو .. دوی چه د مسلم لیک نه مایوسه شو نو بیا یې ماته ووې چه ته به مونږ سره لاړ نه شی ؟! مونږ پخپلو کورونو کښی مالونه ښخ کړی دي چه هغه راوباسو ماورته ووی چه زه خو دلته د دستاسو د خدمت دپاره راغلی یم څه وخت چه وایې د سره ځم نو هغوی به ما روزانه څو څو کسان پخپل موټر کښی خپلو کلونو ته بوتلل او هغه خپل مالونه به یې راوښکل ، هندوانو به ورته د بلې بلې کتل خو زما په وجه به یې څه ویل نه . زه دوی پسی کیمپونو ته لاړم او ورته می وویل چه ، بورسات شروع کیدونکی دی راځئ چه زه مو اباد کوم خو دوی زما د اخبره ونه منله ځکه چه دوی خو مسلم لیک بنګال ته روان کړي وو خو چه د بنګال د تللو په لاره کښی ورته دیرې تکلیفونه او مصیبتونه پیښ شو نو بیا ماله راغلل ، بیا زه د بهار حکومت ته ورغلم او هغه تول ، وزیران خو ماسره د هزاری باغ په جیلخانه کښی پاتی شوی وو ، هغوی دیر

زړه دوی دا باد ولو انتظام وکړو او ګاندهي جي چه په نوا کلي کښې ؤ هلته چونکه دهندوانو برخلاف فسادونه شوی وو نو ګاندهي جي هلته په دوره ؤ. ما چه ورته خبر وکړو نو هغه د نوا کلي دوره پرېښوده او دلته بهار ته دمسلمانانو د امداد پاره راغی. مهاتما جي زما دخط په لیدو دلته راغی او هغه کاندورهم په تیزی روان شو ماته پیارې لال ویل چه ګاندهي جي څه وخت نوا کلي ته راغی نوموږ ته ئې وویل چه تاسو دلته دغه شان ناست یئ او خپله هغه کښې نه ناستو او چه په کوم ځایونو زورزیاتی او ظلم شوی ؤ دی به هلته تللو او دهغه ځای خلکو ته به ئې ډاډګیرنه ورکوله او خدمت به ئې کولو دهغه په لیدو د موږ نه کښې هم جرئت او همت پیدا شو بیا موږ هم دهغه په شان په هغو مظلومانو ګرځیدو او سړی څه کوی چه ښځې به هم ګرځیدې او نه به ویریدې. په دی بیاندی هغو خلکو کښې د ډېر ښه اثر وشو ولی دلته په (بهار) کښې دا حال ؤ چه مسلم لیګ لیډران دویری نه د پټنې ښار کښې ګرځیدی نه شو چه دکوم قوم لیډران زړه وردی هغه قوم کښې هم زړه ورتیا پیدا شي. او چه دکوم قوم لیډران بزدل وی هغه قوم کښې بزدلی پیدا شي. ماته پیارې لال بله خبره دا هم کړې وه چه پټیل په بهار کښې زما کړو چلیدو مخالف وو خو ګاندهي جي ورته وویل چه دا مناسب نه دی.

مردولا بهن هم ګاندهي جي سره ملګرې وه او هغه دغه وخت د ګاندهي جي سکرټري وه دهغې هم مسلمانانو سره ډېره همدردی وه چه څومره مسلمانان به راغلل نو مردولا بهن به هغوی ګاندهي جي ته بوتلل او هغه ته به ئې خپل مصیبتونه او تکلیفونه بیان کړل. دا خبره دکانګرس دمشرانو خوښه نه وه هغوی کوشش وکړو چه دا (مردولا بهن) ګاندهي جي نه لیرې کړي او لیرې کوله ئې. نو هغه مال ته راغله او ما ته ئې دا قصه بیان کړه

اودانه یې دووې چه اوس خو ماستا سونه جدا کوي . ماوږنه دوپل نه هیڅ پروا مه کوه، تا
هیڅوک ګاندهي جي نه لیري کولی نه شي . نوزه لاړم او ګاندهي جي ته مې وویل او هغه پاتې
شوه . زه په بهار کښې وم . ما غوښتل چه بهاریان سره دوباره اباد کړم او ددې د پاره
ډیره ومم . خو چه څه وخت په پنجاب کښې فسادات شروع شو نو ماسره فکر شو . بیا
ګاندهي جي ماته وویل چه دا کار به زه کوم ، ته نه سرحد ته لاړ شه . نوزه سرحد ته راغلم . په
صوبه سرحد کښې دخدائی خدمتګار دتحریک په وجه دمسلمانانو ، هندوانو او سیکهانو
تعلقات ، ډیر ښه وو ، ښه څه چه د ورونو په شان وو . دا تحریک دخدای دمخلوق دخدمت
او انسانیت تحریک ؤ . دې تحریک په مسلمانانو ، هندوانو ، سیکهانو کښې دمینې محبت
او خدمت جذبه پیدا کړې وه چه بخوایې مثال نه ؤ . دا تحریک کلیوال تحریک ؤ ، مرکزیې
هم په کلیو کښې ؤ . ځکه چه اکثریت قوم په کلو کښې اوسي . ددې تحریک فرق د نورو تحریکونو
داؤ چه د نورو تحریکونه دښارونو نه شروع کیږي او په کلو کښې خوریږي . مګر دا تحریک د کلو نه
شروع ششو او په ښارونو کښې خور شو .

تاتاریخ داښیي چه د ښارونو تحریکونه دحکومتونو دلاسه خراب شوی او له منځه
تللي دی . مګر کلیوال تحریک څوک په آسانۍ ختمولی نه شي لکه زمونږ . دخدایي خدمتګاری
تحریک چه په د ډیر وظلمونو ، کړاوونو ، مصیبتونو باوجود چا ختم نه کړې شو او تراوسه
پورې حچا اری دی ، په بهار کښې چه کوم فسادونه وشول نو زمونږ دصوبې نه دمسلم
لیګ رضاکاران بهار ته لاړل . ددې خدمت له تللي نه وو . ددې په هندوانو او مسلمانان
کښې نفرت زیاتولوله تللي وو او چه دهغې ځای نه واپس راتلل نو ډیر هلکان وکې یې له ځان
سره راوړل ، او په سرحد کښې کلي په کلي وګرځول او زمونږ په خلاف یې تورپه پراپیګنډ

وکړه او مطلب یې دا ؤ چه په صوبه سرحد کښې هم دهندو او مسلمان او سکهانو ترمینځ دنفاق او فساد او دبل کړي. ولې فسادي ونه کړې شو او په خپل مطلب کښې کامیاب نه شول. ولې چه دلته دخدایي خدمتګارو دتحریک په برکت دفساد او دښمنۍ جرړې ایستلې شوي وې.

خو چه لارډ مونټ بیټن دهندوستان دتقسیم اعلان وکړ او دا یې هم وویل چه په صوبه سرحد کښې به ریفرنډم کیږي، ددې زمونږ په صوبه ډیر خراب اثر ؤ شو او دلته هم فسادونه شروع شول. نو بیا مسلم لیګیانو د پېښور په بازارونو اولارو، کوڅو کښې بیګناه خلک قتلول شروع کړل. د پېښور ښار بازارونه بند شو، هندوان، سکهان په خپلو کورونو کښې قید وو، بهرته راوتې نه شول. په کورونو کښې هم دوی دعزت، دولت او سرونه محفوظ نه وو.

چه مونږ پوه شو چه سرکاري افسران زمونږ سره هیڅ قسم امداد ته تیار نه دي بلکه هر څه زمونږ دوزارت د بدنامولو د پاره کوي، حکومت زمونږ ؤ څو افسرانو زمونږ خبره نه منله نو مونږ فیصله وکړه او امین جان سالار اعظم ته مو حکم وکړو چه لس زره باوردي خدایي خدمتګار پېښور ته راولیږي. دحکم د رسیدو سره لس زره خدایي خدمتګار پېښور ته راغلل او دراتلو سره یې هندوان او سکهان دخپلو کورونو نه بهر راوښکل، دکانونه یې پرانیستل او کارونه یې شروع کړل. ددوي په دکانونو دخدایي خدمتګارو پیرې ولګیدې، چه مسلم لیګیان ورته نزدې نه کړي. او د هندوانو، سکهانو مال، ځان او عزت محفوظ شو. دغه شان په ټوله صوبه کښې چه کوم کوم ځای خدایي خدمتګار وو هلته دهندوانو، سکهانو مال، ځان عزت په

امن ؤو. په دووی کښې بعضې انګریز پرست هندوان هم وو چه د پیرنګیانو او لیګیانو
په اشارو روان وو، بدل او د مطالبه یې کوله چه د خدائي خدمتګارو حکومت دې لیرې شي او
صوبه کښې دې ګورنرراج قایم شي، په دې نه پوهېدل چه دا ټوله قصه چاجوړه کړې ده
داخو لوړه نه جوړه کړې وه خو چه څه وخت دلا ر د لویې مونټ بېټن او کانګرس مشرانو
په مینځ کښې د زمونږ په سر سودا وشوه. سودا په دې وشوه چه لارډ مونټ بیټن ورته
وویل چه چه پنجاب او بنګال به زه د ره تقسیم کوم خو تاسو دې په بدل کښې صوبه سرحد
پرېږدئ د دې او ریفرنډم ومنئ. بیا یې په دریم جون ۱۹۴۷ د هندوستان د تقسیم
اعلان وکړو او دا یې هم وویل چه په سرحد کښې به د خلکو نه تپوس کیږی. نو تاسو خود دې
پیرنګي د دې ظلم او بې انصافۍ ته وګورئ چه پنجاب تقسیمیږی، بنګال تقسیمیږی
هلته د خلکو نه تپوس نه کیږی بلکه د اسمبلۍ نه کیږی او دلته زمونږ په صوبه کښې
د اسمبلۍ نه څوک تپوس نه کوی او د خلکو نه تپوس کیږی. حال دا دی چه زمونږ
الیکشن خو په هندوستان او پاکستان خو میاشتې مخکښې شوی ؤ. خلکو خو رایه ورکړې
وه دوباره یې څه ضرورت ؤ؟ که د کانګرس مشرانو زمونږ سره بې وفائي کړې نه وی او د
تقسیم هم مسئله یې منلې نه وی نو په صوبه سرحد کښې به د هندوانو، سیکهانو او زمونږ ته
دومره د سر او مال زیان نه وی رسېدلی او نه به سیکهان او هندوان دومره تباه او برباد
شوی وو.

د دې وخت مسلم لیګیانو حکومت نیولی وو او جیلونو کښې یې اچولی وو د لنډي
د خټونه نه دی» دوی خو د جیلخانو تیرولی نه دی، د دوی هغه قید او جیلخانې خو
نه قید وو او نه جیلخانې، د دوی د پاره دیستورانټ وو، څه عجیبه لوبه وه. د شپې

په کورته تلل، د ورځې به بازارونو کښې ګرځېدل، خپلو خپلوانو او د دوستانو سره به یې مجلسونه کول د دې وجه دا وه چه ګورنر زمونږ د وزارت سره تعاون نه کولو او زمونږ مخالف وو.

د وي چه بیا د جېل نه را وتل او د یلي ته راغلل زه هم په ډېلي کښې وم.. هلته ما د وی ولیدل او ثمین جانخان ته مې وویل چه یره! هلکه دا پاکستان چه جوړوې، نو لږ خو فکر وکړئ. دې کښې به د پښتنو څه حال وی، اکثریت خو د پنجاب دی نو اقتدار به هم د پنجاب وی، نو ده راته وویل چه اوس یې جوړ وو او که بیا پکښې زمونږ خفیږ نه وو نو بیا به یې وران کړو. افسوس دی چه ثمین جانخان اوس نشته ګنې ما به ترې تپوس کړی وی چه را شه وګوره چه اوس پاکستان کښې د پښتنو څه حال دی..

## د تقسیم اعلان:

څه وخت چه مونږ بیتن دمې په ۳۰ ډېلي ته واپس راغلی نو د جون په ۳ یې د هندوستان د تقسیم په باب د برتانوی حکومت له خوا د منظور شوی منصوبې اعلان وکړو، د دغې منصوبې په اعلان کېدو سره د هندوستان د متحد پاتې کېدو قول امید و نه ختم شول.. برتانوی حکومت د تقسیم د مسئلې په دومره زړ منلو کښې د هندوستان نه ذیات د خپلو مفادو خیال ساتلی وو، ولې چه یو داسې ریاست چه اقتداري د مسلم لیګ په لاس کښې وی د برتانوی اثر په حلقه کښې زیات پاتې کېدی شي.

## د ورکنګ کمیټي اجلاس:

بیا په دغه تاریخ په دې نوی حال باندې د غور کولو د پاره د کانګرس د ورکنګ کمیټي غونډه وشوه، سردار پټیل او راج ګوپال اچاریه خو له پخوانه د تقسیم طرفدار

او د کیبینټ امشن مخالف وو. مګر په غونډه کښې چه کانګرس هم د تقسیم طرفداري وکړه، نو موږ ټول حیران پاتې شو. بله مسئله په سرحد کښې د ریفرنډم مسئله وه دا مسئله هم دا ورد مونټ بیټن په منصوبه کښې راغلې وه په دغه خبره هم د پر بحث مباحثه وشول او دلایل پیش شول. سردار پټیل او راج ګوپال اچاریه دلته هم په ورکنګ کمیټي د پر زور واچولو او اخر ورکنګ کمیټي دا خبره هم ومنله او د ملک د تقسیم او صوبه سرحد کښې د ریفرنډم خبره د واړه ومنلې شوې.

زه حیران شوم چه دوی دا ټولې فیصلې کړې دي نو دا ما سره یې بیا جرګې او مشورې ولې کولې.

په دې وخت کښې ما ورکنګ کمیټي ته یو اپیل وړاندې کړو او دا مې ورته اوویل چه مونږ همیشه د کانګرس ملګرتیا کړې ده او اولاس مو ورکړی دی او س که کانګرس مونږ یوازې پرېږدي او له مونږ سره امداد و نه کړي نو په صوبه سرحد به ددې د پر خراب اثر پریوځي که کانګرس خدایي خدمتګار د شمځانو خولې ته هم داسې پرېږدي نو دا به د صوبه سرحد سره غلط دا .... وي، د کانګرس چې په زړه باندې د دې اپیل زیات اثر د شو او ویې ویل چه زه به د دمونټ بیټن سره په دې مسئله خبرې وکړم.

په سبا له زه او ګانګرس چې وایسرای لارډ مونټ بیټن ته ورغلو هغه سره مو خبرې وکړې هغه په دې کښې د جناح صاحب شرکت هم ضروري وګڼلو. څه وخت چه جناح صاحب ګانګرس چې او زه یو ځای شو، نو جناح صاحب وویل چه دې زما مسلمان ورور دی زه دې سره ځان له خبرګوم. نو ما ګانګرس چې ته وویل چه ده داسې خوښه ده. نو کیسه اجازه وه وی، نوزه به ور سره ځان له خبرو وکړم. هغه ما ته وویل د پرښه. جناح صاحب ما ته

وویل چه تا سوته د

شو، اصل کښې ما

لیک ترمنځه تولی فیه

ماولوستو نوزه دد

چه داخبری خو فیصل

هغه ښکنه دکاندهی ج

چه که ددی فیصلی نه و

په دې باره ک

"د پاره دکانګرس ورګن

"سرحد د مستقبل په

"عجیبو مشکلاتو کښې غو

"کړې وه او دلیک یې مخ

"لیک د سخت مخالفت په موجود لی لیښې هم په دې موبه ښې دوی د کانګرس حکومت

"په جوړولو کښې کامیاب شوي وواو داحکومت یې اس هم برسراقتدار وو د تقسیم په

"وجه دوی او کانګرس دواړو ته یو تکلیف ورکوونکی حالت پیدا شوی او، په اصل کښې

" د تقسیم مطلب دا وچه دوی او د دوی پارټی یعنی خدائی خدمتګار د مسلم لیګ رحم

" وکرم ته پریښودل شی ."

" مونږ پوهیږ وچه په عبد الغفار خان به ددې فیصلی څنګه اثر شوی دوی، دا سی

" ښکاریده چه دغه وخت دوی خپل هوش او حواس بالکل بایللی وُ ، څو دقیقې دده د

خولي نه نه، یو لفظ هم راونه وتو. بیا دوي ورکنگ کمیټي ته اپیل وکړو او ورته یې ور یاده کړه
«چه دوي تل د کانګرس ملګرتیا کړې ده او اوس که کانګرس دوي یوازې پرېږدي نو به
«صوبه سرحد به ددې پر خراب اثر پرېوځي، د دوي دښمنان به په دوي پورې خاندي
«او د دوي دوستان به وایي چه تر څو کانګرس ته د صوبه سرحد ضرورت و نو د خدائي
«خدمتګارو حمایت یې کاوه خو کله چه یې د مسلم لیګ سره د مصالحت خواهش پیدا شو
«نو بیا یې د صوبه سرحد او د دوي دلیل را نو سره مشوره قدري هم ونه کړه او د تقسیم
«مخالفت یې پرېښود. خان عبدالغفار خان خو حُلي دا خبره بیا بیا وکړه چه که چیرې
«کانګرس سره خدائي خدمتګار د شرمښانو خولو ته وغورځول نو دا به د صوبه سرحد سره
«غداري وي..»

«مونږ د ورکنګ کمیټي د دغه غونډې نه پس واپس خپلې صوبې ته راغلو، حکومت ته
مو وئیل چه چونکه کانګرس تقسیم هند منلی دی نو په داسې حالاتو کښې دلته د ریفرنډم ضرورت
نشته. وا وائي چه ددې په ذریعه به دلته په خلکو کښې یوه د دښمنۍ او ترېګنې فضا پیدا شي.
چونکه وائسرائې دا خبره ونه منله، ددې وجهې نه مونږ بیا د صوبې جرګه راوبلله او دا حالات
موتول د دغه جرګې په وړاندې کښېښودل. د صوبې جرګې فیصله وکړه چه که سرکار دلته خامخا
ریفرنډم کوي نو بیا به کار دی چه پښتنو له پوره حق خود ارادیت ورکړی او د هندوستان
و د پاکستان نه علاوه د پښتنو په خپلې ازادې صوبې پښتونستان باندې هم ووټ واخلي.
خو څوچه کله پېرنګیانو ددې مطالبې د منلو نه انکار وکړو او د ازاد پښتونستان مطالبه یې
په ریفرنډم کښې شامله نه کړه. نو بیا جرګې دا فیصله وکړه چه چونکه کانګرس تقسیم هند منلی دی
د دې وجهې نه دلته ریفرنډم ته هیڅ ضرورت پاتې نه شو. او که حکومت خامخا ریفرنډم

کوی نو مونږ به په هغې کښې حصه نه اخلو.

## د کانګرس او مونټ بیټن سازش:

اصله خبره دا وه چه دا لویه واقعه چه څنګه وشوه هم د غسې کیدونکې وه، ولې چه د دې د پاره د مخوانه تیاری شوی وې. هغه وخت چه مونټ بیټن د تقسیم د اعلان نه مخکښې د سرحد په دوره راغلی ؤ په سرحد کښې دفعه (۱۴۴-۱۴۴) لګیدلې وه او په جلسو پابندی وه. د صوبه سرحد ګورنر سر اولف کیرو چه زمونږ سخت مخالف ؤ او د مسلم لیګ لوی حامی ؤ هغه په لارډ مونټ بیټن دا اثر اچولو د پاره د سرحدی قبایلو نه په ډیر زیات شمیر کښې د پولیټیکل ایجنټانو او خپلو ملکانو په ذریعه خلک راجمع کړل، لارډ مونټ بیټن ته یې یوه لویه تماشه جوړه کړه، او د تللو په وخت کښې یې لارډ مونټ بیټن ته دا ووئیل: چه دوی به پښتنو له داسې سزا ورکول په کار دی چه د دوی بچي یې یاد ولري. ولې چه په هندوستان کښې لس کروړه مسلمانان وو هغوی زمونږ مخالفت ونه کړو او دوی زمونږ مخالفت کښې د کانګرس سره ملګری شول. لارډ مونټ بیټن دا ټولې خبرې په زړه کښې واچولې او دیلي ته روان شو. هلته خو پټیل د هندوستان تقسیم غوښتو، او ده دا غوښتل چه پښتنو ته سزا ورکړي او د مسلم لیګ په حواله یې کړي، د دې دوارو اتفاق په دې وشو چه کانګرس غوښتل چه بنګال او پنجاب دې تقسیم شي او لارډ مونټ بیټن غوښتل چه سرحد کښې دې ریفرنډم وشي. نو لارډ مونټ بیټن دوی ته دا ووئیل چه زه ستاسو دا خبره منم، او پنجاب او بنګال به درته تقسیم کړم خو د دې په بدله کښې تاسې زما دا ومنئ چه په صوبه سرحد کښې دې ریفرنډم وشي. نو کانګرس په صوبه سرحد کښې ریفرنډم و منلو او مونټ بیټن ورته پنجاب او بنګال تقسیم کړل او د دوی دوارو سودا زمونږ په سر وشوه مونږ

خدایي يي، خدمتګار وخومره خواري وکړه چه هندوان او مسلمان سره نږدې شي او دا څه په کور کښېنوي وم، که په صوبه سرحد کښې وم، که په هندوستان کښې مادديپاره ډېر کوشش کړې دا ددې چه دهندو او مسلمان ترمنځه مينه محبت، اتحاد او اتفاق پيدا کړم او نفرت او دښمني تري ليرې کړم. دا کار تر ډېره حده پورې وشو مګر د تقسيم نه پس تاسې وګورئ چه اوس څه حال دی؟ هغه مونږ چه څه کړي وو هغه په سيند لاهو کړې شو. په پاکستان کښې په هندوانو او سکهانو څه تېر شول او په هندوستان کښې په مسلمانانو څه تېر پرېږي؟ داسې نفرت او دومره نفاق پيدا شو چه د اصلاح اميد يي هم له منځه لاړو او ډېر پورې لا نجې تري را پيدا شوې.

## د کانګرس بې وفايي:

کانګرس خو د پېرنګيانو سره د شپېتو کالو راسې دا زادۍ اخيستلو د پاره په جدو وجهد لګيا و خو انګريزانو ورته پوره ازادي څه چه نيمګړې ازادي هم نه ورکوله. مګر کله چه پښتانه ورسره په دغه جنګ کښې ملګري شول او پښتنو په قصه خوانۍ، تکړ، اتمانزو کوهاټ، هاتي خيلو او ميروس کښې قرباني ورکړې او دغه شان زمونږ دقبايلي علاقې غيرتي ټي پښتنو دې پښتنو سره د هندوستان د ازادۍ په لاره کښې غزاګاني وکړې. د انګريزانو توپونو او ټانکونو ته يې خپلې سينې ډال کړې او ددوی مخې ته لکه غر ودرېدل نو دا د انګريزانو هله دهندوستان ازادۍ ته غاړه کښېښوده. مونږ خو د کانګرس سره په دې ددې وعده د ازادۍ په جنګ کښې ملګري شوي و چه وطن به په ګډه ازادوو او د ډېر پېړيو د غلامۍ نه به خانونه خلاصوو، مګر چه وخت راغي نو بيا مونږ سره د شو وعده هيڅ هيڅ خيال ونه ساتلی شو. زمونږ نه زمونږ د مستقبل په هکله هيڅ پوښتنه ونه شوه.

بلکه د پاکستان او هندوستان دیو ځای کېدو ریفرنډم را باندی په زور راوتلی شوا او د زمونږ په سر د غه لویه سودا وشوه. قربانی زمونږ وکړې، دینی زمونږ توری شوې. مالونه، جایاید ادونه زمونږ تباه شول او کټه یې نوروته ورسیدې. د کانګرس مشرانو خو به په ټولو معاملو کښې زمونږ نه تپوس کولو، زما د سلا مشورې نه بغیر به یې هیڅ نه کول. مګر په دې لویه اهمه مسئله کښې د زما سره هم مشوره څه چه خبر هم نه کړې شوم. زما خپګان په دې خبره دی چه د کانګرس ورکنګ کمیټۍ هم زمونږ سره امل ادا او هلې دی ښکاره نه کړه. دوی مونږ له لېښو لاسونو وتړلو او مسلم لیګ ته یې حواله کړو. مونږ خو د مسلم لیګ نه الیکشن ګټلی ؤ نو بیا بل الیکشن ته څه ضرورت ؤ. که چا زمونږ د سره نوی ریفرنډم کولی نو په کار وو چه زمونږ په مطالبه یې د پاکستان او پښتونستان په سوال یې کړی وی. دا ریفرنډم خو په پاکستان او هندوستان ؤ او مونږ د کانګرس د بې وفایۍ په وجه د هندوستان سره نه تلو، نو ځکه مو په دې ریفرنډم کښې شریکیدل نه غوښتل او بایکاټ مو ورېیښ ی کړو.

مونږ ته به پېر ښکیا نو ویل چه د کانګرس ملګرتیا پرېږدئ نو مونږ به چه هندوستان ته څه در کوو د هغې نه زیات تاسوله در کوو. لیکن مونږ کانګرس پرې نه ښود خو دوی مونږ پرېښودو.. د ډېر افسوس خبره خو داده چه مونږ دوی سره څه وکړل او دوی راسره څه وکړل؟

د سردار پټیل او راجه ګوپال اچاریه نه خو زما ګیله نشته. زما ګیله د جواهر لال نهرو او د ګاندهی جی نه کیږی چه هغوی هم په دې معامله کښې ورسره اتفاق وکړو. د کانګرس لیډرانو ویل چه اوس داسې حالات راپیدا شو یې چه بله لار نشته. نوزه وایم چه دا حالات چا راپیدا کړل؟ دا حالات خو دوی راپیدا کړل. که دوی هندوستان تقسیم کړی نه وای نو د هندوستان او هندو مسلمان د دا دومره تباهی او بربادی به نه وی شوی.

څه چه وشول هغه وشول او د مولانا ازاد خبره څه چه می ولیدل دا یو خوب ؤ ؤ. ج خو

په دې وخت کښې ... پښتو مشاورتي اجلاس ... فیلډ مارشال ... دد
... شو - او ... انیب ... سردار ... لګ ... صوبائي ... شو
... د صوبه سرحد الحاق پاکستان ته د یا هندوستان ... الهند او
... عطاالله ... ماته او ویل - چه ده صوبه د فیصله خبره او زه
... مالا ... ۷۳۹ باچاخان منه

خو زه وا وایم چه دا یو سازش دی، دا یوه بې وفائي وه، او دا یوه غداري وه چه د ... زمونږ

سره وشوه.

د زمونږ په ملک کښې ځینې کسان شته چه زمونږ د بد خواهانو په لمسه زمونږ
خلاف د دا سې پراپیګنډه کوي چه خدائي خدمتګار و خه وکړل؟ او دا هم وائي چه
عدم تشدد د خه وکړل؟ او زمونږ د په ساده ګان ورونه د خود غرضو کسانو د دې
خبرو نه متاثره کیږي. نو زه دوي ته وایم چه د خدائي خدمتګارې دوه مقصده
وو: یو د ملک ازادي او بل په پښتنو کښې د تامولی، ورورولی، مینې محبت
اتفاق او اجتماعي ژوند احساس پیدا کول.

تاسو خو ګورئ. دا احساس خو پیدا شو، او ملک هم ازاد شو. او بیا دې ته
وګورئ، چه دا هر خه د عدم تشدد په ذریعه وشو، تشدد د خونه دې شوې. تاسو
وګورئ، خدائي خدمتګارې په خلقو کښې د مسلمان، هندو او سکه په زړونو
کښې دا دا سې مینه محبت پیدا کړو او دا سې ورورولي جذبه یې راوپېښه کړې وه
چه تراوسه پورې هغه هندوان او سکهان چه د صوبه سرحد نه په زور اېستل
شوې دي، او هند ته تللي دي ځان ته اوس هم خدائي خدمتګار وائي. هر کله
چه زه د هندوستان ته تللی یم نو هغه مینه او محبت د هغو هندوانو او سکهانو
په زړونو کښې محسوس شوم. تاسو وګورئ چه څه وخت په هندوستان کښې د تقسیم
په وخت کښې فسادات شروع شول. نو خدائي خدمتګارو دلته د خپلو هندوانو
او سکهانو د حفاظت د پاره ډېره تکلیفونه تېر کړي دي او کوم هغه کښې چه
خدائي خدمتګارو نو هلته یې ددې بچ کړي او ددوي د مال او ځان حفاظت یې

دا کتاب برخوردارم مشتاق الرحمن ځما ده
مطالعه ده پاره راوړه او هر چا
بغیر ده اجازت نه یوسي. او یا ئې په اجازت
او واپس ئې نکړه. نو خیانت به اوکړي
ئې حلال دی. ده عالم دین نه پتوس اوکړي

# یادګیرنه

مورخه ۲۸ جنوری ۹۲ء
عنایت الرحمن ...

ما نه غوښتل چه زه ځله بیوګرافي ولیکم، ځکه چه زه د ویلو او لیکلو نه زیاتا د کار او عمل ملګرې یم. مګر اجمل خټک، فضل الرحیم ساقی، عبدالله خان مشکاکار بختانی، صدیق الله رښتین او فقیر محمد بایزی خوشحال راته وویل چه په دا یوه ضروري خبره ده او زه یې بایدولیکم. ځکه نو دهغو یاد داشتونو له مخه چه ماسره وو او د خپل یاد دښت نه ما دا کتاب ولیکلو.

ددې کتاب د لیکلو په وخت، دهغه په تنظیمولو او چاپ نه د تسیا دوولو په چارو کښې هم دې ذکر شوو کسانو ماسره زیات کومک وکړو. نو ځکه زه د دوی نه مشکوګزاریم او د قوم او وطن په خدمت کښې ورته توفیق غواړم.

عبدالغفار

